

# شمیر پوهنه

## (ریاضي)

## ستر کتاب



لومړۍ برخه

دويم غځېدلی چاپ

لیکونکی: ډاکتر ماخان (میړی) شینواري

# شمیرپوهنه

(ریاضي)

## سترکتاب

دویم غزېدلی چاپ

لیکونکی: ډاکتر ماخان میږي شینواري

دلوي ښتن په نامه

په دې هيله، چې په دې ليکنو او ژباړو به مې زموږ د بې وزلې او له پوهې پاتې ملت - په ما د پوهنې لپاره د لګښت - لپاره د پوهنې په لور داسې لږ ونډه اخستې وي.

## <u>کتاب پيژندنه</u>


د کتاب نوم: د شميرپوهنه ستر کتاب( لومړی برخ)

ليکونکی: ډاکتر ماخان،، ميری،، شينواری

makhanshinwari@gmail.com

د خپريدو لړی

خپرندوی: د افغانستان کلتوري ودې ټولنه

جرمني

چاپ کال ۲۰۱۲

چاپ چارې

دانش خپرندويي ټولنې تخنيکي څانګه

WWW.danishpress.com




پښتو مو ژبه او شميرپوهنه پرې ساده ده

## د خپرندوی ټولنې یادښت

له هغې مودې را په دې خوا، چې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې د علمي، ساینسي او طبي اثرو د خپرولو لړۍ پیل کړې، تراوسه یې په دې لړ کې مهم اثار خپلو هیوادولو ته وړاندې کړې دي.

موږ باور لرو، چې پښتو ژبه هغه وخت په یوه مهمه غني ژبه بدلیدلای شي، چې د پوهې په ګانه سمبال شي او په علمي او اکاډمیکو اثارو غني شي.

اوس چې زموږ ملي سراسري ژبه د بیلابیلوګوابښونو او چلنجونو سره مخامخ ده، پر موږ ټولو ده، چې د دغه ګواښونو په وړاندې به په نره ودرېږو او د علم او قلم په ژبه به ځواب ورته ووایو.

د اتحادیې له حوا د ډاکتر ماخان شینواري تراوسه زیاتو چاپ شویو اثارو په څنګ کې، د ده د پنځه وېښت شمیر پوهنې نویو ژباړو او لیکنو او دوه ټولنیزو لیکنو تر منځ، دغه اثر په همدې لړ کې ځکه د ارزښت وړ دی، چې د علمي، ساینسي اثارو د خپراوي په لړ کې د یوه مهم ګام په توګه ګڼل کیدای شي او هیله ده، چې د دې برخې مینه وال لوستوال، زده کوونکي او د پوهنتو زده کړې کتِه ترې واخستلی شي.

په درناوي

د افغانستان کلتوري ودې ټولنه

۲۰۰۱۲ ز ک

# د ليکونکي مننه

د هر څه له مخه د هغو ليکونکو پروفيسرانو څخه زياته مننه، چې د ليکنو څخه يې زما د ژباړې لپاره تفاهم لري. ماته د دوي د ليکنو د ژباړې په هيڅ ډول مادي ګټه نه شته او دا کار مې يوازې په يوه د پوهنې توانمندې ، مګر وروسته پاتې ژبې ويونکي ولس ته وړاندې دی، دا دې د دې پروفيسرانو له خوا په پوهنيزه اړخ کې زموږ په دې اړخ کې هم مرستې ته اړ ولس سره مرسته وي.

همدا ډول زموږ،، د افغانسان کلتورې ودې ټولنه،، جرمنې، د غړو، مرستندويانو او په تيره بيا د مشر تابه څخه زياته مننه کوم، چې پرته له خپرندوې ټولنې په توګه يې د دې ليکنو زياته اقتصادي ونده هم په غاړه اخستې.

دې لاندې زما کليوالو ملګرو او ملګرو د دې کتابونو په چاپ کې د توان سره سمه اقتصادي ونډه اخستې، چې زه ترې زياته مننه کوم:

د ښاغلي ډپلوم انجنير ريحان الدين حساس، ښاغلي ډپلوم انجنير محمد اکبر نور، ښاغلی ډاکتر سردار ګانه وال، ښاغلی ډاکترماڼوګل ګانه وال، ښاغلي ټولنپوه محمدعارف بيان، ښاغلي ډپلوم انجنيرمحمد ايوب بيان، همداسې زما د ملګري اروابناد ډاکتر حاجي محمد سلطانزي د ځوي ښاغلي ډاکتر صالح محمد سلطانزي ، ډپلوم انجنير او ډپلوم اقتصاد پوه رحمت الله فتحي او نه اخر زما د لور ډاکتر څانګې شينواري او زما د ځوي اقتصاد پوه او ټولنساپوه اباسين شينواري.

نه د ټولو په اخر کې زما له ميرمن ښاپيرۍ څخه ډېره زياته مننه، چې زما د ليکنو- نه دا چې مخه يې نه ده نيولې- پوره ملاتړ کړي.

بيا هم له دوي څخه د زړه له کومې مننه کوم او لوي څښتن دې ورته اجرونه ورکړي، چې داسې مرستو ته دوام ورکړي.

په مننه : ستاسو ماخان شينواری

جرمني د بن ښار

۲۰۱۲ ز ک

نیولیک

## د ستر کتاب دويمه برخه

# د مهربان او بخښونکي خدای(ج) په نامه

## سریزه

ګرانو هیوادوالو !
یو څه چي پیل لري نو پای هم باید ولري، د داسې یوه کار پیل او پای ته ځما هم لوړه او تنده دومره زیاته ده، چي مېښت یې زما لپاره هم ناشونی دی.

د هیواد په هراړخیزه بدبختیو یو سړی هلته نور هم پوره پوهیدلی شي، چي په یوه کار پیل وکړي، ځکه چي سملاسي ورته څرګندیږي، چي په هیڅ شي کي څموږ په هیواد کي لاتراوسه څه نه دي شوي په جوړښتیزه لور، په وراني کي مو د نړۍ سرکښي ځانته ګټلې.
موږ ګورو چي په مسلکي چارو کي له پیل دا ستونځي موجود دي، چي تراوسه حتی هغه بنسټيز مسلکي نومونه مو له خپلې ژبې نه دي را اخستلي، چي مسلك ته اسانتیاوې پیښوي. له کومه ځاي چي ماته روښانه ده، تر نن ورځې په دې هکله چا په شمیرپوهنه د ستونځوبیو لپاره کومې هڅې هم نه دي کړي او ستونځي يي نه دي ګاللي، چي دلته طبعاً افراد ملامت نه دي، بلکه څموږ دهیواد دتاریخ په اوږدو کي دولتني جوړښت، دپوهنې او همدا ډول د کلتور او ژبي د ودې دنده د حکومتونو ده، چي څموږ په هیواد کي څموږ حکومتونو خپل ځانونه د دې کار جوګه نه دي ګڼلي، کیدی شي چي ووایو چي په ریښتیني يي ددې کار مخه هم نیولې ده، چي په افغاني ژژبه دې څه کار وشي.
ګرانو لوستونکو !
داکار ځکه په افغاني او په ولسي افغاني لیکل شوی، چي زه په مسلکي اړخ کي یواځې، په علمي توګه په الماني ژبه پوهیږم، د انګلیسي سره هم بلد یم، نو دا

نومونه چی له دې دباندنيو ژبو را اړووم ، داچي په ښوونځي کي څما ليك لوست په افغاني ژبه وو، په افغاني ژبه په ولسي پوهنيزه توګه اړولی شم. ماته دا کليمي په مروجه افغاني ژبه نه دي معلومی او يا کومي چي ماته معلومی دي او زه ورسره بلد يم هغه همغه وخت ماته د پوهيدلو له امله د ستونځو ډکی ښکاريدلی .

شمير پوهنه هم، د نورو پوهنو په څير، يوه پراخه پوهنه ده او زياتی څانګی لري. دا چی څما په فکر دا متآسفانه نه يواځي زما لمړی کار دی، بلکه دا د افغاني ژبی په دې توګه يو لمړی علمي اثر دی، چی په دې بنسټيزه توګه په درسي او تمريني ډول سرته رسيږي.

نن نړی او د انسانانو فکر دومره پر مختګ کړی او دا نور هم په خورا چټکتياوده کوي، چی پخپله انسان ورته د تعجب په سترګه ګوري، مګر موږ لا تراوسه په هغه بنسټيزو ستوځوبيو ( د ستونځو حل باندې ) پيل نه دی کړی ، که دا په هره څانګه کی هم وي. څموږ پرابلمونه هراړخيز دي او هراخيزو هڅو ته مو ضرورت شته.

## شميرپوهنه څه شی دی ؟

شميرپوهنه يو مرستندويه پوهنه ده، چی په ټولو پوهنو کی تغښتي يا په بل عبارت : په ټولو پوهنو کی د پوهيدلو بنسټيزه ريښه جوړه وي، که دا پوهنی اجتماعي وي او که طبعی ( پيدايښتی ) يعنی که ساپوهنه وي که اقتصاد او که کيميا وي يا فزيك، بيله شمير پوهنی يی وده او په پوهيدنه ناشونی ده. شميرپوهنه له بلی خوا يواځني خپلواکه پوهنه هم ده. شمير پوهنه بل څه ته اړ نه ده.

ددې کتاب ليکلو زما زيات وخت په بر کی ونيوه او ليکل يی د پوره ستونځو سره

ټول کار زما په غاړه وو او بل چا را سره متآسفانه چی مرسته هم نه شوه کولی.

د داسی یوه کتاب لیکنی مسئولیت باید د دولت په غاړه وي او مسلکي باید د داسی لیکنی څخه خپل ژوند تآمین کړای شي. د همدې هدف لپاره د مسلك زدکړه کیږي. ما په دې کرښه غوښتل، چی څموږ د هیواد ستنځي نوزې هم ګوته لك کړم.

زه غواړم چی خپلی د سر خبرې په لاندې توګه رالنډې کړم
-د لیکونکی راهڅونی دلیلونه یا د شوق رابیدارول
-دداسی کتاب لیکنه په هغه وخت کی شوني کیږي، چی د لیکونکي اقتصادي ژوند تآمین وي، زه د ټولنیزو مرستو پیسو څخه ژوند کوم، یعنی د نورو خلکو د مالیا پیسو باندې. کار نه پیداکیږي او اجازه يي هم نه لرم چي پیسی وګتم.

– وخت باید پوره موجود وي او داهم ما پوره لروده، چی له دې د مخه می په سیاسی هلو څلو دا وخت تیر کړی او دا اوس می خپل مسلك ته رامخه شوه.

– ددې کتاب لیکلو لپاره باید یو لیکونکی د خپلی ټولنی او د خپلی ټولنی د خلکو سره مینه ولری او په همدې ډول، د خپلی ټولنی او د ټولنی د خلکو او د ټولو څخه د مخه د خپل ځان لپاره هم خوبونه ولري، خیالونه ولري، چی یواځی د خوبونو ریښتیا کولو لپاره په داسی کار بریالی کیدی شي. ما ددې کار ستونځی په پوره مینه په غاړ واخستلی او دا کار می په پوره مینه سر ته ورساوه.
-په دې برسیره لیکونکی دې وظیفی ته هم باید شعوري وي، چی دی ددې کار لپاره د ملت په پیسو تربیه شوی او د ملت پور هم باید ادا شي، د داسی لږ پور اداکولو هم ما ته پوره خوښي راو بخښله.

په کور کی هم باید تر یوې ممکنه اندازې پورې یو تفاهم موجود وي یعنی یو غبرګوالی باید په کورنی کی وي، که داسی هم نه وي ، خو د داسی کار مخه باید ونه نیول شي ، د نورو ستونځوبیږو ( ستونځو حل ) په خاطر، چی موږ افغانان یی په ځانګړی توګه اقتصادی اړخ کی پوره لرو، چی نه یواځي د ځان لپاره بلکه د خپلوانو لپاره هم باید پام وي، مګر ما دا توان په خپل ځان کی ددې امله نه کوته چی امکانات یې ځما لپاره نه وو.

## دوم : د کتاب د لیکنو ستونځی:

د داسی کتاب لیکنه د پوره ستونځو سره مل ده، چی زه دې ستونځو ته په لاندې توګه ګوته نیسم.

۱ - دا کتاب په داسی ژبه لیکل کیږي چی له مری څخه نیول شوې، زینډی شوې، خپه شوي، خو د مرګ څخه بچ ده، له ښارونو شړل شوې، او یواځی په غرو او رغو کی ژوندۍ پاتی شوې.

دې ته باید ګوته ونیسم، چی دا کرښی دا مطلب نه لري، چی ګوندې زه به، خدای (ج) دې ونه کړي، د بلی ژبی په خلاف یم. دا زما کار نه دی او نه دا حق ځان ته ورکوم، خو دا حق لرم چی خپلی ژبی، د خپل ولس ژبی ته ، چی کړېدلی او وروسته پاتی ساتل شوې، ګوته ونیسم. موږ افغانانود افرادو په توګه هم افغاني ژبه پرېښوولی چی ولس یعنی د یوه هیواد د ژبی دپرېښوولو حق څوک نه لري، نه دولت او نه افراد. دا کار متاسفانه د افغاني ژبی په ضد او بیا د ټولو په سر کی پخپله د افغانانو څخه شوی دی، د بل ځا څخه څوک باید ګیله من نه وي.

افغاني ژبه، که څه هم پوهانو او د لیك لوست خاوندانو په زیات شمیر، نه ټولو، د لاسه ورکړې، خو بیا هم دا ژبه دا استعداد، د نورو ژبو په څیر لري، چی یوه پوهنیزه لیکنه وربانډې وشی یا بهتره پوهنیزه شي.

ژبه یواځې د پوهولو او پوهیدلو اله نه ده، بلکه د ولس پوهنیزه وده کې پوره غوره رول لري او د کلتوري ودې لاربښودې او بنسټ دی، په دې برسیره د پوهې د اسانوولو خورا غوره اله ده. د یوه ولس د پرمختګ او د ژبې پرمخوده یو بل باندې سیده او په ځنې اغیز من دي، چې ولس وروسته پاتې وي، ژبه یې وروسته پاتې ده او که یوه ژبه وروسته پاتې وي، نو هغه ولس د نورو ولسونو سره په پوهه کې سیالي نه شي کولی او د ولس خلك د نورو ولسونو د خلکو سره د سیالی کولو استعداد ځان کی نه شي روزلی، که څه هم استعدادونه به موجود وي.

ما کوښښ کړی چې کم له کمه بنستیزې کلیمې په افغاني واړوم، چې دا کار مې په پوره بریالیتوب، د پوره ستونځو سره سره سرته رسولی او په دې هکله مې زیات فکر هم په کار اچولی چې مسلکي بنستیزې کلیمې په روانه افغاني راوړل شي. هغه نومونه چې ټاکل شوي، داسې نومونه دي، چې د هغه شي ماهیت په کې روښانه دی. دا کا د هرڅه لمړی ددې لپاره باید وشي، چې په پوهنیزو شیانو او نومونو پوهیدل باید ساده شي.

په پوهنه کې له بلې ژبې تیریدنه ناشونې ده او یا په بل عبارت په بله ژبه صرف نظر نه شي کیدی. دلته هم هدف دا نه دی چې افغاني ژبه دې د نورو ژبو د لغاتو څخه پاکه شي، دا کار یواځې هلته کیږي، چې یوه ژبه له پوهنې وروسته پاتې وي.

د پوهنیزې ودې سره ژبې ته د نورو ژبو لغات راننوځي او ضرور هم دي. ما کوښښ کړی چې که د کوم لغات لپاره د پښتو نوم یا نه وي او یا مناسب نه وي، هغه په جهانی مروجه لغاتو ولیکم.

دا چې افغاني د افغانستان ژبه او بیا هم ژوندۍ شوې ژبه ده، دا د دولت کار وو او افغاني ژبې ته د تنفس ورکولو یا بهتره د افغاني ژبې د ژوندۍ څخه خلاسون یا د افغاني ژبې څخه د لعنت د کړی لرې کولو دنده هم د دولت ده، خو ترهغې باید موږ هم دې ته پام ولرو او دا پاملرنه خپله دنده وګڼوو.

د یوه ولس په ژبنیو ستونځو هلته پوهیدل ممکن کیږی، چی څوك د ژبی سره په پوهنیزه توگه مخامخ شي. په افغاني ژبه دلمړي ځل لپاره داسی یوه لیکنه د ستونځو سره مل ده، مگر ناشونی نه ده.
دلته غواړم چی دې ته هم گوته ونیسم، چی د نومونو په ټاکلو کی ما کله کله دوه نومونو کارولی، چی هغه مي په ټول کتاب کي شاید اصلاح کړي نه وي، خو په دې باور لرم چي په هدف کی ستونځي نه پیښبوي لکه د بیلگي په توگه: ما لمړی گنپوهنه لکیلی وه، چی وروسته می شمیر پوهنی بانديې واړوله. شاید په ټولو ځایونو کي مي نه وي شمیرپوهنه کړي. دربهگوډي ما لمړی دریکونجی لیکلی وو، چی دا هم شاید د کتاب په اوږدوکي نه وي اصلاح شوی، داسی نور څه به هم وي، خو دې ته بیا گوته نیسم، چي د پوهیدلو لپاره دا کومی ستونځي ه پیښبوي.

۲ – تخنیکی ستونځی:
د گرانو لوستونکو پام به دې ته راوگرځی، چی څموږ لپاره د داسی کتاب لیکلوپه لار کی تخنیکی ستونځی هم خورا زیاتی دي. ما په کمپیوتر د شمیرپوهنی د فرمولونو لیکلو سره ستونځی لرودي، نو له دې امله می د نورو کتابونو دکاپیو څخه بیاتی کړې او دلته می سریښ کړې، چی کله کبړې هم سریښ شوې دي او په دې هم پوهیږم، چي دا یو غیر قانوني کار هم دی، خو هیله ده چی د رااخستلشووکتابونو لیکونکی او چاپوونکی به دې ته تفاهم ولري او زه له دوي د هرڅه له مخه د دوي له دې تفاهم څخه د خوښی څرگندونه کوم.

غواړم د گرانو لوستونکو دې ته هم پام راوگرځوم چی املایي غلطی به شوي وي،، خو په پوهیدلو کی به ستونځي پیښبي نه کړي، د هغي بخښنه غواړم، زه نور دا کار نه شم ځنډولی، ځکه چی ډیر ورسره ستړی شوم.
ما هیڅ دا فکر نه کاوه، چی زه دې داسی یو کار سر ته ورسوم، خو خدای(ج) په

حرکت کې برکت ایښوولی دی.
لنډه دا، چې ددې کتاب د چاپ پورې چمتووالي کار ټول زما په غاړه وو، چې زه ورسره همدومره ستړی شوی هم یم او نورې سهوې او د غلطیئو سمولو لپاره مې نور د زړه زور ختلی، که څه هم په دې اخرو ورځو کې د ملګرو په فشار ما ، څما په فکر ټولې سهوې لرې کړی.

## دریم – کتاب د کومو لوستونکو لپاره دی؟

ګران لوستونکی به د را اخستلشوو کتابونو څخه دې ته پام راوګرځولی شي، چې دا کتاب د نوو څه ډول لیکنو څخه راټول شوی. ددې کتاب لوستونکی د پوهنتون د شمیرپوهنی، پیدایښتي پوهنو، اقتصاد او همداسی د نورو پوهنو زدکړي دي.
دا کتاب په ښوونځي کی هم کارول کیدی شي، خو ښوونکی باید دې ته پام وکړي، چي هغه څه، چې د کتاب په پیل کی هم دي، په پیل کی نه شي لوستل کیدی.
ځنی څه په همدې لمړی برخه کی راغلي، چې نابلدو زدکوونکو ته به ستونځي پیدا کړي، خو دې ته د لږ پام وروسته، پام راګرځیدلی شي.

## څلورم – دلوستلو وړاندیز

ما لږ ستونځي لرودې، چې دا کتاب په خپله خوښه ترتیب کړم. زه مجبور شوم چي یو کتاب د بنستیز کتاب په توګه ونیسم او د نورو کتابونو رااخستنی بیا په کی ځاي کړم.
ما د بنستیز کتاب په څیر د شیفر–جورج–تریپلر کتاب ونیوه. نو له دې امله مې برخه ویش هم په همغه ډول کړی. ما غوښتل، چې د کتاب پیل په سمسوح یا بهتره سم اند ( لنډ سمند ) یعني منطق وکړم، خو هغه په اوومه برخه کي ځیړل شوی.
څما وړاندیز دادی، چې اوومه– اتمه او نهمه برخه دې د هرڅه لمړی ولوستل شي

اومه اتمه او نهمه برخه څمور په هیواد کی زما په فکر ، چی نا اشنا وي. په هر صورت د اوومی برخی سریزه خو دي د هرڅه له مخه ولوستل شي او همداسی د ډیري پوهی سره اشناییینه هم خورا ضرور ده

**شپیږم . مننه**

ددې کتاب لیکلو کی ، که څما د دوستانو لخوا دې کار ته راهڅول نه وی، نو دا کار سرته نه شو رسیدلی، په تیره بیا په المان کي د « افغانستان کلتوري ودې ټولنی »دوستانو. زه له دې د ټولو د زړه له کومی خوښنه کوم. د دې ټولنی د غړو او پلویانو زیاته خوښتنه، چی ددې کتاب چاپ یی د ټولنی په چوکاټ کي په غاړه اخستی.

ډیر محترم پوهاند مجاوراحمد زیار څخه زیاته مننه، چی د لغاتو د نظر څخه تیریدنه او همدا ډول په ټولو ماناوو کي ماته خوراګټوره مشوره هم راکړې.

زما میرمن زما د ستونځو شاهده وه. په زړه ناروغه، خو په پراخه او لوي زړه او پوره حوسیله یی زما د دې لیکنی ملاتړ کاوه، چی بی ددې له ملاتړ به دا کار هم سرته نه وی رسیدلی، که څه هم دا به یی کله کله ویل، چی ګوندې پیسی می باید ګټلی وی ، خو په دې پوهیږي، چی ددې چانس نه شته، کله کله به، چی به تنګه شوه نو ویل به یي چی نور دا د چرګانو ټونګي باید بس کړم. له دې امله زما دمیرمن شاپیری څخه هم د زړه له کومی خوښنه کوم او دا پراخه سینه او دا ناروغه زړه یی همداسی ښه تکړه ورته د لوي خداي(ج) څخه غواړم، چی زما د داسی کارونوملاتړ نور هم وکړي.

راتلونکی کارونه: د همدې کتاب سره سم ما یو د هندسی کتاب ژباړلی، چی د

المان د پنځم ټولګی ښځه هندسه په کی راغلی د څه نونورو شمیرپوهنیزو مضوعاتو سره. دا به هم په دې کتاب پسی تړلی چاپ ته ورکړي شي.
زه یو بل خوب هم لرم، چی همدا اوس دې د یوه بل الجبر کتاب لیکلو باندې پیل وکړم. موضوعات می په سر کی راګرځي.
که چیرې نور دوستان او شمیرپوهان د شمیر پوهنی په څانګه کی څه لیکل غواړي او په دې هکله ستونځي لري، او ستوځوبیو وړاندیزونه لري نو زه به ورسره وعده وکړم، چی دلته افغانان و ملاتړ ته راوهڅوم. د هغو دوستانو سره چي د شمیر پوهنی کوم کتاب ته یی د ژباړنی نیت وي او په افغانستان او پاکستان کی ژوند کوي نود هغو سره به وعده وکړم چی دلته ورته په دې ټولنه کی او یا د ټولنی دباندې د مرستی هلی خلی وکړم. ځما هدف دادی، چی موږ باید داسی کارونو ته ملا راوتړو. له ما ښځه لټ بل ځوك نه شته، دا چی ما دا کار سرته رسولی ، باور وکړي، چی هر بل افغان یی هم سرته رسولی شي،

په مینه ستاسو ماخان

## افغانی ، یوناني او الماني الف بی

ا ب پ ت ټ ث ج چ

څ ځ ڂ ح خ د ډ ذ

ر ړ ز ژ ږ ص ض ط

ظ ع غ ف ك ګ ق ل

م ن و ه ي ی ې ئ ۍ

### یوناني الف بی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Α | α | *Α* | *α* | Alpha |
| Β | β | *Β* | *β* | Beta |
| Γ | γ | *Γ* | *γ* | Gamma |
| Δ | δ | *Δ* | *δ* | Delta |
| Ε | ε | *Ε* | *ε* | Epsilon |
| Ζ | ζ | *Ζ* | *ζ* | Zeta |
| Η | η | *Η* | *η* | Eta |
| Θ | ϑ | *Θ* | *ϑ* | Theta |
| Ι | ι | *Ι* | *ι* | Iota |
| Κ | κ | *Κ* | *ϰ* | Kappa |
| Λ | λ | *Λ* | *λ* | Lambda |
| Μ | μ | *Μ* | *μ* | My |
| Ν | ν | *Ν* | *ν* | Ny |
| Ξ | ξ | *Ξ* | *ξ* | Xi |
| Ο | ο | *Ο* | *ο* | Omikron |
| Π | π | *Π* | *π* | Pi |
| Ρ | ρ | *Ρ* | *ϱ* | Rho |
| Σ | σ | *Σ* | *σ* | Sigma |
| Τ | τ | *Τ* | *τ* | Tau |
| Υ | υ | *Υ* | *υ* | Ypsilon |
| Φ | φ | *Φ* | *φ* | Phi |
| Χ | χ | *Χ* | *χ* | Chi |
| Ψ | ψ | *Ψ* | *ψ* | Psi |
| Ω | ω | *Ω* | *ω* | Omega |

### الماني الف بي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| A | a | *A* | *a* | 𝔄 | 𝔞 |
| B | b | *B* | *b* | 𝔅 | 𝔟 |
| C | c | *C* | *c* | ℭ | 𝔠 |
| D | d | *D* | *d* | 𝔇 | 𝔡 |
| E | e | *E* | *e* | 𝔈 | 𝔢 |
| F | f | *F* | *f* | 𝔉 | 𝔣 |
| G | g | *G* | *g* | 𝔊 | 𝔤 |
| H | h | *H* | *h* | ℌ | 𝔥 |
| I | i | *I* | *i* | ℑ | 𝔦 |
| J | j | *J* | *j* | 𝔍 | 𝔧 |
| K | k | *K* | *k* | 𝔎 | 𝔨 |
| L | l | *L* | *l* | 𝔏 | 𝔩 |
| M | m | *M* | *m* | 𝔐 | 𝔪 |
| N | n | *N* | *n* | 𝔑 | 𝔫 |
| O | o | *O* | *o* | 𝔒 | 𝔬 |
| P | p | *P* | *p* | 𝔓 | 𝔭 |
| Q | q | *Q* | *q* | 𝔔 | 𝔮 |
| R | r | *R* | *r* | ℜ | 𝔯 |
| S | s | *S* | *s* | 𝔖 | 𝔰 |
| T | t | *T* | *t* | 𝔗 | 𝔱 |
| U | u | *U* | *u* | 𝔘 | 𝔲 |
| V | v | *V* | *v* | 𝔙 | 𝔳 |
| W | w | *W* | *w* | 𝔚 | 𝔴 |
| X | x | *X* | *x* | 𝔛 | 𝔵 |
| Y | y | *Y* | *y* | 𝔜 | 𝔶 |
| Z | z | *Z* | *z* | ℨ | 𝔷 |

اومیګا په پښتو وینه ← ← په الماني ځ وینه

## شمیرپوهنیزي نخښي

| | |
|---|---|
| مساوي .................. | $=$ |
| نامساوي ( نوروکتابونو کی ) | $\models$ ( $=$ ) |
| کوچنی له ................. | $<$ |
| لوي له.................. | $>$ |
| کوچنی یا مساوي له ......... | $\leq$ |
| لوي یا مساوي له ........... | $\geq$ |
| ډیر کوچني ................ | $\ll$ |
| ډیر لوي ................. | $\gg$ |
| ورته یا متناسب........... | $\sim$ |
| کونګروا ینځ ............. | $\cong$ |
| همداسی یا ښایي یا په ګوره کوي | |
| کتیمټ.................... | $\equiv$ |
| غبرګ ................... | $\parallel$ |
| ناغبرګ................. | $\parallel$ |
| ولاړ په ................. | $\perp$ |
| دریګوډی ............... | $\triangle$ |
| ګردی ................. | $\bigcirc$ |
| نیمی یا قطر............. | $\emptyset$ |
| کونج .................. | $<$ |
| د دوه کرښو g او h ترمنځ کونج | $< (g,h)$ |
| کرښه، له A و B ته .......... | $\overline{AB}$ |
| له A و B ته لوریزه کرښه..... | $\overrightarrow{AB}$ |

لیندہ.................... AB

مطلقه ارزښت د ............ $|a|$

ایماجینار یوون (واحد )....... i

د اویلرګڼ = ...2,7182818 e

پي د لودولف ګڼ $\pi$ = ...3, 14149

د په لور هڅیږي یا کونورجنت کیږي ->

ناپای................... œ

د x فنکشن یا په واك چې بلواك مو بللی f(x)

(لوستل یې ( f د x یا د f, x لنډ : fx )

د x څیرونه په f(x) : لیکو: f(x) → x f : x →

دلته h د x فنکشن، g د x فنکشن h(x); g(x)

لیمس یا پوله............... lim

| | | |
|---|---|---|
| | ساین ............. | sin |
| تریګونومتریکي | کوساین ........... | cos |
| بلواك | تانجنت ............ | tan |
| | کوتنجنت........... | cot |
| | ارکوس ساین......... | arc sin |
| څیکلومتریکي | ارکوس کوساین ...... | arc cos |
| بلواك | ارکوس تانجنت ....... | arc tan |
| | ارکوس کوتانجنت..... | arc cot |

لوګاریتم و بنسټ a ته $\log_a$

لوګاریتم و بنسټ ۱۰ ته $\lg_{10}$

دیکادیکي لوګاریتم.....

لوګاریتم و بنسټ e ته ln

طبعي یا پیدایښتي لوکاریتم

کمپلکس ګڼونه........... $\mathbb{C}$

رییلګڼونه .............. $\mathbb{R}$

ټولګڼونه .............. $\mathbb{Z}$

نامنفي ټولګڼونه یا

طبعي ګڼونه د صفر سره $\mathbb{N}^*$

طبعي ګڼونه ........... $\mathbb{N}$

تعریفډېری ........... $D$

ارزښتډېری........... $W$

حلډېری ............ $L$

د ډېري A پوتنځډېری $P(A)$

ډېري.............. $M,N,A,B$

تشډېری ......... $\emptyset$

برخه ډېری............

پورته یا لویډېری ( چی بل ډېری خوندي لري )

ټولنډېری............ $\cup$

غوځډېری .......... $\cap$

د A کومپلیمنت ..... $CA$ , $A'$

د ډېریو ورته والی ...... $A \sim B$

د ډېریو ځل.......... $A \times B$

لوستل B اېيران A

توپیرډېری : A بي له B ده $A \setminus B$

دلته: a د b پرویشونی ده یاa b ویشي $a \mid b$

د a اوb غټ ګډ په ویشونی(لنډ : غ ګ و ) $ggt(a,b)$

د a اوb کوچني ګډ زیاتځله(لنډ : ك ګ ځ ) $kgv(a,b)$

دلته : a د M توکی دی ........ $a \in M$

او a د M توکی نه دی ........... $a \notin M$

ټولنخښه ( د ټولو x لپاره باور لري ) $\forall$

د موجودیت نخښه: یو x موجود دی $\exists$

کونیونکشن A او B لیکو $A \wedge B$

دیسینکشن A یا B لیکو $A \vee B$

( کله کله الترناتیو )

ایمپلیکاشن: له A څخه B لاس ته راځي $A \Rightarrow B$

نیگیشن یا نه والی $\neg$

د A او B ویناو ورته والی یا اکویوالنت $A \Leftrightarrow B$

له A څخه B لاس ته راځ او له B څخه A لاس ته راځي.

ماتریکس......... A نورو کتابونو کې $\|A\|$

دیترمینانت $|A|$

د a څخه n–امه ریښه $\sqrt[n]{a}$

د x اکسپونتشلبلواك

د n – فاکولتیت یعنی $n!=1.2.3....n$ $n!$

بینومخلوونی $\binom{n}{p}$

لوستل:n په p باندې

له a تر b واز اینتروال $]a,b[$

$= \{ x \mid a < x < b \}$

له a تر b بند اینتروال $[a, b]$

$= \{ x \mid a \leq x \leq b \}$

کینې واز اینتروال $]a, b]$

$= \{ x \mid a < x \leq b \}$

ښی واز اینتروال $[a, b[$

$= \{ x \mid a \leq x < b \}$

| | |
|---|---|
| د زیاتون نخښه (سیګما) | $\sum_{i=1}^{n}$ |
| که د زیاتون‌نخښه داسې وي | |
| لوستل: له $i = 1$ تر $n$ پورې | |
| ځلنخښه (پي) | $\prod_{i=1}^{n}$ |
| که داسې لیکل شوي وي | |
| لوستل: له $i = 1$ تر $n$ پورې | |
| پرموتیشن یا بدلون | $\begin{pmatrix} 1 & 2 & 3 & 4 & 5 \\ a_1 & a_2 & a_3 & a_4 & a_5 \end{pmatrix}$ |

## ۱ ۰ د شمیرپوهنې سم اند (د ریاضیاتو منطق (logic ))

سم اند (سماند) یا منطق ( logic یونانی کلمه ده، چې اند( فکر) یا وی( لغات) ته وایی).

د وینا د ټیک یا کره فرمولولو لپاره د سم اند(منطق) څخه کاراخستل کیږي د فورمال سم اند، د سم اند پوهنی بنسټ، د فکر ډول او فکر کولوقوانینو په څیر یې څیړنه د اریستو تلس( ۳۸٤ تر ۳۲۲ ز۰ ک۰ ا)) له خوا کیښول شوې۰

د ریاضیاتو منطق(د شمیرپوهنی سم اند) د شمیر پوهنې د یوې برخی په څیر پرمختګ یا وده وکړه۰ سم اند د شمیرپوهنی بنسټ دئ او د شمیر پوهنی په ټولو څانګو کی ننوتی۰

یادونه : سم اند په خپله خټه کې په فلسفه پورې تړلی مسلک دئ نو له دې امله دا لیکنه د ټولو مینه والولپاره په زړه پورې خوندیونې( متن ) لرودئ شي۰ هیله ده، چې ګڼ هیوادوال به یې وګوری او کمي به یې راپوره کړي، دلته او یا په ځانله لیکنه کی۰

## ۱ .۰۱ پوهنیزه ژبه او پیدایښتي- یا طبیعي ژبه

اند ( فکر) او ژبه یو له بل سره داسې تړلي، چې بیلیدنه یې ناشوني ده. په ورځني ژوند کی انسانان خپل اند یا فکر په طبیعي ژبه څرګندوي، مګر دا د مسلکي ژبی په څیر د

پوهنی( علم) لپاره بسیا نه کوي، ځکه چی د ځنو لغاتو مانا کره یا ټینګه نه ده ټاکل شوی، دا په دې مانا، چی په طبیعي ژبه کی یو لغات بیلی بیلې ماناوي لري لکه لور(د ریبلو لور) او لور( په کومه لور) او یا څو لغاتونه ، لکه شلغم، ټیپر او منګریتې، چی همغه یو څه یا شی په ګوته کوي.
په مسلکی نومونو کې یو څوترمینولوجي(Terminology لاتین، یونانی): په یوه مسلک کی شته(موجود دي ) د مسلکي لغاتونو ټولګه او په همدې توګه د هغوي ښوونه ، منځ ته راوړل کیږي، چې د کلمو موخور(هدفمند) کره یاکلک اېښوولو ( ځای پرځاي کولو) د نورمي ویناو استعمال او د هغوي او د ورځنی ژبی ویناود څخه ګټه اخلي٠

په دې ډول په شمیرپوهنه یا ریاضیاتو کی هم یوه پوهنیزه ژبه منځ ته راغلې، چی له پیدایښتي یا طبیعي ژبې او یوې ځانګړی ترمینولوجي سره یوځاي شوې یا په بل ډول : د پوهنیزې ژبی او یوې ځانګړي ترمینولوژي ټولګه ده٠

له دې امله شمیرپوهنه په یوه لوړه کچه ټیکوالی(Exaktheit ) ، په یوه لنډ، روښانه ، څرګند او له دې امله یو لیدوړ « وینا ډول» درلودی شي٠

شمیرپوهنه او سم اند یا منطق دواړه دیوې سمبولیک ژبی څخه د کارونی یا استعمال کار اخستی شي. د لغاتو په ځاي نخښی اېښوول کیږي، چی مصنوعي منځ ته راغلي او په ځانګړو ماناو سمبال دي٠

د شمیرپوهنی پوهنیزه ژبه کې غوښتنه داده، چې باید په کلکه او روښانه توګه د ریښتونو ( Realität واقعیتونو) شیانوObjects ، د هغو شمیرنیزو څیرو او د دې لپاره پیدا یا منځ ته راغلو نخښو ترمنځ توپیر وکړي. شیان له انسانانو احساسیږي، د یوه ذهنیت ( Abstruction ابسترکشن) له لارې په یوه کلیمه څیره ( متصور؟ ) کیږي. او شته والی یې د یوې نخښې جوړښت construction ممکنوي. څیره کوونه یې د شمیرنې شیان دی او یوه «نخښونه» غوره کوي، چې دیوه نوم اوزیات وخت د یوې نخښې په څیر ځان نیسي، د بیلګې په توګه : لکه هر طبیعي ګڼ(عدد) د یوې نخښې داسې په نامه د عددنخښې (ګڼنخښې) له لارې انځوریږي. دا نخښه څیفر Ziffer یا ګڼنخښه(عددنخښه)، چې عربې همغهٔ صفر دی, بلل کیږي. داسې نخښونې دبنسټیزو نخښؤ څخه منځ ته راغلي.
په درسي ځاي سیستم کې بنسټیز څیفرونه یا ګڼنخښې په لاندی ډول دي:

٠ ، ١ ، ٢ ، ٣ ، ٤ ، ٥ ، ٦ ، ٧ ، ٨ ، ٩ .

## ١ ٠ ٢ د شمیر پوهنی سم اند بنسټیزې کلمي

### ١ ٠ ٢ ٠ ١ ثابتی، متحولې او ترومونه(١)

Constants, variables, terms

په شمیرپوهنه کې شیان ، د شیانو ترمنځ اړیکي او د شیانو تړني په نخښو( سومبولونو) انځوریږي.

#### ١ – شمیرپوهنیزې نخښې

- د ثابتو(تل همغو) لپاره نخښې ( علامې): دا د یوه کره ټاکلې مانا لپاره نخښې دي یانې تغیر نه خوري، لکه ٧ ، ١٢ ، $\pi$ ، e, او داسې نور

- د اووښتونو یا واریابلو(متحولو) لپاره نخښې: دا د یوې ورکړ شوې ډیرۍ یا سټ ( په ډیرۍ پوهنه کې روښانه کیږي) داسې په زړه پورې توکی لپاره یوه نخښه ده، کومه چې د اووښتونویا متحولو بنسټسټ یا-ډیرۍ بلل کیږي، دا په لاتین تورو په نخښه کیږي او کله کله په اندکس(ز٠ایندکسونو) یا پیژندنخښه index ( ز٠ پیژندنخښې Indices ) چې ایندکس د تورو پښو ته راځي په نخښه کیږي٠

لکه: $a_1; a_2; b_i; i = 1,2,3 \ldots$

- اړیکنخښې : دا د شیانو اوګڼونو یا اعدادو ترمنځ د اړیکو نخښې دي لکه $<$ , $>$، $=$ , $\leq$, $\geq$ ,

- د نښلونو،کارونو، تړنو یا عملیونخښې : لکه زیاتون-(جمعه)، کمون-تفریق-) ، ځل-(ضرب-)، او ویش -یا تقسیم نخښې: / ، : +, -, *

---

- تخنیکي نخښی : لکه سیمیکولوم (,, ,,)، نوکان ( ) او نور ډولونه يې او کوما ،

د نخښو لړۍ : که نوکان، واریابلی( اووښتوني), ثابتی او د هغوي يوځاي ایښودل د اړیکو- ، نښلونو- ، او تخنیکی نخښو يوځاي ایښوول موخه ور یا هدفمند یو په بل زیات شي، نو یوه د نخښو لړی ترې منځ ته راځی٠

(۱) ثابتي((تل) همغه یا تل همغه، همغه ارزښتیزې) ،

متحولې :اوښتونی یا اوړیدونی یا واریابلې او ترمونه

بیلګه :

الف : د $3.( 1 + 2a ) – a + 144$ یوه د نخښو لړی (ترادف) ده

ب : $11x =6 – 3a ).( b – 12)$ ، دا د نخښو لړی نه ده، ځکه چې د نخښو لړۍ موخه وره یا هدفمنده نه ده ایښوول شوې، د برابرنخښې پسې نوک نه شته، دا په دې مانا، چې له دې څخه څه نه پوهیږو.

۲ - ترمونه terms, Termen : که په یوه لړۍ کې، یواځې ثابتې ( همغه )، اووښتونې( متحولې، واریابلې) نښلونې او تخنیکي نخښې کارول شوې وي، یانې اړیکې نه وي کارول شوي، نو دې ته ترم ویل کیږي. هر یو ترم پورې که واریابلی ولرې پیژندډیرۍ یا تعریفسټ هم اړه لري، دا د داسې اووښتونو یا متحولو اصلی بنسټسټ یوه برخډیرۍ او یا هغې سره برابر برخه سټ یا - ډېرۍ ده، په کوم کې چې د ترم ارزښت بیرته د بنسټډېرۍ توکی دی. د ترم ارزښت شمیرل کیدی شي، که د مخه ټاکلشوې نارونې یا عملیې اجرا شي، که چېرې اووښتونې یا واریابلې د پېژندډېرۍ د توکو نخښونه غوره کړي. دا په لویو لاتین تورو( اکه: $T, T_1, T_2$ ) په نخښه کیږي. که ترمونه اووښتونې ولري، نو د اووښتونو یوه ورزاته نخښه په نوکانو کې نیولکیږي، لکه :

$$T(x); T(x,y)$$

بیلګه :

الف : ترم 3/4 + 126 ، چې اووښتونې یا متحولې نه لري په Tسره په نخښه کوو او

لیکو: $T=126 + 3/4$ یا $T=126+\frac{3}{4}$

ب : ترم 2x + 10 چې اووښتونې یا متحولې x لري یانې $T(x) = 10 + 2x$ ۰ د اووښتونو بنسټېدیرۍ یا –ډېرۍ دې یا د طبیعي اعدادو ډیرۍ°Nوي

تعریفډیرۍ د بنسټېدیرۍ سره برابره ده، که په ترم کې د اووښتونې یا واریابلی x پۀ ځاي

یو پیدایښتې ګڼ یا طبیعي عدد 2 کیږدو، نو د ترم ارزښت دۍ : $T(2) = 14$

پ : $(x+2y)/x$ یا $\frac{x+2y}{x}$

ترم دۍ چې دوه متحولې لري او په $T(x,y)$ سره یې په نخښه کوو ۰ د اووښتونو یا متحولو بنسټېدیرۍ دې د پیدایښتې یا طبیعي اعدادو سټN وي, نو د x لپاره تعریفډیرۍ °N ده۰ د y لپاره N ( پیدایښتی ګڼونډیرۍ°N تعریفډیرۍ لپاره ترم نه دۍ تعریف یاپیژند نه لري)

د 0 = x لپاره ترم نه دۍ تعریف یا پیژند ند لري

د ترم $T(x,2y) = (x,y) /x$ یا $T(x,2y)=\frac{x+2y}{x}$

ارزښتشمیرنه د x=2 او y= 3 لپاره په دې ډول ده :4 = 2 / (2+6) = T(2,3)

یادونه: د ګڼونو لپاره دې دریمه او څلورمه برخه وکتل شي، چې هلته ګڼونډیرۍ ورکړ شوي دي۰

---

دا چې انسان د خپل چاپیریال د ټولو شیانو او پیدایښتونو سره لاس په ګریوان دئ، نو پوښتنې او هیلې رامنځ ته کیږي،غوښتنې لري او ویناوې کوي، په کومو ویناو کې،

چې شیان او ریښتونی( واقعیتونه) بیرته هنداره ( منعکس) کیږي یا په یوه څه یا شي، چی وینا کیږي، نو موخه ترې د هغه څه ریښتون حالت یا ځانښیونه ده۰ یوه وینا په واقعیت کې ټیک هلته ریښتیا ده، کله، چې په هغې کې شي حالت یا بهتره شي ځانښیونه په ریښتونې شته یا موجود وي، په بل حالت کې دا وینا ناریښتیا ( غلطه ) ده. موږ نیسو، چې دا څه دې په شمیرپوهنه کې کره ټاکلي وي او پریکړه دې پرې کیدی شي۰

پژند( تعریف ) ۱ ۰ ۱ :

وینا د یوه شی ، څرنګوالي (چې څنګه دئ)، د هغهٔ بیرته هندارونه یا منعکسونه ده۰ ( دا په دې مانا، چې وینا یو شی په وینا کې همغسی ښایي لکه څنګه چې دئ له دې امله شي هندارونه یامنعکسونه)، چې د ژبی له لارې وړاندې کیږي یا په همدې ډول په نخښه کیږي۰

یا په بل عبارت وینا د کلیمو داسې هدفمند یوځایوالی یا یوځاي ایښوول دي، چی د یوه شی حالت (ځانښیونه) یا شکل او د شیانو ریښتونې اړیکی بیرته هنداره یا منعکسوي او موخه وردئ، چې د هغه دریښتیاوالي پوښتنه رامنځ ته کړای شي۰

یا په بل ډول :

د وینا لاندې سرې یو ژبنی یوون، یا یووالی ( واحد unit ,Einheit)پوهیږي، کوم چې د شي اړیکی ( د شي څرنګوالی) بیانوي۰ دلته دا مهمه نه ده، چې دا وینا په کومه ژبه، په پیدایښتي (طبیعي) او که په مصنوعي ژبه ویل شوې ( افاده شوي) دا هم غوره نه ده، چې دا وینا د طبیعي پوهنو لپاره ده، د هوا حالاتو لپاره او که د بازار د نرخ لپاره ده۰

په بل او ورځني ډول: یوه وینا یوه جمله ده یا فرمول دئ، چې یا رښتیا او یا نارښتیا ده۰ داسې هم ویل کیږي، چې وینا یو «رښتیاارزښت » ،، رښتیا یا نا رښتیا ،، لري.

یعني : د شمیرپوهنې سم اند لپاره پریکړی د وینا « ریښتیا ارزښت»(رښښتیا یا نارښتیا) دی٠ نور خویونه په راتلونکی کې نه څیړل کیږي٠

ویناوې د لاتین په لویو تورو A , A* په نخښه کوو او داسې نور٠

## ۱ ٠ ۲ ٠ ۳ د دوه ارزښتوالی اصول یا پرینځیپ جمله

هره وینا یوائی یو ممکن « ریښتیا ارزښت» لرودی شي، دا په دې نامه، چی وینا یا ریښتیا ده او یا ناریښتیا. ( د دریم نه والی اصول یا پرینځیپ)٠

دا په دې ماناو چې ددې دوه ارزښتونو تر منځ بل ارزښت ناشونی دی. دوه ارزښتوالی او د دریم نه والی باید سره بدل نه شي.

که یوه ژبنۍ افاده یا وییسه د وینا په څیر ترتیبوو، دا بیا دلته ارزښتناکه ده، چی د ویناارزښت حتماً باید څرګند یا معلوم نه وي٠ که بالاخره ټوله پوهنه د رښتیا لور غوره کړي وي، بیاهم مورږ څرګند ژبنیو موادو ته اړ یو، چی د هغه شي حالت (ځاننیونه) افاده کړاي شو یا وویلی شو، د کومو په شته والی یا نه شته والی، چی پریکړه وشي٠

ټولې ویناوې له دې امله په دوه ټولګیو یا کلاسو ویشل کیږي، د رښتیا ویناو ټولګی او د نارښتیا ویناو ټولګی یا کلاس(صنف)٠

که وینا ریښتیا وي، نو ریښتیا ارزښت یې ریښتیادی او په w سره یې ښایو، که وینا ریښتیا ارزښت ناریښتیا ولري ، نو په f یا،، نه،، یې ښایواو وایو، چې د وینا ریښتیا ارزښت ناریښتیا دی

تکرار : هره جمله، چی « ریښتیا ارزښت» ( ریښتیا یا نا ریښتیا) ولري، وینا بلل کیږي

شمیرپوهنیز سم اند( منطق) د ویناو سره سر او کار لري..

بیلګې:

غونډاله ( جمله)

الف : » د کابل سین د کونړ له سین سره ګډیږي«ریښتیا وینا ده۰

ب : $3 + 4 = 7$ ریښتیا وینا ده

پ : » ٦ لومړنی ګڼ دی« دا ناریښتیا- یا ناتیک وینا ده۰( د اعدادو په برخه کې لومړني اعداد یاګڼونه کتلکیدی شي)

پوښتنجملی : » ته د څو کالو یې ؟ « نه شي کیدی یو ریښتیا ارزښت باندې تنظیم شي۰ له دې امله وینا نه ده۰

نورې بیلګې :

ویناوې دي:

(دپیتاګوراس (فیثاغورس) جمله۰

د کاتیتونو یا د یو بل سره ولاړو یا عمودو اړخونو یا ضلعو مربعګانو (څلوریو) زیاتون(جمعه) د هیپوتینوزې(اوږده اړخ قایمې زاویې ته مخامخ ضلعه یا قطر) د څلورۍ یا مربع سره برابر دۍ.

نورې بیلګې :

سرک لوند دۍ

ټول سپي خطرناک دي

$3 > 5$

په لاندې کې که یو کاربن له دوه اکسيجنه سره يوځاي یا زيات شي، نو کاربن دوه اکسيډ $CO_2$ وښايي

د دي پرڅې يا مخامخ يا پر خلاف يا برعکس : ويناوې نه دي:

د کابل ښار;NaCl ; لمده کوڅه

د افغانستان د خلکو ژوند په ديرش کلن جنګ کې

لاندې ويناوې

کيميا يوه طبيعي يا پيدايښتي پوهنه (علم) ده

۷ پر دريو بې له پاتې ( باقي) نه ويشل کيږي

د وينا «رينتيا ارزښت » رينتيا لري

لاندې ويناوې

برلين يو کوچنی ښار دی

3 < 5 پنځه له دريو کوچنی دی

ټول لومړني اعداد ياګنونه ناجوړه ( طاق) دي

کابل د کونړ پر سين پروت دی

هره يوه له دې ويناو « رينتيا ارزښت » نا رينتيا لري

نومه ونې: پورته مې د جفت لپاره، چې ورسره بلد يو جوړه وليکه، نو طاق ته ناجوړه وايو ·

په لاندې کې به وڅيړو، چې ويناوې شته، چې نورې ويناوې د خپلې برخی په څير په ځان کې خوندي( لنډ : خوندي) لري· داسې ويناوو ته يوځاېشوې يا يوځای ايښول شوې يا ځنځيري ويناوې وايو او که غواړی ! مرکبې ويناوې.

د دې لپاره بېلګه راوړو » کۀ د کوم ګڼ(عدد)a پروت زياتون يا پرته جمعه په 3 ويشوړ وي، نو داعدد يا ګڼ په 3 ويشوړ دی، يانی که عدد 1521 ولرو ، نو د دې عدد پرته جمعه 1+5+2+1=9 په 3 ويشوړ ده له دې لاس ته راځي، چې پخپله ۱۵۲۱ هم په 3 ويشوړ دی٠

که کومه وينا په داسې ويناوو ويشوړ يا ټوټه کيدونکې نه وي، نو دې ته بيا ساده وينا ويل کيږي٠

لکه : سپين غر يوه خورا جګه څوکه لري

يوه بله بېلګه د يوځای شوې( ځنځيري) وينا لپاره

سپينغر خورا خواريکښ دی، هغه په دې پوهيږي، چې نور کار ته وهڅوي٠

څرګنده ده، چې دواړه ساده جملې د برخويناو په څير يوځاي شوي ويناوې دي: » سپينغر خورا خواريکښ دی« همدا ډول » هغه (سپيغر) پوهيږي، چې نور کارته وهڅوي«٠

دا ويناوې کيدی شي په نورو ډولونو هم يو له بل سره داسې وتړل شي، چې رښتيالرزښت يې همغه پاتې شي٠

د بيلګي په توګه:

۱ - سپينغرخورا خواريکښ دی٠ يا هغه پوهيږي، چې نور کار ته وهڅوي

۲ - ځکه، چې هغه پوهيږي، نو کار ته وهڅوي، نو سپينغر خورا خواريکښ دی٠

۳ - دا چې سپينغر پوهيږي، چې نور کار ته وهڅوي ، نو سپيغر خورا خواريکښ دی٠

٤ – سره له دې، چې هغه پوهيږي، نور کار ته وهڅوي، هغه خورا خواريکښ دی٠

ګورو، چې په دې ډول يو له بل توپيريدونکی تړلې يا ځنځيري، يا يوځاي شوی ويناوې جوړيږي، چې په خپله رښتيالرزښت کی يو له بل توپير کيدی نه شي٠ د دوي توپير د

دوي يو له بل سره تړلو ځرنګوالي له لارې مخ ته پروت دئ يا رامنځ ته شوی دئ۰
په لاندې کې به ممکنه« ويناترنه» ( يا نورهم ښه: ويناځنځيرونه) تر ځيړنې لاندې ونيول شي.

پيژند ۱ ۰ ۲ :

يوه «ويناترنه» يا يو «ويناتړاو» ( نوره هم ښه: «زنځيرونه») داسې ژبنۍ وينيې(افادې ) دي، چې د هغوي په مرسته له يوې يا ډيرو ويناو څخه نوې ويناوې جوړيدی شي.

موږ د سم اند يا منطق ستپرينځيپ په لاس ته راوړنو سره ځانونه په داسې ويناو رابندوو، کومې چې داسې جوړې وي، چې رينتيا ارزښت يې يواځې او يواځې د «برخويناو» رينتيا ارزښت په واک کې وي۰

بيلګی

الف: سپين ډير خواريکښ دئ، هغه په دی پوهيږي، چې نور کار ته وهڅوي۰

ب : سپين يا راځی او يا لوبه نه کيږي۰

پ – د فوټبال په لوبه کې نه دباندې رفري او نه دننه رفري فاول يا ناسمي وليد۰

## ۱ ۰ ۲ ۰ ٤ ويناترنه يا وينابلواک ( - فنکشن يا – تابع)

د ويناترنو (عمليو)په هکله مو پورته بيلګو کې وليدل، چې که څوک د ترنو لپاره « او » او يا « سره له دې» ونيسي تل يوه يوځاي شوې وينا منځ ته راځي. دا وينا هلته او فقط هلته رينتيا ده، چې دواړه «برخويناوې» رينتيا وي. دلته د خبرو پرځاي غواړو «رينتيا فنکشن يا رښتيا تابع» وپيژنو. موږ پريکړه کوو، چې د په زړه پورې ويناوو ( ويناواريابلو يا وينا اووښتونو(وينا متحولو)) لپاره سومبولونه p,q,r,... او يا ا ، ب پ، وکارول شي يا استعمال شي. موږ دا غواړو ساده پيل کړو، يانی د يوه يو

ځاینیونکی(یوځائیز یا یوګوني) بلواک یا فنکشن او که همغه پخوانی ډول تابع مو ښه راځي، له تابع څخه٠

یادونه: د بلواک یا تابع کلمه وروسته څیړل کیږي، دلته د بلواک یا فنکشن پرځای ویناتړنه یا عملیه بسیا کوي. دا ځنی ویونه(لغات) ستونځی لري، چی د ښونځي زده کوونکي یې هغه ساده ډول فکر ته رابولم او د لوړو زده کړو خاوندانو ته دا کومې ستونځی نه لري.

نه والی(نفی)Negation

د وینا تړاو یا ویناتړنی(عملیې) «نه والی»: دیوی ویناP نه والی هغه وینا ده، چې هلته او یوائی هلته د ریښتیا ارزښت ناریښتیا لري، چیP ریښتیا ارزښت ریښتیا ولري٠

موږ د وینا P نه والی نفی په Pنه سره ښایو ، شمیرپوهنیزه نخښونه یې په لاندې توګه ده ¬P په یوه جدول کې ریښتیا فنکشن یا ریښتیابلواک کې داسی څرګند وو( دا چې زه کله کله هغه شمیرپوهنیز سومبول د نه p لپاره ¬P نه شم لیکلی، نو دا به همغسې p نه ولیکم.

| P | ¬P نه یا P |
|---|---|
| w | F |
| f | w |

د یوې وینا P تکرار نه والي یا بیا نه والي لاس ته راوړنه، لکه چې لاندې یې ګورو، هم خورا څرګنده ده .

| p | ¬p | ¬¬p |
|---|---|---|
| w | f | w |
| f | w | f |

دوه واره نه والی د همغې لومړنی وینا رښتیاارزښت لري

په پیداینښتي ژبه کی نه والی په«نه» یا « نا » خپل رښتینوالی مومي٠ «اباسین هغه خپل ټاکلی وخت ته را نه غی٠ دا د اباسین خپل ټاکلي وخت ته راغی « نه والی» دی٠

نه والی ته بیلګه : د وینا ¬ A نه والی : “7 < 3 „ وینا نهA ده: دا چی A رښتیا ده، نو ¬ A نارښتیا ده٠

ترنه(عملیه) یا کنجنکشن Conjunction ( لاتین: ترنه، دلته د « او (and)» ترنه یا تړاو):

## ویناقورم یا – بڼه:

د وینا په څټ یا - مخامخ یا - برعکس وینا بڼه رښتیا ارزښت نه لري، د ویناقورم یا – بڼې لپاره بیلګی دي لکه پوښتني، امرونه او نظرونه یاعقیدې:
۱ – هوا څنګه ده ؟

۲ - کورته لاړ شه

۳ – شین یو ښه رنګ دی٠

که په ترمونو کې، چې واریابلی یا اوښتونې لري، اړیکنخښی ولیکل شي، یوه وینابڼه منځ ته راځي٠ یوه د نخښو لړی کم له کمه د یوې اووښتونې یا متحولې د بیلګې په توګه

$3 + x < 5$ د بنسټیزورشو N کې نه ریښتیا ده او نه ناریښتیا٠ دا له دې امله وینا نه ده٠ که چیرې د واریابلې یا اووښتونې یا متحولې پر ځاې ۰ او ۱ ولیکل شي، نو بیا یوه رښتیا وینا ترې منځ ته راځي٠

---

که چیرې په ځاي يې نور د پيداينبتي ګڼونو توکی ځاي په ځاي شي، نو بيا ناريښتيا ويناوې منځ ته ترې راځي٠

دا چی اووښتونې يا متحولې د ښستيډيرۍ يا ښسټ سټ څخه په خوښه توکی اخستلی شي، نو له دې امله دا اووښتونې د خپلواک يا ازاده اووښتونې(متحولې) په نامه يادیږي٠

پيژند :

يوه ويناښه د نخښو لړی ده، چې کم له کمه يوه خپلواکه اوښتونې(متحوله) لري او د

- د دې اووښتونې په ځاي د ښستيزې ورشو يا ساحې او يا
- د دې اووښتونې ترلو څخه د کوانتيفيکاتورونو( کوانتورونو) په مرسته يوه وينا جوړيدی شي.

يادونه :

که په لاندې کې د تړاو يا تړنې کلمه منځ ته راځي، نو موخه ترې د « او » تړنه ياکنجنکشن conjunction دی٠ له ګرامر سره په توپير، چې هلته تړنه يا تړاو يو « تړونتيکی، تړاولغات» ښايي په سم اند کې تړنه يو څرګند( دوه ځايلرونکی يا دوه ځاييزيا نوره هم ښه دوه ګونی) جملې تړل يا په بل عبارت دوه ځاينيونکې ( نوره هم ښه : دوه ييز يا دوه- ګونی) فنکشن يا تابع(بلواک) تعريفوي يا پيژنی٠

د « او» تړنه او نخښه يې $\wedge$

پيژند ۱ ٠ ۳ :

$p \wedge q$ دوه ويناوې $p$ او $q$ يانې د «او » يوځايوالی$p$ او $q$ يواځې او يواځې هلته يو ريښتيا ارزښت ريښتيا لري، چې $p$ او$q$ دواړه ريښتيا ارزښت ريښتيا ولري٠ که له دې څخه يوه وينا هم ناريښتيا وي، نو بيا د « او » تړنه ناريښتيا ده ٠

د ترڼي نخښنه ددوه ويناو qاو p ترمنځ ليکل کيږي p/\q او ويل کيږي p او p

موږ د « او » ترڼه په لاندې جدول کې روښانه کوو یا انځوروو:

يادونه: په لاندې کې w رښتيا او f نارښتيا په معنا دي

| p | q | p/\q |
|---|---|---|
| w | w | w |
| w | f | f |
| f | w | f |
| f | f | f |

د « او » ترڼي ته بيلګه :

د دوه رښتينو ويناو د A وينا : ,, 7 > 3 ,, او د B وينا : 3 يو لومړنی ګڼ دی رښتيا وينا A /\ B ده « ۳ له ۷ کوچنی او لومړنی ګڼ هم دی»۰

يادونه: موږ ګران لوستونکي به سره يوځاي فکر وکړو، چې دا پريمګنونه لومړي او که لومړني ګڼونه وبولو۰ زه فکر کوم، چې لومړي ګڼونه لومړنی نه دي۰ دا ځکه لومړي ګڼونه دي، چې له دوي له زياتون او يا کمون څخه لومړی ګڼونه جوړيږي۰ موږ به يې زياتون په پام کې راولو، چې : 3+5=8

د دوه ويناو دا ترڼه يا کنجنکشن، چې مختلف رښتياارزښتونه ولري ياني د A وينا: 3 ,, ,, 7 < (رښتيا او د B وينا: « ۳ يو جوړه ګڼ دی ( نارښتيا)، نو A/\B وينا : چی ۳ له ۷ کوچنی دی او جوړه ګڼ دی « ( نارښتيا) ده۰ دا ويناترڼه ويناارزښت نارښتيا لري۰

د دوه ويناو د « او» ترڼه دA وينا: 7 < 3 او د B وينا « ۳ يو جوړه ګڼ يا جفتعدددی» يوه نارښتيا وينا ده : ۳ يو لومړنی ګڼ دی او له ۷ لوي دی۰

ومو لیدل، چی د « او » ترنه او یا کنجنکشن په ورسره بلده ( عادې) توګه هلته جوړیږي، چې دوه ویناجملې په «او» سره وتړل شي:

غوټی «پټیدځاي» پیداکړ او دا پټیدنه یې پټه وساتله»٠ کیدی شي له «مګر» « سره له دې هم» « په همدې ډول » ترنه وویله – یا افاده شي٠

پورته ډول ، د بیلګی په توګه: په پټپټکي کې « که سپین پټ شي او هوسۍ د هغه د پټیدو ځاي پیدا کړي او دا چاته ونه ښایې»، نو داسې وایو « او » یا « هم »

هوسۍ د سپین د پټیدو ځاي پیدا کړ« او » دا پټیدځاي یې پټ واسته٠

۱ ) هلمند موړ(بډا) شو او هیواد یې پریښود ٠

۲ ) سره له دې، چې برلین کوچنی‌ښار دی‌هلته د منی د المپیک لوبې کیږي

۳ ) ۱۵ ګڼ جوړه دی، د هغه پروت زیاتن په ۳ ویشونی‌دی

په ټولیزه توګه د « او » ترنه هلته ربښتیا ارزښت ربښتیا لري، چی د جملی ټولی برخې ربښتیاارزښت ریښتیا ولري، اړین نه ده، چې نظم په پام کی ونیول شي٠ په وینا ترنه کې کیدی شي زیاتې وینابرخی سره په ترنه « او » وتړل شي لکه « هغه راغی، ویې لیدل او بری یې په برخه شو»

پیژند ۱ ٠ ٤ :

د« یا(or)» ترنه یا دیسجنکشن Disjunction (لاتین: ټاکنه یا پریکړه) Alternative الترناتیو یا د » یا « ترنه» دا په « یا » بیرته ورکړ شوې «جمله ترنه» تل ژوروالی ته راهځوي: باید جوته شي، چی ترې تیریدنه یا صرف نظر په نه کیدونکی اوکه ترې نه تیریدونکی « یا » موخه ده٠ د دیسجنکشن یا د «یا»ترنی پیژند یا تعریف یواځنی دی او دا $\vee$ د یا ترننخښه ده.

د دیسجنکشن نخښه د دوه ویناو p اوq ترمنځ ځایول کیږي $p \vee q$ او ویل کیږي p یا q او

په لاندې ډول څرګندیږي٠

| p | Q | p∨q |
|---|---|---|
| w | W | w |
| w | f | W |
| f | w | w |
| f | f | f |

له دې پورته جدول څخه پوره جوتيږي، چې ديسجنکشن يا د « يا » تړنه p∨q يو داسې رښتياتابع (-بلواک يا- فنکشن) دئ، کوم چې هلته او هلته رښتيا فنکشن رښتيا اخلي، کله چې کم له کمه د « يا » تړنې يو غړی د رښتيا ارزښت رښتيا ولري يا واخلي٠ که د ديسجنکشن دواړه غړي نارښتيا وي نو p∨q هم نا رښتيا دئ٠ دا د رښتيا فنکشن کې د ځايونې « يا» څخه بل څه نه دي٠ يوه د «نه خونديکونې» يا « نه ځايونې» يا « په برکې نه نيونې» د « يا » وييـنه يا افاده ده، چې دا په نورو ژبو کې په بل ډول مګر په پښتو کې « يا٠٠٠ او يا ٠٠٠» ليکل کيږي٠

بيلګه ( د « يا » تړنې ته):

د دوه رېښتينو وييناو د « يا» تړنه د A وينا: „ 7 < 3„ اود B وينا: « ۳ د ٦ پرويشونی دئ» يوه رښتيا وينا A∨B ده : «۳ له ۷ کوچنی دئ او د ٦ پرويشونی هم دئ»٠

د دوه وييناو تړنه، چې مختلف ارزښتونه لري.

د A وينا „ 7 < 3 „ رښتيا او د B وينا: „ 7 =3 „ ( نارښتيا) ، نو A ∨ B ده، چې 7 < 3 يا 7 = 3 دا وينا تړنه د رښتيا ارزښت رښتيا w لري٠

---

د دوه نارښتیا ویناو د « یا »( " Or" ) تړنه:

د A وینا : "7 > 3 " او د B وینا: ۳ یو جوړه ګڼ (جفتت عدد)دئ یوه نارښتیا وینا $A \vee B$ ده:

« ۳ له ۷ لوي او نا جوړه ګڼ (طاق عدد)دئ»

الترناتیوAltenative یا انتیوالنخ Antivalenz ویناوې : دا د » یا « ویناتړنه باید د « یا ... او یا سره بدله نه شي، ځکه چې دا هلته هم نارښتیا ده، که چیرې دواړه ویناوی رښتیا وي٠

بیلګه : ( دوه الترناتیو ویناو ته ، چې رښتیا وي)

د وینا 7 > 3 او« ۳ یو لومړی ګڼ دئ» د الترناتیو په نامه داسې دئ « ۳ یا له ۷ کوچنئ دئ او یا یو لومړی ګڼ دئ» نارښتیا دئ٠

بیلګی : ( نه والي، کنجنکشن، دیسجنکشن ته )

یادونه: په لاندې w (Wahr) د رښتیا او(Falsch)f د نارښتیا لپاره کارول شوي.:

ویناتړاو

| A | $\pi$ پي تولګڼ دئ | f |
|---|---|---|
| B | $\pi$ ایراشنل ګڼ دی | W |
| C | صفر له پي$\pi$ کوچنی دئ | W |
| D | $\pi$ پي له دری کوچنی دئ | f |

-----------------------------------------------------------------------------------

| A | π تولګڼ نه دی | W |
|---|---|---|
| C | π کوچنی برابر له صفر | F |
| A∨C | π تولګڼ او له صفر لوي دی | f |
| B∧C | π ایراشنل او له صفر لوي دی | W |
| A∨C | π پي تولګڼ یا له صفر لوي دی | W |
| A∨D | π تولګڼ یا له ۳ کوچنی دی | f |

بیلګه : له دې بیلګی دمخه هغۀ فرمول دی

یا کتاب لولم او یا فلم ګورم۰ په دې بیلګه کی الترناتیو یا بدیل شته دی، یانې د » او یا « امکان شته۰ دا د » او یا « کارونه یا استعمال د خرڅلاو شیانو باندې باید بند وي۰ یانې دوه نرخونه باید ورنه کړای شي۰

دا لاندې فزیکي بېلګه ده، چې ګران لوستونکي دې پخپله هم ورته پام وکړي او ځیره دې یې په پام کې راولی۰ په شالت یا سرکټ الجبر کې د کجنکشن یا د »او« ترنې« ریبنتینوالی لپاره دوه پرلپسی(لړی) شالتونه تړل شوي دي،



Bild 7.1



Bild 7.2

---

## کمپلکس رښتیابلواک یا – فنکشنونه

دا وروستۍبیلګه په ګوته کوي، چې داسی یوځاي شوي ويناوې جوړيدئ شي، په کومو کې چې له یو زیات تړوني موجود وي۰

که دا ساده وینا که چې «په تیاتر کې نن لوبه کیږي» په p پس له دې جملی کمپلکس جوړخت دا نه تری تیریدونکی ( رښتیا ـ بلواک یا رښتیا فنکشن » نهp p\/ دئ۰ د دې لپاره هم د رښتیاارزښت فنکشن ورکول کیږي۰ د رښتیا ارزښت لپاره p له دې څخه نهp یا p نه ( دا دواړه دې برابر ومنل شي) او بیا هم نهp\/p جوړیږي، چې جدول یې په لاندې ډول ورکړ شوی دئ

د یوې وینا نه والی

| p | Pنه | p\/pنه |
|---|---|---|
| w | f | W |
| f | w | w |

لاس ته راوړنه یا نتیجه هکیک کوونکي نه ده یوه وینا نهp\/p تل رښتیا ده، بی له ځانګړي حالت او له دې خپلواک، چې p کوم رښتیاارزښت غوره کوي .

ویناسم اندیزې ویینې یا افادې، چې د هغې رښتیابلواک کټمټ یا identisch(identic) رښتیا دئ( دا په دې مانا، چی که د ویناؤوښتونکې یا واریابلې ته هر رښتیاارزښت ورکړ شي یانې رښتیا یا نارښتیا تل د رښتیا ارزښت رښتیاغوره کوي)، وینا سم اندیزه قوانین بلل کیږي، یا ورته تاوتولوژي Tautologien

ویناسم اندیزې ویینې یا افادې، چې د هغو رښتیاارزښت بلواک کټمټ نارښتیا دئ ( دا په دې مانا چې د متحولې یا اووښتونې په هره وینا ارزښت وینا نارښتیا ارزښت غوره کوي)

کونترا-ديکتوريکي ويڼا بلل کيږي٠ورته ويناوې کونتراديکشنونه contradiction ( د دوه ويناوو مخامخوالی يا – تضاد)

بيلګه :

رښتياارزښت دې د وييني يا افادې نه(p\/q) لپاره وشميرل شي په همدې وخت کې دې د نهp\/q رښتياارزښت هم وشميرل شي او له بل سره دې پرتله شي.

جمله : ښايو، چې $\neg(p \wedge q) \Leftrightarrow \neg p \vee \neg q$

$$
\begin{array}{l}
p...q....p \vee q....\neg(p \vee q)......\neg p...\neg q...\neg p \wedge \neg q \\
w...w......w.........f.............f.....f.........f \\
w...f.......w.........f.............f......w.........f \\
f...w........w.........f............w.......f.........f \\
f...f........f.........w............w........w.........w
\end{array}
$$

داچې د مخ ته پراته جدول څلورم او اوم درځ يو په بل پريوځي يا يو د بل سره برابر دي، نو ويېنې يا افادې $\neg(p \vee q)$ او $\neg p \wedge \neg q$ په څرګند ډول همغه رښتيا بلواک يا – قنکشنونه دي. دا په دې معنا چې ،، جملې: دا نارښتيا ده، چې p يا q ،، او ،، نه q او نه p ،، همغه رښتيا - ( او په دې ډول همغه نارښتيا-) شرايط لري، که د p او q په ځای بلې يوې ليدونکې جملې ځای نيولی وي. دا ډول دوه وينا تړاو ـوينا تړنه ) او تل همغه ارزښت ورکوي.

که په دې عمليو کې نوکان ځا په ځای شي، نو د عمليې ارزښت طبعاً همغه نه پاتيږي، لکه

د بې نوکانو عمليې.

## ايمپليکيشن implication (لاتين: ورراګډول، خورول):

که دوه ویناوې د خپل تړاو له لارې« که۰۰۰، نو سره تنظیم یا ترتیب شي اپیلیکیشن سومبول=> چې دا سومبول د دواړو ویناو Aاو B ترمنځ ولاړ دی: او دا مانا لري:

که A نوB یا په همدیډول «له A څخه B لاس ته راځي» وینا A ته پریمیس Prämisse ( لاتین نیونه (فرضیه) وایي او وینا B ته کونکلوزیون Konklusion ( لاتین: پاي لاس ته راوړنه ) وایي۰ د دوه ویناو ایمپلیکیشن تیک هلته نارښتیا دی، چې پریمیسس رښتیا او کونکلوزیون نارښتیا وي۰ په بل ډول رښتیا دی۰

د دوه ویناو لاس ته راوړنه یا تعقیب د لاندې جدول له لارې یواځنی څرګندیدی شي

د لاس ته راوړنې یا ایمپلیکیشن یا پسې راتلنی، په ځان پسې لرنې سومبول =>

| P | q | p=> q |
|---|---|---|
| w | w | w |
| w | f | f |
| f | w | w |
| f | f | w |

دلته داسی یوه تړنه لرو، چې له دوه برخه ویناو A اوB تیک هلته یو نارښتیا یوځاي شوې ویناچې په p=/>qسره ښایو)۰

کله چې لومړیبرخه وینارښتیا او دومه برخه وینا نارښتیا وي په کمپیوتري یا پروګام ژبه کې داسی ویل کیږي: If….., then…..

کومې ژبنۍ افادې یا ویینې په دې رښتیا فنکشن بیرته اړول کیږي. بیرته یا په څټ

---

راګرځيدلی شي. په ښکاره ډول د بيلګې په توګه جمله: که پسرلی لوبه وګټي، نو ماښام د تلويزيون کتلو ته کورته راځي.

نارېښتيا ده، که د جملې لومړئ برخه رښتياوي او دويمه نارښتيا. که په جدول کې برخه جملو ارزښتونه لکه د بيلګې په توګه د جدول لومړئ همداسې څلورمه کرښه سره يو د بل پرتله شي(که دواړه برخه جملې رښتيا همداسې نا رښتيا وي) پرابلمونه نه پيښوي، په دې حالت کې تېوله وينا رښتيا ده، که لومړئ برخه وينا نارښتيا او معکوس دويمه برخه رښتياوي، نو په دې حالت کې به د بيلګې په توګه جمله نارښتيا ونه ليدل شي( که پسرلی لوبه ونه ګټي او سره له دې هم تلويزيون ليدلو ته راشي)، نو بيا د دوه ارزښتوالي پرينځيپ له مخې يواځې دا ارزښت ،، رښتيا،، باقي پاتې کيږي. د پورته فنکشني پوره والي له مخې په ګوته کوو، چې هم $\neg p \vee q$ او هم $\neg(p \vee \neg q)$ ټيک بيرته بيا(بيرته) د ايمپليکيشن د رښتيا فنکشنونه ورکوي.

په بل ډول افادې يې: q که p، او يا هم p ، د q لپاره پوره کيدونکی شرط دی( په بل ډول يې: qد p لپاره اړيين شرط دی)

ورته والی :يوارزښتوالی(برابرارزښتوالی ) Äquivalent

که دوه ويناوې qاو p خپله ترڼه په » ټيک هلته ، که » په هم دې ډول « هلته او هلته، که» تنظيم کړي، دې ته ورته والی يا ايکويوالنت وايي۰ د ايکويوالنت سومبول دئ ≈ د دواړو ويناو pاوq ترمنځ دا سومبول پروت دئ p ≈q په دې مانا، چې p ټيک هلته که q ۰ ايکويوالنت سومبول يې په دواړو خواو ايمپليکيشن لري: له p څخه q لاس ته راځي او له qڅخه p

د دوه ويناو ايکويوالنت ټيک هلته رښتيا دئ، که دواړه ويناوې رښتيا يا دواړه ويناوې نارښتيا وي۰

دا شي څرنګوالی يا شي حالت په لاندې جدول کې روښانوو:

| P⇔q | q | p |
|---|---|---|
| W | w | w |
| F | f | w |
| F | w | f |
| W | f | f |

سیده او مخامخ یا په ځښ دې په دې مانا وي، چی له p څخه q لاس ته راځی او په ځښ، یا نی له q څخه p لاس ته راځی۰

۱ ۰ ۳ د ویناېلواکو یا ـفنکشنونو ترمنځ اړیکې

د دوه ویناو تړنه سم اندیزه یا منطقي برابرارزښته بلل کیږي، که د ویناو ربښتیاارزښت د تړنویناارزښت سره یو په بل وخوري یا یو بل سره برابر شي۰ دا د یو ویناارزښت جدول له لارې څرګندیدی شي۰ ومو لیدل، چی ایکویوالنت په دواړو لورو لاس ته راوړنه یا ایمپلیکیشن دی۰ په لاندې جدول کی به وګورو، چې دریم او شپږم درځونه، متې یا ستنی څنګه یو بل سره ځان نیسی یا ګورو، چی سره یوارزښته دي۰

| p | q | p ⇔ q | p=>q | q ⇒ p | (p ⇒ q) (q ⇒ p) |
|---|---|---|---|---|---|
| W | w | w | w | w | ...........W |
| *w* | *f* | f | f | *w* | .........*f* |
| F | *w* | *f* | *w* | *f* | ..........F |
| *f* | *f* | w | w | *w* | .........*w* |

ورته والی اړیکی د ورته والی یا ایکویوالنت سومبول باندې هم ښوول کیږي

$$(p \Leftrightarrow q) \Leftrightarrow (p \Rightarrow q)(q \Rightarrow p)$$

---

دا ورته والي ويناتړنه موږ ته دا اجازه راکوي، چې يو بل سره بدل کړو يانی د يوه ځاي د بل سره بدل کړو٠ له دې څخه پيچلو تړنو کې لکه د شالت الجبر کې کار اخستل کيږي٠

د دې ورته والی ويناتړنې غوره بيلګه د،،دي مورګان،، قاعده ده De Morgansche Regel

$$(1)......(\overline{p \wedge q}) \Leftrightarrow (\overline{p} \vee \overline{q})$$
$$(2)......(\overline{p \vee q}) \Leftrightarrow (\overline{p} \wedge \overline{q})$$

د کنجنکشن او ديسجنکشن لپاره ديستريبوتيو قانون:

$$(3) \quad [p\wedge(q\vee r)] \;\Leftrightarrow\; [(p\wedge q) \vee (p\wedge r)]$$

$$(4) \quad [p\vee(q\wedge r)] \;\Leftrightarrow\; [(p\vee q) \wedge (p\vee r)]$$

## ١ ٠ ٤ وينافورم يا - بڼه او کوانتورونه

وينا سم اند په لاندې ډول ساده ټوليز کيدی شي٠ د بيلګي په توګه که مختلف شيان همغه خويونه ولري، نو ضرور ده، چې دا فورمال وويلي - - يا افاده کړای شو: دلته د ويناو پر ځاي د وينافورم څخه خبري دي، يا غږيږو٠ دا داسی ژبنۍ ويينې يا افادې دي، چې د شيانو لپاره واريابلی يا اووښتوني لري او لومړی د مناسب انفرادې ځاي پرځاي وروسته يوه وينا شي٠ بيلګي يی په لاندی ډول دي

لومړی : x پر دوه ويشونی دی »

دويم : » z يو هوار څلورګوډی( څلورضلعي) » دی٠

دريم : «u له v څخه لوي » دی او داسی نور

---

ترهر ځاي پرځاي كولو وروسته رښتيا يا نارښتيا وينا لاس ته راځي٠ كه په دويم كی دz پرځاي «ډيرګوډی» (كثيرالاضلاع) ځاي پرځاي شي، نو يوه رښتيا وينا لاس ته راځي٠

كه په لومړي كیx د7 پرځاي ځاي پرځاي شي، نو يوه نارښتيا وينا لاس ته راځی٠ دريم يوه اړيكه(ريليشن( ده، چې هلته د انفراديو د ايښولو ترتيب هم يو رول لري٠ دلته كه د تورو پر ځاي ګڼونه ږدو، نو هلته دا رښتيا وينا ده كه د لومړي توري پرځاي ستر ګڼ ځاي پرځاي شي٠د فورمال سم اند په ژبه د پريديكات په شكل٠( له دې امله دې د سم اند برخی ته د پري ديكات first-order logic سم اند يا منطق وايي٠

بيرته داسی ليكو P(x), Q(z), R(u,v)

يوه بله كارونه يا عمليه شته، چې له وينا بڼي څخه وينا جوړوي٠ چې كوانتيفيكيشن Quantifikationبلل كيږي٠ دا ويناهغه وخت منځ ته راځي، چې ټول د وينا بڼی افراد همغه خويونه ولري، چې ټولوينا (Allaussage) ورته وايو٠ياچې په پوښتل شوي چاپريال كې داسي افراد شته وي، چې همغه خويونه ولري، دې ډول وينا ته موږ د شتون يا موجوديت وينا يا Existenzaussage وايو٠ زموږ په بيلګه كې يی استعمال لاندې را په ګوته وكي

څلورم : (پيداينښتی يا طبيعي) ګڼونه يا اعداد شته، چې په دوه ويشل كيږي

پنځم : ټولې څلوری (مربع) هوارې ډيرګوډی يا كثيرالاضلاع دي٠

د ټولكوانتور يا ټولوينا لپاره نخښه∀

د شتون- يا موجوديتكوانتور يا شتونوينا لپاره نخښه ∃

يادونه : د ټولكوانتور لپاره نخښه د سرچپه A په څير ده او د شته والي كوانتور لپاره نخښه د په څټ E په څير ده په پام كې دې وي، چی د كوانتورونو وركونې وروسته اووښتونې ( وياريابلی يا مجهولی) وركول كيږي٠

څلور ۱ : $\exists x \in P(x)$

داسی يي لولو، چی يوx په P(x) كې شته

---

پنځه ١ : $\forall z \in Q(x)$

دا داسی لولو: د ټولوz لپاره ، چې په Q(x) کې پروت دئ ( يا د ټولو٠٠ له ٠٠٠ څخه )

دا سومبول ∃ دا مانا لري،چې« کم له کمه يو ٠٠٠ شته»د وينابنې او په دې پورې اړوند واريابلو يا اووښتونو ډيريو جوړه، د دې سومبول سره يوه د« شتون- يا موجوديت وينا» ورکوي، په نامه د اووښتونو ساحه يا ډيرئ کې، په کوم کې چې کم له کمه يوه داسې اووښتونې ځاي په ځايونه شته وي کومه چې وينابڼه رښتيا وينا کوي٠

بيلګې ( د رښتيا شتون - موجوديت ويناوي)

اول - $\exists x \in R: x+1=0$

( لوستل : يو داسی رييل ګڼ يا عدد x له( په) R (کې) شته ،د کوم لپاره چې0 =x+1 باور لري) دلته x دا مانا لري، چې x د رييلګڼډيرئ يا ريل ا عدادو سټ R توکی دئ او ∈ په دې مانا دی، چې توګي له ٠٠٠ دی٠

دويم : $\exists x \in R:$

$x^2 + 4x = 0$

(لوستل: يو x له(په) R څخه(کې) شته د کوم لپاره ، چې $x^2+4x= 0$ باور لري)

دريم : $\exists x \in R: \quad x^2 - 4 = 0$

( په دې جمله کې حتی دوه رييلګڼونه شته دی، چې د هغې لپاره $x^2-4 = 0$ باور لري

: (2، -2)

جمله ( د يوې شتونوينا يا موجوديتوينا نه والی يا نفی)

$\exists x \notin R: x^2+1=0$

لوستل: داسې رييلګڼ x نه شته، د کوم لپاره چې برابرون $x^2+1 = 0$ باور ولري

---

داسې وينابنې هم شته، د کومو لپاره، چې د اووښتونديرئ يا واريابلديرئ ټولو توکو لپاره رښتيا وينا شي٠

بيلګه: وينابنه « x په 2 ويشونی دئ » د جوړه ګڼونو هريوه لپاره رښتيا ارزښت لري په

دا سومبول $\forall$ په دې مانا دئ، چې « د ټولو x لپاره» د وينابنې او په همدې پوري اړوند د وينا متحولو ډېرئ يا سټ (ويناووښتونديرئ يا واريابلډيرئ) ترنه له دې سومبول سره يوه Universalaussage يونيورزالوينا يا ټولوينا منځ ته راځي٠ په دې مانا چې د دې متحولو ډېرئ(اووښتونديرئ) هر توکی لپاره د وينابنې څخه يوه رښتيا وينا جوړيږي٠

جمله : (دUniversalaussage يونيورزال- يا ټوليزې وينا يا ټولوينا لپاره

$$(1)........\forall x \in G : 2 | x$$

( د ټولو جوړه ګڼونو (جفت اعدادو)لپاره باور لري، چې x په ۲ ويشونی دئ )

$$(2).......\forall \in R, x^2 > x$$

( د ټولو رييلاعدادو x لپاره, کوم چې له يوه لوي وي باور لري $x^2 > x$ )

جمله : ( د نارښتيا ټوليزې وينا لپاره )

$$\forall x \in R : x^2 > x$$

دا وينا نارښتيا ده، ځکه چې دا د $1 \geq x \geq 0$ لپاره باور نه لري، پس دا وينا د ټولو ريل عددونو لپاره باور نه لري٠

۱ ٠ ۵ اړين – يا ضروري- او پوره کيدونکي شرطونه

د ايمپليکيکشن سومبولA=>B («کهA نوB » « له A څخه Bلاس ته راځي»)يا په بل ډول : که A باور ولري، نوB هم باور لري»

په شمیرپوهنه کې ځانګړي فرمولونه شته٠

الف ) « A د B لپاره پوره کیدونکی شرط دی»

ب ) « B د A لپاره یو اړیین یا ضروري شرط دی»

فرمولونه الف ) وایي، چې د A رښتینوالی د B رښتینوالی ځان پسی لري یانی له آ څخه ب پوره کیږي یا له یوه څخه وبل ته رسیږو یا د A شرطونه د B د شرطونو پوره کیدنو لپاره نیونه(فرضیه) ده او ب شرط پوره کیدنه اړیینه یا ضرور ده، چی آ پوره شي٠

بیا : وینا باور لري٠

د B وینا د باور لرلو لپاره دا پوره دی یا پوره کیدونکی دی یا بسیا کوي، که د A وینا باور ولري

بیلګي د پوره کیدونکو شرطونو لپاره:

۱ – ویناA : « ګڼ n پر ٦ ویشونی دی»

وینا B : « ګڼ n پر ۳ ویشونی دی»

A => B

د دې لپاره پوره کیدونکی شرط دی یا بسیا کوي، چې یو رییل ګڼ n پر ۳ ویشونی دی، که دا پر ٦ ویشونی وي٠
که n پر ٦ ویشونی وي، نو پر ۳هم ویشونی دی ٠ دا نو تراوسه دا مانا نه لري، چې ضرور دې ګڼ n که پر ۳ ویشونی وي، پر ٦ دې هم ویشونی وي٠ د بیلګي په توګه ګڼ ۹ پر ۳ ویشونی دی ، مګر په ٦ نه دی ویشونی٠

۲ - وینا A : “n > 7„

وینا B :وي دې: n > 6

A => B

د دې لپاره دا پوره کیدونکی دی، چې یو ریبلګۍ ن له ٦ څخه لوي دی٠ که اړیکې، چې ن له ٦ لو دی، باور ولري

داسې ریبلګنونه هم شته، چې له ٦ څخه لوي دي، مګر له٧ څخه لوي نه دي٠ د بیلګي په توګه ٥ ،٦ یا شپږ.نیم

د ب) فرمولبندي وایي، چې وینا ب باورلرل غوښتونکی یا اړیین یا ضرور دی، د دې لپاره، چې وینا A باور ولري٠

که وینا B باور ونه لري نو وینا A هم باور نه لري ٠

بیلګی د اړیین( ضروري ) شرطونو لپاره:

١ – د دې لپاره، چې یوګڼ n پر 6 وویشل شي، اړین(ضرور) ده، چې دا ګڼ پر3 ویشونی وي٠ یو ګڼ، چې پر3 نه وي ویشونی، نو پر ٦هم ویشونی نه دی٠

٢ - ویناA : » څلور ګوډی یوه څلوری یا مربع ده«

وینا B : » څلور ګوډی څلور ولاړ کونجونه لري« $A => B$

د دې لپاره ضرور، چې یوه څلورګوډی یوه مربع(څلوری ) ده دا خویونه دي، چې څلور ولاړ کونجونه ولري، که ټول ګونجونه یې ولاړ نه وي، نو مربع یا څلوری نه ده که یوه څلورګډی څلور ولاړکونجونه ولري اړین نه ده، چې څلوری یا مربع دې وي٠

د برابروالي یا برابرارزښتي ( ایکویوالنت) سومبول«

$$A<=> B$$

(په دواړو لورو ایمپلیکیشن) لپاره په شمیرپوهنه کې هم فرمولبندي شته: دا وایي، چې A دB لپاره یو ضروري او پوره کیدونکی شرط دی٠ « دا وایي، چېA ټیک هلته باور لري، کله چې B باور ولري

بیلګی : د پوره کیدونکی او ضروري شرطونو لپاره

۱ – ویناA : « ګڼ یا عدد n پر ٦ ویشونی دی»

وینا B : « عدد n پر ۳ او ۲ ویشونی دی»

A <=> B

د دې لپاره ضرور او پوره کیدونکې دی، چې: n پر ٦ ویشونکی دی، که دا عدد پر۳ او ۲ ویشونکي وي٠

۲ – وینا A : » څلورګوډی یا څلورضلعي یوه څلوری یا مربع ده«

ویناB : « څلورګوډی څلور ولاړ کونجونه لري او څلو برابر اوږده اړخونه یا ضلعي»

A<=>B

ددې لپاره، چې څلورګوډی یو مربع دی ضرور او پوره کیدونکی دا خویونه دي، چې څلور ولاړ کونجونه او څلو برابر اوږده اړخونه( ضلعې ) ولري٠

۱ ٠ ٦ د شمیرکلمو یا ویو(لغاتونو) شمیرنیز مفهوم( ترې پو هیدنه)

پیژند ( تعریف ) څه شی دی؟

د کلیمی ټاکنه ده، چې ټیک ټاکلي او له مخامخوالی(تضاد) ازاده وي٠ په عامو خبرو کی کله که کلیمی راځي ، چې په مختلفو اشکالو ترې ځانګړي ماناوي اخستل کیږي، خوپه شمیرپو هنه کي داسي نه ده٠

د شمیرنی ټاکنی یا پیژندونه (تعریفونه)د ټیک څرګندې پو هنې یوه نه پرېښوونکی سمبال اله ده، یانې ترې تیریدل نه شي کیدای٠

## جمله څه شی دی ؟

ټولې ربښتونې ويناوې په شميرپوهنه کې جملې بلل کيږي، چې د پيژندنې لپاره ښوونې يا ثبوت ته اړتيا لري ۰

## اکسيوم Axium څه شی دئ؟

بې ثبوته ربښتينې وينا ته اکسيوم وايي

شميرپوهنيزې يا د رياضي جملې زياتې نيونې( فرضيي) او ثابتول( غوښتنه،جوته ونه يا ښوونه) په بر کې- يا خوندي لري۰

که دا وينا داسی وي، نو پس داسی به هم وي۰ دلته که دا وينا داسې وي نيونه يا فرضيه ده او نو داسې هم ده۰ دا غوښتنه ده، چې بايد ثبوت يا وښوول شي۰

اکسيوم : ۱ طبيعي عدد دئ ( پيانو Peano)

: ټکی هغه دئ، چې پر ويشونی نه وي يانې په ټکی ويشل بند دي۰ (Euklid)

: حتمي پيښه د پيښې امکان ۱ درجه لري۰

جمله: که درېګودې ولاړکونجيز وي، نو( پس) د پيتا ګوراس (pythagoras ) درسي جمله باور لري

: يو لومړی ګڼ، چې له دوه لوی وي، بايد ناجوړه( طاق) وي

: په اخره جمله کې نيونه(فرضيه) ده ( که يو پريم عدد له ۲ لوي وي۰۰۰) او ثبوت يې ( هر له دوه لوي عدد په دوه ويشل کيږي پس لومړی ګڼ نه شي کيدی، نو دا تل ناجوړه ياطاق دئ)په څټوالي يا تضاد کې پيژندل کيږي۰
تل داسی نه ده، چې د جملی د ربښتينوالی څخه دې د جملی په څټوالی يا تضاد هم ربښتيا وي۰

لکه:

جمله:   که ٦٪ پس ۲٪ هم   ( رښتیا)

جمله:  که ۲ ٪ پس ٦٪ هم  ( نارښتیا)

۰۰۰۰۰۰ټیک هلته ، چۀ که۰۰۰۰یوځاي راوړي

بیلګه : که چیرې غبرګ اړخیز کې هر دننني کونج ۹۰ درجې وي، نو دا ولاړکونجیز(قام الزاویه) دئ۰

په ځت : که غبرګ اړخیز ولاړ کونجیز وي، نو دننني کونجونه ۹۰ درجې لوي دي۰

یوځایراوړل :

یو غبرګ اړخیزټیک هلته( هلته او هلته یا بیا او بیا یا یواځنې او یواځنې ټاکلی یا یواځنی ټاکلی او په ځت ) ولاړکونجیز دئ، کله چې دنننی کونجونه ۹۰ درجې لوي وي۰

۱ ۰ ۷ برابرونونه او نابرابرونونه (مساوات او نامساوات)

پیلبیلګه:

لمسی ، پلار او نیکه په ګډه ۱۱۳ کلن دي۰ پلار د ځوي د عمر یوکال کم اوه ځله عمر لري او نیکه د پلار د عمر له دوه برابره څخه ٦ کاله نور هم زیات عمر لري۰

پوښتنه : له دوي څخه هر یو څو کلن دئ؟

د ځوي عمر په x سره ښایو، نو د پلار عمر 7 x-1 دئ او د نیکه عمر 2(7x-1)+6 کاله کیږي، چې د دې ټولو زېښت وختونو زیاتون یا جمع بیا ۱۱۳ کاله دئ یانی :

---

$$x+7x-1+2(7x-1)+6 = 113$$

یو ډول ترمونه رامنځ ته کیږي او ساده کیږي:

$$x+7x-1+14x-2+6= 113 \ \backslash/ \ \ 22x +3 = 113$$

په کینې ۲۲ ځله د x ارزښت چې ۳ په ورزیات شوي او دا له ۱۱۳ سره برابر دی

نو دا ګڼ ۲۲ ځله x بیا ۱۱۰ کیږي: 22x = 110 او د x ساده ارزښت ۲۲ – مه برخه د ۱۱۰ ده یانې: په دې لاس ته راوړنې سره زوي ۵ کلن پلار ۳٤ کلن او نیکه ۷٤ کلن دی٠

که ترمونه $T^{\wedge}$ او$T^{o}$ د برابروننخښنی = باندې یو له بل سره وتړل شي، نولاندې برابرون پیداکیږي: $T^{\wedge} = T^{o}$ ٠

که چیرې ترمونه په دې نخښو $\leq$ , $\geq$ , < , > او(نابرابروننخښه =| ) یو له بل سره وتړل شي یو نابراون منځ ته راځي.

برابرونونه او نابرابرونونه چې ناټاکلي یا مجهولو سره یوځای شي، هغې ته د وینافورم یا نوره هم ښه وینا بڼه ویل کیږي٠

دا یا رښتیا یا نارښتیا وینا کیدی شي٠ که ناټاکلي، چې اوښتونې یې هم بولو( د بیلګې په توګه z , x , y ) پر ځاي د بنسټېدیرۍ ګنونه ولیکل شي٠ په برابرونپوهنه کې له پیژند – یا تعریفډیرۍ څخه هغه ګنونه غوره دي، چې د ورکړ شوي فورم یا بڼې یو برابرون یا نابرابرون رښتیا وینا کړي٠

د یو برابرون یا نابرابرون (مساوات یا نامساوات) هر عدد ځاي پرځاي کول، چې وینابڼه پیژند - یا تعریفډیرۍ پورې اړوند وي او دا وینا ریښتینې کوي، اوبیډیرۍ یا حلډیرۍ L کې پروت دی یا د برابرون یا نابرابرون په ډکوونکو ( پوره کوونکو) ډیریو پورې تړلی برابرون ته ، چې د ټولو ځاي پرځاي کولو لپاره ریښتونې وینا ورکوي کټمټ یا (identisch, identic) وینا وایي٠

بیلګې :

الف ) $5x= 4$ د $x = 0,8 = 4/5$ لپاره رښتیا وینا ته ځی : یانې

$5.0,8=4$ نو $L=\{0,8\}$

ب ) $3x^2 = 48$ د $x = 4$ لپاره او $x = -4$ لپاره رښتیا وینا ته ځې

یانی $3.(-4)^2 = 48$ څخه لاس ته راځی او په ښت $3.4 = 48$ پس- $L = \{ -4;4\}$

۲ – نابرابرون الف) $2x > 1 => L= \{x | x> -1/2 \}$

ب ) $x < 3 => L = \{ x | x > -3 \}$

۳ – کتمتوالی : الف ) $(x+y)(x-y) = x^2 - y^2$

ب ) $(a+b)^2 = a^2+b^2 +2ab$

دوه برابرونونه یا نابرابرونونه، چې په خپل پیژندډیریکې سره برابر وي( یا یو پربل وخوري،

یانې یو د بل پرځاي ایښول کیدی شي) او همغه اوبی- یا حلډیری ولري ایکویوالنت (Equivalent) یا «ځاي پرځاي کول برابر» یا ورته بلل کیږي۰

یادونه : دا لاندې د جدول په ډول دی، له پورته له ښي و کیڼ لور ته په درځ یانې ولاړ درځ لوستل کیږي

---

| | نابرابرون | براون |
|---|---|---|
| ۱ ) وینافورم کې کیدی شي،چې خواوې سره بدلې شي | $T° < T^\wedge$ $T^\wedge > T°$<br>$2x < 6$ $6 > 2x$ | $T°=T^\wedge$ $T^\wedge = T°$<br>$3x=5y$ $5y = 3x$ |
| ۲ ) که وینافورم په دواړو خواوو همغه ترم زیات یا کم شي او د یوې ورزیات ترم پیژندډیری خوندې وساتل شي یا ځای کړي | $T^\wedge < T°$ => <br>$T^\wedge \pm T° < T° \pm T^\wedge$ | $T^\wedge = T°$=><br>$T^\wedge \pm T° = T° \pm T^\wedge$ |
| یا تغیر ونه خوري۰<br>مخامخ یا کیڼ لوربیلګه<br>کې تفریفډیری تغیر خوړلی | $3y < 4x$ ⇔<br>⇔ $4y \pm 2x < 4x \pm 2x$ | $2z = 8$ =><br>$2z \pm 3 = 8 \pm 3$ |

پر څټ بیلګه

$2z=8$ |=> $2z+3-z=8+3-z$

دا چې $z=4$ دې نوي ورزیات شوي

ترم $3-z$نه دی تعریف یا پیژندنه

لري، ځکه چې $3 - z$ یو پیدایښتي یا طبیعي ګڼ نه دی

۳ ) د وینافورم دواړه $T^\wedge=T°$ ⇔ $T^\wedge.T > T°.T$ $T^\wedge < T°$ ⇔

---

| | | |
|---|---|---|
| اړخونه کيدی شي چې | $T^\wedge < T^\circ \Leftrightarrow$ | $T^\wedge.T = T^\circ.T$ |
| له همغه مثبت ترم سره | $T^\wedge:T > T^\circ:T$ | $\Leftrightarrow T^\wedge:T = T^\circ : T$ |
| ځل او يا په همغه ترم | که $T > 0$ | که $T > 0$ وي |
| وويشل شي | $3y - 12 < 30z - 90$ | $4x+2 = 10x-6$ |
| | $\Leftrightarrow y - 4 < 10z - 30$ | $\Leftrightarrow 2x + 1 = 5x - 3$ |
| | $\Leftrightarrow 4y - 16 < 40z - 120$ | $\Leftrightarrow 2xc + 10 = 50x - 30$ |
| ٤) د يوه برابرون | $T^\wedge < T^\circ \Leftrightarrow T^\wedge.T > T^\circ.T$ | $T^\wedge = T^\circ \Leftrightarrow$ |
| دواړه خواوې کيدی شي، | $T^\wedge < T^\circ$ | $T^\wedge.T = T^\circ.T$ |
| چې له يوه منفي ترم سره | $\Leftrightarrow T^\wedge:T = T^\circ : T$ | $\Leftrightarrow T^\wedge:T > T^\circ:T$ |
| ځل شي يا دواړه خواوې په | $T < 0$ | $T < 0$ |
| همغه ترم وويشل شي. | $-2y < -4$ | $3x = 12$ |
| که په دې فورم کې | $\Leftrightarrow y > 2$ | $\Leftrightarrow -9x = -36$ |
| نابرابرونونه وي نو د | $\Leftrightarrow 10y > 20$ | $\Leftrightarrow x = 4$ |
| برابرون لورې بدليږي، يا نخښه بدليږي | | |

يادونه :

په ټوليزه، چې په کتابونو کې ليکل شوي، ترمونه Tيو او T دوه په لاندې توګه د اينډکس سره په نخښه کوي: $T_1, T_2$

۱ . ۷ . تمرنونه:

۱ – په ۱ . ۳ –مه برخه کې د رښتيا ارزښت ورتو الی له (۱) څخه تر (۴) پورې وښاياست.

۲ – د رښتيا ارزښت جدول له لارې وښاياست، چې لاندط ويناتړاو منطقي مساوي ارزښت دی.

الف - ( A⇔B) او (B⇔A)

ب- (A=>B) او(AvB)

## ۲ ۰ ډیرۍ پوهنه Die Mengenlehre, the set theory

ډیرۍ پوهنې یا سټ تیوري باید خپل ځاي په شمیرپوهنه او همدا ډول په نورو پیداینېتي- یا طبیعی پوهنو کې نیولي وي، نو له دې امله د لنډ تیر وخت را په دې خوا په پرمختللو هیوادونو او اوس هم په افغانستان کې د ښوونځیو په لیکلوست کې پیل شوه، ځکه چې بې له ډیرپیوهنې یا سټ تیوري شمیرپوهنه بې مفهومه ده او ناشونې۰ دا به له دې لیکنې څخه همدا اوس څرګنده شي، چې پیداینېتي یا طبیعي ګڼونه یا - اعداد او هرڅه د ګڼونو په څیره کې ، چې موږ ته څرګند وي هغه ټولې ډیرۍ یا سټ دي او بل څه نه دي۰

ډیري پوهنې (سټ تیوري)په پرمختللو هیوادونو کې هم د شلمې پیړۍ په دویه نیمه کې د میندو او پلرونو لپاره ستونځې پیدا کړي، ځکه، چې دوي د ډیرۍ پوهنې سره بلد نه وو او د خپلو کوچنیانو سره یې مرسته نه شوه کولی۰

د ډیرۍ کلمه له عدددونو یا ګڼونو پخوانۍ ده، که څه هم پخوا انسانانو په خپله خوښه نه ښووله لکه اوس۰

په تراوس ورسره بلد ډول هم سټ یا ډېرئ پیژندل کیږي، لکه د ښوونځی نجونې او هلکان، یا په یوه ټولګی کې میزونه او چوکی، یا لکه هغه نیزوړي، چې نیز راوړي او د سپین په پټي کې یې ډیری ډیری اچولي یا د هسکې مینې د ښوونځي په لسم ټولګی کې د زده کوونکو، کتابونو، کتابچو پنسلونو، څوکیو او میزونو سټ یا ډیری۰

د ډېری پوهنې کلمه: موږ په افغانستان کې هم د ډیری له کلیمې سره اوس بلد شوي یو که څه هم تربیلو بیلو پردیو نومونو لاندې، چی زما په اند به زده کوونکو او ښوونکو ته یوائې ذهني غوره والي لري، زه غواړم، چی د ډیری څو مختلف پیژندونه یا تعریفونه ورکړم، چې ښه مو ورته پام راوګرځي، دا له دې امله هم، چی د ډیري پوهنې ( سټ تیوري) غوره والی ته مو نور هم پام راوګرځي۰

ډیرئ پوهنه د شمیرپوهنې سټه جوړوي او د شمیرپوهنې ټولې څانګې په ډیری پوهنه

وداني دي۰ نن شمیرپوهنه بې له ډیری پوهنې داسې وده نه شي کولی او سټه یې وزي۰

پیژند ۲ ۰ ۱

الف : ډیری یا سټ د ټاکلو شیانو یا کلمو ټولګه ( یوځایوالی، مجموعه) ده، چې پخپله خوښه د یوې ټاکلې بنسټډیری یا بنسټ سټ څخه ، چې د پیژندلشویو اصولو یا کرکتریین له مخې ټاکل شوې وي

ب : د الماني شمیرپوه کانتور( George Cantor 1845 – 1918 ) پیژند:

زموږ د خیال یا لید څرګند ټاکلو ، ټیک یو له بل توپیرکیدونکو شیانو ټولګې ( یوځایټولولو یا مجموعې ) ته ډیری وایي او هر شي ته، چې ډیری یې جوړه کړې یا ډیری ترې جوړه شوې وي، د ډیری – یا سټ توکی وایی۰

( Set and elements of set ډیری او د ډیری توکی)

پ : د مختلفو شیانو ټولګې یوه یوون یا یووالی ( واحد Einheit, unite) ته په

شميرپوهنه کې ډيرئ وايي

يادونه : د واحد لپاره، چې تراوسه ورسره بلد يو يوون يا يووالى ښه نومه ونې دي٠ دا که څو واره وويل شي، نو باورلرم، چې ورسره بلديږو٠

ت : څرګند شيان د ګډو نخښو پربنسټ، چې تر څيرنې لاندې نيول کيږي او د دې نخښو له امله يوځاي ټوليږي يا ټولګه جوړوي، ډيرئ يا سټ تشکيلوي٠ ګډې نخښې کيدى شي ښکلا، کوچنيوالى او داسې نور وي٠

يادونه: د ګرانو لوستونکو دې دې ته پام وي، چې په پورته پيژندونو کې يې غوره او د پام وړ پيژند ياتعريف د جورج کانتور پيژند دى.

بيلګه :

ګڼونه يا عددونه، نومونه، او توري کيدى شي د ډيريو بيلګو په توګه راوړل شي٠

ګورو، چې د ډيرئ يا سټ کلمه په شميرپوهنه کې بل ډول ده لکه په ولسي ژبه کې، چې دلته ډيرئ د څنو شيانو زيات يوځاي کول موخه ده، د ځانګړو شرايطو لاندې.

په شميرپوهنه کې ډيرئ په لويو لاتين تورو ليکل کيږي لکه ..A,B, او يا ,M,N, ....X,Y, د ډيريو توکي د لاتين په کوچنيو تورو ليکل کيږي، لکه ...a,b,c, او ...m,n,x,v,

د دې لپاره، چې وپوهيږو، چې ايا توکى a د ډيرئ A توکى دئ که نه نو ليکو: $a \in A$

په پورته کې توکى a د ډيرئ A توګى دئ.

که a د A توکى نه وي ، نو ليکو: $a \notin A$ دلته a د ډيرئ A توکى نه دئ

دا پورته لينکدود له ښى وکيڼ لور ته هم ليکلى شو، چې پرلپسى لړئ يې ساتلې پاتې شي٠ زه يې په څټ ليکنو سره ليکنيزې ستونځى لرم٠دا لاندې يې دياګرام دئ، خو توکي يې بل ډول ليکل شوي دي، چې ګرانو ستونکو ته به د پوهيدلو ستونځ پيدا نه کړي




ډیرئ A دې له a,b,c,d,e,f,g,h, توکو جوړه وي، چې په لاندې توګه یی لیکو

$$A = \{ a,b,c,d,e,f,g,h\}$$

ګورو، چې { } د ډیرئ یا سټ نخښه ده

یادونه : دا د ډیرئ کلمه موږ په افغانستان کې سټ set بولو ، چې انګریزي ده، په فارسي کې یې مجموعه بولي، چی ډیرئ د شیانو مجموعه یا ټولګه ده او په الماني کې ورته مینګې Die Mengeوایي۰ هغه بنسټیزه خبره یې په پیژند یا تعریف کې ده، که موږ یې چې هرڅنګه وبولو، خو د یو بل څخه کره توپیرکیدونکو شیانو ټولګی ته ۰۰۰ وایو. د ټکو پر ځاي ، چی هر څه لیکی، خو موږ ګورو، چې په پښتو یې هغۀ مناسبه نوموه ونه ډیرئ ده، دا د کوټې کوټې څخه یا راپنډ او داسې نورو څخه ماته ښه ښکاریږي او زموږ ولس د دې نامه سره بلد دئ، چې په پوهنه او لا نور ښه په شمیرپوهنه کې باید وکارول شي۰ زه بیا په دې ټینګار کوم، چې دا خپل ، چې ما ټاکلی یا بل څوک یې که بل ډول بولی د انګریزي یا الماني یا بل پردي نوم څخه ښه او پوهوړ دی۰ د سټ مانا که په ډکشنري کی وګورئ ،نو پوه به شو، چې له دې نوم څخه مو خپل د پښتو نوم ښه او مناسب دئ. ګوروچې دا نوم اوس ژورنالستان هم زیات کاروي او وایي، چې ډېری یا ډېرئ خلکو.... وکتل.

بیلګه ۲ ۰ ۱

الف ) $M_1$ ( لوستل M ایندکس ۱ دا به په لاندې نخښونه کې روښانه شي پام دې وي، چې (index(indeces ایندکش پیژند نخښې ته وايي) دې د لومړیو ګڼونو ډیر ۍ ( اعدادو سټ) وي، نو باور لري: $7 \in M_1, 8 \notin M_1$

ب ) $M_2$ دې د لاندې برابرونونو یا مساواتو د اوبیونو(حلونو) ډیرۍ وي

$$(x+1)(x-2) = 0$$

نو باور لري : $-1 \in M_2, 2 \in M_2, 1 \notin M_2$

بیلګه ۲ ۰ ۲ :

الف ) د مساوات $(x+1)(x-2) = 0$ حل ډیرۍ $M_2$ ده $M_2 = \{-1, 2\}$

ب ) د جوړه (جفت) عددونو یاګڼونو ډیرۍ $M_3$ ده $M_3 = \{0, 2, -2, 4, -4, ....\}$

ډیرۍ لکه، چې ومو ویل د توکو د خویونو له لارې هم څرګندیدی شي یا ورکول کیدی شي۰

M = { x | د خوویونو ۰۰۰ سره x}

(لوستل: M د ټولو x ډیرۍ ده له خویونو ۰۰۰۰۰ سره )

بیلګه ۲ ۰ ۳

الف ) { د ټولو x سټ ، چې هلته x یو لومړنی عدد یا ګڼ دی| M = { x

b ) M = { x | (x+1)(x-2) = 0 }

$$c)..........M = \{x \mid x \in R, 0 \le x \le 1\}$$

تشدیرۍ ډیرۍ، چې کوم توکی ونه لري تشدیرۍ یا خالي سټ بلل کیږي او داسې یې لیکو: $\theta$ یا $\{\}=\emptyset$

دا دې د یوې ډیرۍ یا سټ سره، چې یواځی له صفر څخه جوړه ده، نه بدلیږي یانې

$$\{0\}\neq\{\}=\emptyset$$

بیلګه ۲ ۰ ٤

$$\{x \mid x\in Z, x^2+x-\frac{3}{4}=0\}=\theta$$

ځکه، چې د برابرون یا مساوات $x^2+x-3/4=0$ حلډیرۍ

$$\{x|x^2+x-/4=0\}=\{1/2\ ,\ -3/2\}$$

کوم ټولګڼ یا تام عدد خوندي نه لري۰

ټولګڼونو پیژند ته دې پام وي، چې د راشنلګڼونو برخډیرۍ ده۰دریمه برخه دې وکتلشي

بیلګه ۲ ۰ ٥ : د ز ۰ کال د دویمې نیمایي میاشتو سټ یا ډیرۍ په Ju , aug sep , ok,no, de سره ښایو او لیکو: A= { jul,aug,sep.ok,no,de}

نو داسې لرو یا نوره هم ښه داسې لیکلی شو: $jul \in A, jun \notin A$

دا په دې مانا، چې جولای د A توکی دی او جون د A توکی نه دی

بیلګه ۲ ۰ ٦ : ټول مندیزي، چې نن مازیګر لمانځه ته د غارخلي لمنځتون یا جماعت ته راغلي۰

بیلګه ۲ ۰ ۷ : د هغو میرو ، غواوو او وزو ډېرۍ، چې نن په نخاس کې خرڅې شوې.

بیلګه ۲ : ۸ د ټولو هغۇ ګڼونو ډیرۍ(عددونو سټ) M، چې ۳۰ ویشي یانې

۱ ، ۲ ، ۳ ، ٥ ، ٦ ، ۱۰ ، ۱٥ ، ۳۰

داسې یې لیکو : $M = \{ 1,2,3,5,6,10,15,30\}$

دا سټ پاي سټ ده داسې وایو، چې ډیرۍ یا سټ M د ټولو هغو توکوx - لکه پورته - جوړ شوې، چې ۳۰ ویشي او داسې یې لیکو: $M =\{ x \mid x$ د ۳۰ پرویشونی ګڼ $\}$

د ټولو پیدایښتي یا طبیعي ګڼونو ډیرۍ(اعدادو سټ) N ټاکو او داسې یې لیکو:

$$N = \{ 1,2,3,4\ldots.\}$$

دا نه پای لرونکی یا لایتناهي ډیرۍ( سټ) ده ، چې په لاندې ډول یې نخښه ده یا په لاندې ډول په نخښه کيږي: $\infty$

ګورو، چې په شمیرپوهنه کی موږ پر پای ګڼونو برسیره ناپای عددونو سره هم مخامخ یو٠

## ۲ ٠ ۲ د ډیریو ترمنځ اړیکې relation between sets

د سټونو ترمنځ غوره اړیکی د برابروالی او خوندیوني یا خوندي لرنې ( مساویوالی او یو په بل کې ځاي لرلو) اړیکې دي٠

پیژند ۲ ٠ ۲ دوه ډیري یا سټونه $M_1$ او $M_2$ یو د بل سره برابرې دي، یانې

$$M_1 = M_2$$

که چیرې د ډیرۍ یا سټ $M_1$ هر توکی د ډیرۍ یا سټ $M_2$ توکی هم وي او پر څټ یا برعکس هر د $M_2$ توکی د $M_1$ توکی هم وي٠

برابرې ډیرۍ برابر توکي هم لري

د بيلګی په توګه

$$M_1 = \{x \mid (x+1)(x-2)(x+3) = 0\}$$
$$M_2 = \{-1, 2, -3\}$$
$$\Leftrightarrow M_1 = M_2$$

ګورو، چې $M_1$ د $M_2$ سره برابر دئ

## برخډيرۍ(سبسټ subset)

پيژند ۲ ۰ ۳ :

يوه سټ $M_1$ د سټ يا ډېرۍ $M_2$ برخډيرۍ ( لاندې ډيرۍ، خوندي ډيرۍ يا سب سټ ) بلل کيږي يا $M_1$ په $M_2$ کې ځای ده يا نوره هم ښه $M_1$ په $M_2$ کې خوندي ده، ليکندود يا ليکنډول:

$M_1 \subseteq M_2$ که د ډيرۍ $M_1$ هر توکی دسټ يا ډېرۍ $M_2$ توکی هم وي۰

کيدی شي، چې $M_1$ د $M_2$ سره برابر هم وي، که برابروالی يا مساوات نا شوني وي نو بيا د اصلي برخډيرۍ يا اصلي سب سټ څخه غږيږو ۰

پيژند ۲ ۰ ٤ :

يوه ډيرۍ يا سټ $M_1$ د $M_2$ اصلي برخډيرۍ ده او داسې يې ليکو: $M_1 \subset M_2$

که $M_1 \subseteq M_2$ باور ولري او کم له کمه د $M_2$ یو توکی د $M_1$ توکی نه وي۰

بیلګې:

الف) که ولرو $M_1 = \{-1,1\}, M_2 = \{-1,0,1\}$ نو $M_1$ په $M_2$ کې اصلی خوندي دی

ب ) د ټولو څلوریو ( مربعو) ډیرۍ د ټولوڅلورګوډیو( څلور اضلاعو) اصلي برخډیرۍ ده۰

پ) ځیره ۱ ۰ ۱ په هواره یا سطحه کې ټکوډیرۍ ښایي، د کومو لپاره چې باور لري، که $M_1$ او $M_2$ د ټکو ډیرۍ یا-سټ وي $M_1 \subset M_2$



که په پورته ځیره کې وګورو، نو یوه ګردۍ ( دایره ) $M_1$ په بله لویه $M_2$ ګردۍ کې خوندي ده۰

تشډیرۍ په هره ډیرۍ کې خوندي ده۰ هره ډیرۍ په خپل ځان کې د نااصلي برخډیرۍ په ځیر خوندي ده۰

یا دا پیژند :

$A \subseteq B$ که باور ولري : $x \in A \Rightarrow x \in B$

بیلګه:

$A \subseteq A = \{1,2,3,4,5\}$ $B = \{3,4,5\}$ B




پيژند ۲ ۰ ۵ :

هغه ډيرۍ، چې هيڅ توکی ونه لري تشډيرۍ بلل کيږي او داسې يی ليکو: $M=\theta=\{\}$

يادونه : پام دې وي، چې صفر ډيرۍ او تشډيرۍ سره بدلې نه شي يانې لاندې ته:
$\{\} = \theta \neq \{0\}$

## د يوې ډېرۍ توان يا تواندېرۍ ( توانسټ)

پيژند ۲ ۰ ٦ :

د يوې ډيرۍ M د ټولو برخډيريو ډيرۍ پوتنځډيرۍ يا په تواندیرۍ(-سټ) بلل

کيږي او داسې يې ليکو:P(M) په تواندېرۍ توکي لري، چی هر يو يی بيا خپله

ډيرۍ ده۰

بيلګه : د M = { a,b.c} ډيرۍ دا لاندې په تواندېرۍ لري

$$P(M) = \{ \{a\},\{b\},\{c\},\{a,b\},\{a,c\},\{b,c\},\{a,b,c\}\}$$

هره ډيرۍ چې د توکو څخه جوړه وي هغه ټيک n جګ 2n توکی لري يانی : $n^{2n}$

دا پورته د جملې په څير د پوره ايندکشن له لارې اوبی ( حل-) کيدی شي( لومړۍ برخه دې وکتل شي)۰ دا دنده د ګرانو لوستونکو د خوښې کار دی، که کوي يې۰

پيژند ۲ ۰ ۷ : د ډيرۍM زور |M| لاندې د ډيرۍ د توکو تعداد ياګڼون پوهيږو۰ که دوه ډيرۍ M اوN همغه زور ولري هغه ته يوزوريزه – يا برابرزوريزه ډيرۍ وايو او داسې يې ليکو: |M| = |N|

د برابرونونو يا مساواتو او خونديې ساتنو خويونه

الف ) رفلکسيو- يا د انعکاس( هندارونيزې) اړيکيreflexivity

هغه اړيکي، چې د هغه او د هغه دخپل ځان ترمنځ رينتوني ويناوې ورکړ شوي وي رفليکسيويا انعکاسي اړيکي بلل کيږي لکه: $M = M, M \subseteq M$

خونديي لرل اړيکې رفلکسيو نه دي $M \not\subset M$

دا په دې مانا، چې هيڅ ډيرۍ د خپل ځان اصلي برخډيرۍ يا برخسټ نه شي کيدی٠

ب) سيومتريکې اړيکې Symetric relation

هغه اړيکې سيومتريک بلل کيږي، چې د شيانو ترمنځ چې کارول کيږي يا استعماليږي يو له بل سره بدليدلی شي٠

لکه $M_1 = M_2 \Leftrightarrow M_2 = M_1$

خونديي لرل سيومتريکې اړيکې نه دي:

که وي $M_1 \subseteq M_2$ نو اړيکی $M_2 \subset M_1$ ناربښتيا يا ناټيک دي

دا هلته چې وي: $M_1 \neq M_2$

پ ) ترانزيتيويتي Transitivity يا وړون اړيکې

ترانزيتيويتي هغه اړيکې دي، چې له يوه نه وبل ته يې د وړلو امکان شته يا موجود وي٠

له L = M او M = N ښخه لاس ته راځي L = N

او

$$M_1 \subseteq M_2 \wedge M_2 \subseteq M_3 \Rightarrow M_1 \subseteq M_3$$

پورته داسې لولو: که $M_1$ د $M_2$ برخډيرۍ او $M_2$ د $M_3$ برخډيرۍ وي، نوله دې څخه لاس ته راځي، چې $M_1$ د $M_3$ برخډيرۍ ده

برابونونه يا مساوات او په بل کې ځايه ونه يا خوندي ساتنه ترانزيتيو اړيکې يا خويونه دي

## ۲ ۰ ۲ په ډيرۍ کې کارونې يا عمليې

ټولنډيرۍ (د اتحاد سټ )

پيژند۲ ۰ ۸ :

د دوه ډيريو $M_1$ او $M_2$ ټولنډيرۍ(unionاتحاد سټ)، چې د ډيريو ټولنه ورته وايو ده:

$$M = M_1 \cup M_2$$

دلته داسې پوهيږو، چې M د ټولو هغو توکو څخه جوړه شوې ډيرۍ يا سټ ده، چې لږ تر لږه د $M_1$ او $M_2$ توکي هم خوندي ولري۰

د ټولنې $M = M_1 \cup M_2$ هر توکی د $M_1$ يا $M_2$ توکی هم دی ( پرتله ۱ –مه برخه د يا سره پرتله) يانې دا د ټولنډيرۍ توکی د $M_1$ يا $M_2$ او يا د دواړو توکي دي۰

يا لاندې دياګرام




بیلګې

الف ) $M_1$ دې د ځوانانو ډیرۍ وي، چې بکلوریا لري او $M_2$ دې د هغو ځوانانو ډیرۍ وي، چې مسلکي شهادتنامې لري، نو $M = M_1 \cup M_2$ د ټولو هغو ځوانانو ډیرئ ده، چې بکلوریا او مسلکي شهادتنامې ولري او یا دواړه شهادتنامې ولري.

ب )

$$M_1 = \{k, a, r\}, M_2 = \{u, r, s, e, l\}$$
$$M_1 \cup M_2 = \{k, a, r, u, s, e, l\}$$

یا په لاندې توګه پیژند او بیلګه: A او B دې دوه ډیرۍ وي د دې ډیریو تولنه داسې لیکو

B} ∈x∨A ∈B = {x | x∪A

∪A={1,2,3,4} B={3,4,5} A

B={1,2,3,4,5}




تل په ټکو ټکي شوې ټکیډیرۍ تولنډیرۍ په ګوته کوي.

ب – څیره ۲ . ۲ دوه په هواره کې ټکیډیرۍ په ګوته کوي، چې

الف ) ټکپیرډۍ دي٠ ب) ګډ ټکی لري٠

پ) اړیکې $M_1 \subset M_2$ پوره کوي:

د دې لپاره څیرې په لاندې کې په بیلګو کې راغلي دي٠

د ټولنې لپاره کموتاتیو قانون باور لري» $M_1 \cup M_2 = M_2 \cup M_1$ دا په دې مانا، چې د لړۍپرلپسي دلته(لنډ: لړۍ) د ډیریو په ټولنه کی رول نه لوبوي

یادونه : که ګڼونه ۱ ، ۲ ، ۳ ، ٤ ٠٠٠ ولرو، نو دا پرلپسې بولو او که بیا دا سره جمعه کړو لکۀ

$$1\ ,\ 1+2,1+2+3,1+2+3+4+,1+2+3+4++..+\ldots.$$

نو دا لړیپرلپسې یا لنډ: لړۍ بولو( پرلپسی برخه کې دې وکتل شي) دا په دې مانا، چې له دوو څخه د زیاتو ډیریو ټولنه لړۍپرلپسی( لنډ: لړۍ ) رول نه لري٠

اسوشیاتیو قانون باور لري٠

$$(M_1 \cup M_2) \cup M \ = M_1 \cup (M_2 \cup M_3) = M_1 \cup M_2 \cup M_3$$

غوڅډیرۍ (د ډیریو غوڅی یا –متقاطع سټ) intersection

یادونه : دا کړی شو، چې د ډیرو ګډغوڅی وبولو( دا د ګرانو لوستونکو خوښه ده،کوم ناټیکوالی په کې نه شته)

پیژند:

ډیرۍ M د ډیرۍ $M_1$ او ډیرۍ $M_2$ غوڅډیرۍ یا د تقاطع سټ ده( لوستل: $M_1$

غوڅ(پرې)په $M_2$ ( لنډ: غوڅی): $M = M_1 \cap M_2$

که د ډیرۍ M ټول توکي د ډیرۍ $M_1$ او ډیرۍ $M_2$ توکی وي۰

د غوڅډیرۍ $M = M_1 \cap M_2$ هرتوکی د ډیرۍ $M_1$ او ډیرۍ $M_2$ توکي دي ( د ۱ –مې برۍ د هم او هم په مانا یا د «او» په مانا)

یا دا پیژند :

د ډیریوA او B غوڅۍ $A \cap B = \{x \mid x \in A \wedge x \in B\}$

بیلګه:

A = { 1,2,3,4}, B = { 3,4,5} => $A \cap B = \{3,4\}$




یادونه: دې پورته ډول دیاګرام ته د ون دیاګرام Venn-Diagram یا د Euler-Venn- Diagram وایی

بیلګې :

لومړۍ : یوه ډله زده کوونکي له ننګرهار او پکتیا څخه راځي، چې په $M_1$ یې په نخښنه کوو۰ یوه بله ډله ، چې په $M_2$یې په نخښنه کوود کندهار او همغه د پکتیا زده کوونکي، چې په M سره یې ښایو، دي۰ د دې دواړو ډلو غوڅډیرۍ

$$M = M_1 \cap M_2$$

د پکتیا زده کوونکي دي۰

دویم:

$$M_1 = \{k,a,r\}, M_2 = \{u,r,s,e,l\},$$
$$M = M_1 \cap M = \{r,l\}$$

دریم ځیره ۲ ۰ ۳ په هواره یا سطحه کې ښایي، چې الف) ګډون پردي دي




ب) یو بل سره ګډ ټکی لري




پ ) اړیکی

$$M_1 \subset M_2$$

پوره کوي

بیلګه:

B A={1,2,3,4,5} B={3,4,5} A⊆




هغه ټکو باندې ټکي شوې ډيرۍ اصلي برخډيرۍ ده

دوه ډيرۍ، چې غوځډيرۍ يې تشډيرۍ وي

$$M_1 \cap M_2 = \theta$$

لکه د مخه مو چې ګوته ورته ونيوله پردۍ بلل کيږي

د غوځډيرئ لپاره ، لکه څنګه د ټولنډيرۍ لپاره کموټاتيو قانون باور لري

$$M_1 \cap M_2 = M_2 \cap M_1$$

او اسوځياتيو قانون

$$(M_1 \cap M_2) \cap M_3 = M_1 \cap (M_2 \cap M_3) = M_1 \cap M_2 \cap M_3$$

ددواړو د ډيرۍکارونو يا ډيرئ عمليو يانی ټولنډيرۍ او غوځډيرۍ لپاره دواړه ديستريبوتيو قانونونه پوره کيږي يا باور لري

$$M_1 \cup (M_2 \cap M_3) = (M_1 \cup M_2) \cap (M_1 \cup M_3)$$

$$M_1 \cap (M_2 \cup M_3) = (M_1 \cap M_2) \cup (M_1 \cap M_3)$$

( د ګڼونو د شميرکارونو يا عمليو لپاره يوائې يو دستريبوتيو قانون شته والی لري:

$$a_1.(a_2 + a_3) = a_1.a_2 + a_1.a_3$$

مګر په ټوليزه توګه باور نه لري

$$a_1 + (a_2.a_3) = (a_1 + a_2).(a_1 + a_3)$$

پيژند :

کمونډيرئ يا تفريق سټ $M_2$ د ډيرئ $M_1$ او ډيرئ M کموالی يا فرق دئ او

داسې يې ليکو: $M_2 = M / M_1 = \{x \mid x \in M \wedge x \notin M_1\}$

له M څخه د $M_1$ ډيرئ کمه شوې

يا کله چې د $M_2$ توکي د M هغه توکي وي، چې هغه د ډيرئ $M_1$ توکي نه وي۰

ليکندود ياليکنډول :
$A / B = \{x \mid x \in A \wedge x \notin B\}$

لوستل : د A اوB توپيرډيرئ ياکمونډيرئ يا تفريقډيرئ له ټولو هغو توکوx جوړه ده، د کومو لپاره، چې باور لري : x د A توکی دئ او x د B توکی نه دئ

بيلګې :

لومړئ : په يوه ټولګي کې $M_1$ د ټولو نارينه وو زده کړو ډيرئ ده او $M_2$ دټولو زده کړو ډيرئ ( د نارينه وو او ښځينه وو ) ، چې په شميرپوهنه کې لس نمرې وړي۰

$M_1 / M_2$

د هغو زده کړو ډيرئ ده، چې ۲ ، ۳ ، ٤ ، ٥ ، ٦، ۷ ، ۸ ، ۹، نمرې وړي او ټول د هغو نجونو ډيرئ ده، چې په شميرپوهنه کې يې لس نمرې وړي۰

که په ټولګي کې يواځې نارينه زده کړي وي، نو باور لري

$M_1 / M_2 = \theta$

يا دا لاندې :




دویم :

$$M_1 = \{k, r, a, i\}, M_2 = u, r, s, e, l\}$$
$$M_1 / M_2 = \{k, a\}, M_2 / M_1 = \{u, s, a\}$$

لکه څنګه، چې د کمون یا تفریق پیژند او بیلګې را په ګوته کوي په ټولیزه توګه باور نه لري:

$$M_1 / M_2 \neq M_2 / M_1$$

## د یوې ډېرۍ یا سټ کمپلمنت یا پوره کوونکی :

دا کارونه یا عملیه د نورو کارونو څخه توپیر لري، چې په ډیرۍ کی مو څیړلي٠ دا یوه یوځاییزه کارونه ده او دا نورې دوه ځایزې کارونی یا عملیې دي٠

مورږ بنسټډیرۍ په U او د ټولو هغو توکو ډیرۍ، چې U کې پراته دي یانې دU توکي دي او هغه په M کې نه دي پراته یانې د M توکي نه دي پوره ډیرۍ یا کمپلیمنت بولو او د $\bar{M}$ سره یې په نخښه کوو٠

په لاندې څیره کې بیا د ډیرۍ غوڅۍ، - ټولنه او – کمون او برخډیرۍ ته د ګرانو لوستونکو لا زیات پام را اړوو٠













پيژند:

پوره کوونکی- یا تکمیلډیرۍ ( یا د یوې ډیرۍ کمپلیمنت ) د یوې ډیرۍ M پوره کوونکې ډیرۍ $\bar{M}$ ټیک هغه توکي لري( د بنسټډيرۍ U څخه) ، کوم چې د M توکي نه وي٠

دوه ځله کمپلیمنټډیرۍ جوړول خپلې لومړنی وینا ته ځي ، یانې $\bar{\bar{M}} = M$

دلته یواځې یوه ساده بیلګه راوړو: په یوه کلي کې دوه کورنی د توپیر او برګ کورنی اوسیږي٠ که دا دوه کورنی یو له بل سره خپلوي ونه لري، نو دوي یو له بل سره پوره ډیرۍ یا تکمیلډیرۍ بلل کیږي یانې دا کلی پوره کوي٠

## ٢ ٠ ٤ خیرونه mapping یا اړیکې:

يادونه : پام دې وي، چې دا هغه ورسره بلد تابع كلمه نه ده، چې وروسته به ورسره بلد شو .

په دې برخه كې لومړى د ډيرۍ ضرب كلمه پيژنو يا تعريفوو او بيا د ضرب كلمې كارونه څيړو .

پيژند ۲ ۰ ۹ : د دواړو ډيريو M يو او M 2 ډيريضرب( اتيرانضرب) هم ورته وايي، يانې په x سره ځليږي يا ضربيږي

$$M = M_2 \times M_2$$

د ټولو تنظيم يا ترتيب شويو توكو

$$x \in M_1, y \in M_2$$

جوړو (x,y) ډيرۍ ده .

بيلګې

$$M_1 = (a,b\}, M_2 = \{1,2,3\}$$
$$M_1 \times M_2 = \{(a,1),(a,2),(a,3),(b,1),(b,2),(b,3)\}$$

د جوړو د غوښتل شوي تنظيم له مخې ځل په ډيريو كې كموتاتيو نه دى دا په دې مانا، چې

په ټوليزه توګه باور نه لري: $M_1 \times M_2 \neq M_2 \times M_1$

۲ – R دې د ټولو ريبلګښونو ډيرۍ وي . په هندسي مانا د كرښې د ټولو ټكو ډيرۍ . RxR د ټولو ريبلګښونو جوړو ډيرۍ ده، په هندسي مانا د هوارې يا سطحې د ټولو ټكو ډيرۍ ده .

پيژند ۲ ۰ ۱۰ :

د څيرونې F لاندې د دوه ډيريو د ضربډيرۍ $M_2 \times M_2$ برخډيرۍ پوهيږو .

پس د جوړه تنظيم شوو توکو ډيرۍ، چې $x \in M_1$ له يوه يا ډيرو توکو $y \in M_2$ سره تنظيم

يا بهتره په باندې ځيره شي٠

داسی هم ويلی شو: د1 M توکي د2 M په يوه يا ډيرو توکو تنظيميږي يا ځېره کيږي٠

که $(x.y) \in F \subseteq M_1 \times M_2$ وي، نو x اوريجنل يا اصلي توکی او y ځيره توکی بلل کيږي٠

د ټولو اصلي توکو ډيرۍ پيژندورشو يا تعريفورشو يا پيژنددېرۍ يا تعريفډيرۍ بلل کيږي او د ټولو ځېره توکو ډيرۍ د ځېروني ډېرۍ، ارزښتورشو يا ارزښتډيرۍ بلل کيږي٠

بيلګی

$$M_1 = \{a, b, c, d\}, M_2 = \{1, 2, 3, 4\}$$

د جدول په توګه دM يو توکو ځېرونه ونه يا ځېره کوونه د M دوه په توکو

| ځېره توکی | اصلي توکه يا ځيره کوونکی توکی |
|---|---|
| 1 , 2 ,5 | a |
| 4 | b |
| 3,4 | c |
| 2,3,4,5 | d |

a -----------------------→ 1 , 2 ,5

b -----------------------→ 4

c -----------------------→ 3,4

d -----------------------→ 2,3,4,5

يا دا لاندې:




ځیرونه:

$$F = \{ (a,1),(a,2),(a,5),(b,4),(c,3),(c,4),(d,2),(d,3),(d,4),(d,5)\}$$

( د M یو او M دوه ډیریو د ټولو توکو جوړو ډیرئ)




Bild 9.6 ځیره

دریم : هر پیدایښتي یا طبیعي ګڼ a د هغه په دوه ځله b=2a باندې ځیره کیږي۰ داسې پیژند شوې یا تعریف شوې ځیره ونه په لاندې بڼه هم انځوریدلی شي۰

$$F = \{(a,b) \mid a \in N, b = 2a\}$$

دلته هم N د پیدایښتي یا طبیعي ګڼونو ډیری۰ پیژندډیری یا تعریف- د ټولو پیدایښتي ګڼونوډیری ده او ارزښتډیری د ټولو جوړه ګڼونو ډیری ده۰

څلورم : که M یو په یوه ښوونځي کې د ښوونکو ډیری وي او M دوه په ښوونځي کې د ځانګړو ټولګیو ډیری وي نو ښوونکي، چې په ټولګیو کې درس ورکوي دا یوه څېرونه ده۰ د ښوونکو ډیری د ځانګړو ټولګیو په ډیری کې

موږ د څېره ونې څلور حالتونه توپیروو:

پیژندونه( دې ته دې ګران لوستونکي ښه پام وکړي):

لکه په لومړۍ بیلګه کې په څیره ونه F کې د1 M ، چې تعریفډیری D سره برابر دی او M2 ، چې له څیره ډیری , W سره برابر دی ، توکي مو مخ ته پراته دي۰

له یوې څیرونې Fغږیږو د1 M په M2 باندې۰ دلته دې « د » او « په » ته پام وي)

وي دې: $D \subset M_1, W \subset M_2$

لکه په دویمه بیلګه کې ، نو د یوې څیره ونې F غږیږو له M1 په M2 کې ( دلته دې

« په » او ,په کې » ته پام ور واړول شي)

وي دې : $D = M_1 \wedge W \subset M_2$

دلته د یوې څیره ونې غږیږو د1 M په M2 کې دلته دې دریمه بیلګه په پام کې راواړل شي۰

وي دې: $D \subset M_1 \wedge W = M_2$

نو د یوې څیره ونې غږیږو له M1 په M2 باندې۰ دلته څلورمه بیلګه د بیلګي په توګه راوړو۰ د دې نیونې لاندې چې ټول ښوونکی ځانګړي ټولګیو ته درس ورکوي۰

یادونه : دا لاندې برخه دې ګران لوستونکي وګوري، خو د دې اوس وخت لپاره لږ ستونځمنه ده او شاید ځیرې هم رانه شي، خو که لږ د شمیرپوهنې سره بلد شو، بیا پرې پوهیدل ساده دي. زه مخ ته لرم، چې په دې هکله لیکلی کتاب، چې چاپ شوی نه دی دلته پر لیکه کړم، چې هلته بیا دا موضوع لږ غزیدلې ده.

بیلګه ۲ . ۵ : موږ په هواره یا سطحه کې ځرګند شوي کړۍ د ډیریځل RxR په ځیر د برابرونونو له لارې رانیسو( R د رییلګنونو ډیرۍ د ګنګرښې ټکي دي( ګنونه دې وکتل شي)).

الف ) $y = 2x$ یوه ځیره ونه ده د R په R باندې ، ځکه چې باور لري

$$D=W=R$$




یادونه : په پورته ځیره کې برابرون $y = ax+b$ دی.

ب ) $y = x^2$

یوه ځیره ونه ده د R په R کې ، ځکه چې باور لري

$$D = R , \; W = [0, \infty]$$




یادونه :

پوته بلواک د $x \mapsto ax^2 + bx + c$ ډول دی، چې b = 0 , c = 0 او a = 1 , a = -1 اینبول شوي دي٠

پ ) y = log x

یوه خیره ونه ده له R په R باندې » ځکه چې باور لري٠

$D = (0, \infty) \wedge W = R$



ت ) $y=+\sqrt{x}$

یوه څیرونه ده له R په R ، څکه چې باور لري

$D=W[0,\infty]$




یادونه : پورته د دویې ،دریمې او په x -مې ریښې په مانا دی

څیرې له ویکي څخه په مننه راکښنه شوې دي٠

پیژند ۲ ٠

یوه څیره ونه E یواځنی بلل کیږي٠ که هر $x\in D$ په ټیک یوه $y\in W$ باندې څیره شي٠ دا په دې مانا، چې هر $x\in D$ ټیک یووار په $y\in W$ تنظیمدیرۍ یا جوړه ډیرۍ کې رامنځ ته کیږي٠ یوه یواځنی څیره ونه فنکشن یا« بلواک» بلل کیږي او یا لکه تراوسه ورسره بلد یو یوه تابع بلل کیږي٠

پام:

دا دې دلته کره په ګوته شوې وي، چې زه « یوازنۍ څیره ونه » بلواک یا فنکشن بولم٠




بيلګه ۲ ۰ ٦ : په بيلګه ۲ ۰ ٥ کې له الف تر ت پورې تولې ځيرونې فنکشنونه يا بلواک دی. د دې پر ښت لاندې برابرون ( يوونګردی يانې ګردی، چې وړانګه يې يو يوون يايووالی يا واحد وي ځيره ۰ ) انځور شوې ځيره ونه له R په R کې [-1,1]) (D=W فنکشن يا بلواک نه دی ، ځکه چې اصل دوه ځيرې لري يانې که په تنظيمجوړه کې د ځيره ونې لړي پرلپسې( لنډ:لړۍ ) بدله شي، نو يوې پرښت ځيره ونې ته راځو:

پيژند ۲ : ځيره ونې F ته پرښت ځيرونه $F^{-1}$ د ټولو جوړو (x,y) ډيرۍ ده له $(x,y) \in F$ سره ۰

پيژند ۳ ۰ يوه ځيره ونه يويواځنۍ بلل کيږي، که يواځنۍF او $F^{-1}$ يوازنۍ ځيروه ونې وي، دا په دې مانا، چې که هر $x \in D$ او $y \in W$ ټيک يو ځل په تنظيم کې منځ ته راشي۰

يادونه : د ځيرونې نوم ځخه بايد ونه ډار شو دا ځيره ونې ځيرې کوونې (که ځوک يو کالی يا رخت ځيرېکوي)او ځيره کوونې توپير، ځکه سره کيدی شي، چې هغه منځپانګه يې يو له بل توپير لري۰ موږ پښتو کې نږدې يو ډول ليکونکې ويونه ( لغات) لرو، خو دا هغې منځپانګې له مخې توپيريږي۰
ډيرۍ پوهنه د شميرپوهنې سټه ده، نو په راتلونکې کې به يې نوره هم ژوره وځيړو او همدا اوس هم نور ګران هيوادوال دې ته رابولم، چې له ما سره ګډ کار يا خپلواک دې کار ته ملا راوتړي۰

ما دا برخه غزولې، چې په خپل شووني وخت کې به ګرانو لوستونکو ته په ځانله توګه د یوه کتاب په څیر هم وړاندې شي.

۲ . ۵ تمرینونه

۱ – د لاندې ډېرۍ یا سټ توکي د شمیرنې له لارې انځور کړۍ

الف {x لومړی عدد او$20 > x$ | x }( لوستل: د ټولو عددونو x ډېرۍ یا سټ، چې xلومړنی عدد او $20 > x$ دی).

ب- $\{x|x^2+x-6=0\}$

پ-$\{x^2+x-6=0$ او$x> 0 | x\}$ دا په نوکانوکې ټول له کینې بنې لور ته لولو

ت ) { $x | x$ رییلګڼ او $x^2 + 1 = 0$ } د دې ټول له ښۍ وکیڼۍ لور ته ولولی

۲ – د توکو $x , y , z$ اړلرونوالی و ډیري M ته وښیری !

الف ) M د لمړنیو ګڼونو ډیری

$$x = 4 , y = 5 , z = 6$$

ب ) M د لاندې مساواتو حلډیری ( اوبیلډیری )

$$x^3 + x^2 - 6x = 0$$

$$x = 0 , y = 2 , z = 3$$

پ ) M د ریشنلګڼونو ډیری چې په اینتروال [ 3 ,3- ] کې پراته دي

$$x = -2 , \quad y = \sqrt{2} , \quad z = 1/3$$

ت ) M د رییلګڼونو ډیری چې په اینتروال [ 3 ,3- ] کې پراته دي

$$x = -4 , \quad y = \sqrt{2} , \quad z = 3$$

۳ – د لاندې ډیریو ترمنځ کومې اسپیکې پرتې دي

الف ) $M_1$د ټول جفت ګڼونو ډیری

او $M_2$ د ټولو ټولګنونو ډيرى

ب ) د ټولو مساواتو $x^2 + 2x - 3 = 0$ , حلونو ( اوبيو ) ډيرى

$M_2 = \{ -3 , 1 \}$

پ ) $M_1$ د ټولو ګنو ډيرى چي پر ۶ ويشل كيږي.

او $M_2$د ټولو ګنونو ډيرى چي په ۳ ويشل كيږي !

او $M_3$د ټولو ګنو ډيرى چى په ۱۲ ويشل كيږي !

۴ – د ډيرى $\{ a,u,t,o \}$ ټول برخډيري وركړى !

۵ – د لاندي ډيريو څخه ټولنډيرى ، غوڅډيري او دواړه څوډيري جوړ كړى !

الف ) $M_1 = \{ k,a,m,e,l\}$ , $M_2 = \{m,a,u,l,t,i,e,r\}$

ب ) $M_1 = \{ 2,4,6,.. \}$, $M_2 = \{ 3 ,6 ,9,.... \}$

پ ) $M_1 = \{ x \mid x^2 + x +- 2 = 0\}$ , $M_2 = \{x \mid x^2-3x+2 = 0\}$

۶ – د يوه ډيرى M او د تشډيري $\emptyset$ ټولنډيرى، غوڅډيرى او توپيرډيرى جوړ كړى !

۷ – د يوه ډيرى M او خپل همدې ډيرى ټولنډيرى ، غوڅډيرى او توپيرډيرى جوړ كړى !

۸ – وي دي $M_1 = \{ 4 , 8 , 12 \}$ $M_2 = \{ 3 , 6 , 8\}$

$M_3 = \{0 , 2 ,4 ,6 \}$ ,$M_4 = \{ 6 , 12 , 18 \}$

جوړ كړى : $M = [(M_1 \cup M_2) \cap M_3 ] \setminus M_4$ !

۹ – جوړ كړى

الف ) $M_1 \cup (M_1 \cap M_2)$ پ ) $M \setminus \emptyset$

ب ) $M_1 \cap (M_1 \cup M_2)$ ت) $\emptyset \setminus M$

۱۰ – وي دي

$$M_1 \cup M_2 = \{1,2,3,4,5\},$$
$$M_1 \cap M_2 = 71,3,5\}$$
$$M_1 \setminus M_2 = \{2,4\}, M_1 \setminus M_2 = \emptyset$$

له دې پورته څخه $M_1$ او $M_2$ وټاکئ !

۱۱ – وي دې

الف ) $M_1 \cap M_2 = \emptyset$ ب) $M_1 \subset M_2$,

وټاکئ: $M_1 \setminus M_2$ !

۱۲ – وي دی $M_1$ , $M_2$ (د نیمواز ) اینتروال ټکي ډیري:

$$M_1 = \{-3, 3\}, M_2 = [1, 7]$$

وټاکئ

الف ) $M_1 \cup M_2$ ب ) $M_1 \cap M_2$ پ ) $M_1 \setminus M_2$

ت ) $M_2 \setminus M_1$ ټ ) $M_1 \times M_2$

۱۳ – وي دې $M_2 = \{\{a, b\}$ , $M_1 = \{1, 2, 3\}$

الف ) د $M_1 \times M_2$ ځل جوړ کړئ

ددې لاندې ب ) تر ت ) برخی تمرین لپاره دې ۹ الف برخه وکتل شي.

ب ) دا لاندې کوم ډول ځیرونی دي

$$F_1 = \{(1,a),(1,b)\}$$
$$F_2 = \{(1,a),(3,a)\},$$
$$F_3 = \{(1,a),(2,b),(3,b)\},$$
$$F_4 = \{(1,a),(2,a),3,a)\},$$
$$F_5 = \{(1,a),(2b)\}$$

په ټولو حلنونو (اوبیو) کی $F_1$ تر $F_5$ ورکړئ .

پ ) په ښت ځیرونه ورکړئ

ت ) د ځیرونو $F_1$ څخه تر $F_5$ پورې، کوم یواځنی او کوم حتی یویواځني دي ؟

## ۳. دحقيقي اعدادو (ـګڼونو) سره د شميرلو بنسټيزې نښلونې

( ترڼنی، کارونی يا عمليي)

### ۳ ۰ ۱ د اعدادو د سيستم جوړښت

#### ۳ ۰ ۱ ۰ ۱ طبيعی اعداد يا ـګڼونه natürliche Zahlen

انسانانو له پخوا څخه اعدادو ته اړتيا درلوده۰ له دې امله يې پرمخ ودیينه کې هڅې وکړې، چی له ډيری (سيټ) (د ليکنې په دننه کې ډيری پوهنه هم څيړلشوې)) سره داسې لارغوره کړي، چی دا ډيری تشريح کړای شي او د انسانانو او چاپيريال( طبيعيت) د پرلپسې اخ او ډب په نتيجه کې د ګڼ يا عدد وی( کلمه يا لغات) راپيداشوی، چې د عدد يا ګڼ کليمې پربنسټ د ريښتينو شيانو څرګند څومره والي ( کميت)Quantitative ترلاسه کړي۰ د طبيعی اعداد و څخه په ګڼلو يا که غواړې شميرلو کې ګټه اخستل کيږي۰

## ۳ ۰ ۱ ۰ ۱ ۰ الف د طبیعي عددونو (پیداېښتي ګنونو) جوړښت

پیژند (تعریف)۳ ۰ ۱:

الف ) ټول طبیعي اعداد د ډېرۍ په څېر یوه ټولګه جوړوي او د طبیعي اعدادو ډېرۍ یا سټ په نامه یادېږي یا یې طبیعي اعداد بولو او په N او همداسې $N^{\circ}$ سره یې په نخښه کوو۰

ډېر پای طبیعي اعداد شته ، ځکه چې په هر طبیعي عدد پسې راتلونکی طبیعي عدد هم شته دئ ( یعنې په هرڅومره لوي طبیعي عدد پسې راتلونکی طبیعي عدد شته دئ، چې دا وروسته روښانه کېږي)۰

## ب) دطبیعي ګڼونو (اعدادو) اکسیوماتیکيAxiomatic جوړښت

اکسیوم جمله ده، چې اوبیونه ( حل ) نه غواړي او همداسې منل کېږي۰ دا چې جمله ، اکسیوم څه دي په لومړۍ برخه یانې سم اند ( منطق ) کې دې وکتل شي۰

طبیعي عدد کلمه د جیوسیپې پیانو( Giuseppe Peano له ۱۸۵۸ – ۱۹۲ ز ۰کال) اکسیومونو پر بنسټ لاندې پیژند لري یا په لاندې توګه تعریف کېږي:

۱ – د صفر ګڼ یو پیداېښتي ګڼ دئ

۲ - د هرطبیعي عدد یا ګڼ m لپاره یو یواځنی ټاکلی طبیعي عدد n شته، چې سملاسي(تړلی) د m پسی ګڼ دئ، د کوم لپاره چې لرو: $m+1 = n = m^{\wedge}$

دلته $m^{\wedge}$ د m پسې سملاسې یا تړلی ګڼ یا عدد په ګوته کوي۰

۳ – هرطبیعي عدد زیات له زیاته په یوه طبیعي عدد پسې سملاسي راتلونکی ګڼ دئ۰

٤ – هیڅ طبیعي عدد نه شته، چی پسی راتلونکی پیداینسي عدد یې صفر وي٠

٥ – که طبیعي عددو ډیرۍ M صفر د توکي په څیر ولري او که له هر طبیعي عدد m سره د هغه پسی تړلی راتلونکی عدد یا ګڼ `m هم د M توکی وي، نو M ټول

طبیعي عددونه خوندي لري یا په بل ډول » ټول طبیعي اعداد په کې ځاي دي٠

یادونه: ځنې ادبیاتو کې، د پیانو سیستم کې، د صفر په ځای ۱ لیکل شوی. په دې حالت کې بیا صفر ته د طبیعي عدد یا ګڼ په څیر نه کتل کیږي. که بیا صفر ورسره مل کړو، نو د صفر سره طبیعي ا عدادو ډیرۍ یا –سټ یې د صفر سره بولو.

## ۱ . ۱ ب : د طبیعی اعدادو یا ګڼونو انځورونه او سیستمونه:

طبیعي اعداد په نخښو ( دې ته په الماني کې Zifferوایي، چه همغه د صفر په معنا دی، خو دلته ترې مطلب، چې دا څیرو، دی) انځوریږي. د دې لپاره چې دا لږ ځای ونیسي، نو د لویو او وړو اعدادو لپاره نخښې له کوچنیو سره یوځای کینبول شوې دي. دا چې څرنګه یوه د عدد یا ګڼ نخښه له بل توپیریږي، په لاندې ډول یې د زیاتون یا جمعي سیستم او ځای سیستم کې ښایو.

په زیاتون سیستم کې هر بنسټیز ،،ځای،، یو ،، ځای ارزښت،، لري. د څیفرونو زیاتون د یو په بل کې د ورزیاتشوي بنسټیز څیفر پخپله هغه عدد یا ګڼ ورکوي. بیلګه یې په رومي ګڼونو کې راړو. دا له بنسټیزو څیفرونو جوړ شوی( ترې لاندې لسیز د اعدادو سیستم دی). زه دلته د ضرورت په بنسټ ټول ضروري څیفرونه چې موخه ترې عددونه دي، له پیل راوړم:

| رومي عددونه: | M | D | C | L | X | V | I |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عربي عددونه: | 1000 | 500 | 100 | 50 | 10 | 5 | 1 |

طبيعي عدونه له دې امله یو د بل ترڅنګ لیکو چې کم ځای ونیسي لکه د بیلګې په توګه:
CXX په دې معنا چې C+X+X

په رومي ګڼونو کی، که بنستیز کوچني ګڼنخښی لکه C , V , I د لوي ګڼنخښی و کینړ لور ته ولیکل شي نو دا مانا لري چی دا کوچنی ګڼ له لوي ګڼ څخه کم شوی.
د بیلګي په توګه: XC = C - X .

بیلګی: الف: MMDCCLXVIII په دې مانادی 2768
ب : MCMXXIX په دې مانا دی 1929
پ : CCCIV په دې مانا دی 304

ځایسیستم: په ځاي سیستم کی هره بنستیزه نخښه یو «ځاي ارزښت نخښه ارزښت» لري.
لکه : g– ئیز ځاي سیستم( پوزیشن سیستم ( Positionssystem )): د طبعي ګڼ n انځورونه په g– ئیزځای سیستم کی په دې ډول ده چی د یوه ورکړشوي ستی په بنسټ( g ЄN ) $g \geq 2$ هر طبعي ګڼ n په لاندې ځانګړي ډول انځوریدلی شي:

$$n = a_k g^k + a_{k-1} g^{k-1} + .... + a_1 g + a_0$$

دلته بنستیزې ګڼنخښی $a_i$، g د $i = 0,1,2,...,k$ او $k \geq 0$ د $0 \leq a_i \leq g-1$ چی $a_k \neq 0$ وي په کار راځی یا اړتیا ورته شته.
لیکلی شو :

$$n = a_k a_{k-1} .....a_1 a_0$$

که د بدلیدلو ( د بل څه سره ) امکانات رامنځ ته کیږي، نو بهتره به وي چی په

لاندې ډول وليکل شي

$$n = [a_k a_{k-1} \ldots a_1 a_0]_g$$

نن په ټوله نړۍ کي ګڼل په لسيز سيستم ( ګڼځای ارزښت ) باندې کيږي، چی تل داسی نه وه، لکه په افغانستان کي چی دا اوس هم د ډوډۍ پوړ لپاره په لرګي کرښه را کاږي، چی څو ډوډۍ واخستل شوې.

---

په لسيز سيستم کی ګڼځای «ارزښت» لري چی انځور شي، مګر په لرګی کی ځای ارزښت نه لري چی کرښه چيرته کښل شوې، هلته د پوړ کرښو له ګڼون يا تعداد ښخه پوړ څرګنديږي.

بل د ګڼلو سيستم . لکه د مخه مو چی تر پام لاندې ونيوه، د ګڼلو رومي سيستم دی چی نن هم د ارزښت وړ دی او همدارنګه د مفهوم ډك، زياتونسيستم(جمعی – ) څرګنديږي.

بيا هم غواړو چی دا په لاندې ډول ځانګړی کړو:

۱ – هره لاندې نخښه I, X, C کړای شي چی زيات ترزياته ۳ ځله( ۳ واری ) په يو ګڼ کی پرله پسی يا څنګ تر څنګ راشی

۲ – هره، د ګڼ نخښه V, L, M ,خورا زياته يو ځل څنګ تر څنګ په يوه ګڼ کی راتلی شي.

۳ – که بنستيز نخښه I, X او يا ..........__-- ددې نخښو د ارزښت نه لوړو ارزښت نخښو V, X, L, C, D يا M CXI تر مخ ځای په ځای شوې يا انځوروي نو د لوي ارزښت ښخه کميږي .

زياتون او کمون (جمعه او منفي )

۴ – په هرګڼ انځورونې(Zahlendarstellung ) کی کیدی شي چې یواځې یو بستیز ګڼ تر مخ ځای په ځای یا انځور شي لکه: 1098 = MXCVII مګر نه IMIC
۵ – د یو ګڼ لپاره د امکان په حال باید کمې نخښې په کار واچول شي.

**عربي ګڼونه** : دا ګڼونه، چې موږ ورسره بلد یو، د لسیز سیستم ګڼونه دي، چې عربی ګڼونه بلل کیږي. دا د ګڼلو لسیز سیستم عربو د هند څخه راوړی چې په دولسمه پیړۍ کې یې اروپا ته یو وړ. دا اصلي ګڼونه له صفر( ۰ ) تر ۹ پورې دي یا له 0 تر9 پورې، چې

څیفر ورته وای (همغه عربی صفر دی) چې دلته ترې بنستیز ګڼونه پوهیدل کیږي.

لکه چې ګوته مو ورته ونیوه، زیاتونسیستم نور ارزښت نه لري، څکه چې د یو ګڼ ارزښت د ګڼ نخښی زیاتون باندې انځور کیږي. د ځای سیستم سره د ګڼونو انځورول ساده دي.

> **تعریف ۱ . ۱ ب** : په یو «ځاي ارزښت سیستم» کی هغه ګڼ لوي دی چې زیات ځایونه ولري، که چیرې د ګڼ د ځایونو شمیر سره برابر وي( مساوي وي ) نو هغه ګڼ ستر دی چې له کینی لورې یی نخښه لویه وي.

**لسیز – یا لسګونی سیستم**: لسیز سیستم هغه ځای ارزښت سیستم دی چې له انځورونی یی څرګندیږي. په لسیز سیستم کی د ګڼ انځورولو نخښی، لکه د مخه مو چې انځور کړې، ۹،۸،۷،۶،۵،۴،۳،۲،۱،۰ دي. ۱۰ ګڼ د لسیز سیستم بنستیزه نخښه ده. دا چی نور ګڼونه نه انځوریږي، نو ځای هلته ډك دی چې پرله پسی ( ترتیب یانظم ) د ۰ تر ۹ یعنی له 0 تر 9 ګڼونو پورې په ځای شوي وي.

په دې ډول د پسې جګ ځای یوون (واحد ) د په کار اچول شووګڼنخبنو ګنون (تعداد یا شمیر ) دی، خموږ په حالت کی ۱۰ .

لکه چی د مخه مو ګوته ورته ونیوله، د پای (نه لایتناهی ) ډیري (set , die Menge ۹ –امه برخه دې وکتل شي ) ) غږو ګنبلو لپاره لاندې ګنونه کفایت کوي: ۱، ۲، ۳، ۴، او داسې نور. تولودې ګنونو ته چی دصفرګڼ ورسره مل شي د طبعي ګنونو ډیری N ویل کیږي. ددې لپاره لیکو :

$$N = \{ 0, 1, 2, . 3 . 4 , 5 , 6,....\} ; \qquad N^* = \{ 1, 2, 3, 4, .....\}$$

موږ ګنونه په کوچنیو لاتینی ټکو یا حروفو ښایو لکه n . ... a ,b,c, . دا رینبتوني

( رینبتینوالی یا واقعیت ) چی n دې یو طبعي ګڼ وي، داسی لیکل کیږي $n \in N$ یا $n \in N^*$ ( ویل کیږي چی: n د طبعي ګنونوډیري N یا*N توکی دی(لنډ n د N یا *N ځخه دی) ) په دې ځای کی دې دګڼ او ګنځای (ځیفر) توپیر ته پام وي.

موږ دګنونو ټاکلو لپاره بلد یا اشنا د نخښبډیري لسیز سیستم په کار اچوو ( استعمالوو )

$$N_{10} = \{0,1,2,3,4,5,6,7,8,9,\}$$

د ګنونو د نخښبو $a_i \in N_{10}$ پرله پسی، لکه د مخه مو چی په ګوته کړل، په لاندې ډول یو طبعي ګڼ انځوروي:

$$a_n\, a_{n-1}\, a_{n-2} \dots a_2\, a_1 a_0 = a_n.10^n + a_{n-1}10^{n-1} + a_{n-2}\,.10^{n-2} + ..+ a_2\,.10^2 + a_1.10 + a_0\, 10^0$$

$$a_i \in N.$$

ګنونه په نورو ځیفرونو ډیري هم انځوریدی شي. د بیلګي په توګه په اینفورماتیك (Infrormatik ) کی، چی د دوالسیستم ( Dualsystem ) ( دوئیز سیستم) ځخه کار اخستل کیږي. ددې لپاره دوه ګڼنخښي (ځیفرونه ) لیکل کیږي

$N = \{ 0,1 \}$

په لاندې جدول کې دلسيز او دوه ئيز سيستمونو لمړني ګڼونه يو د بل ترڅنګ کښل شوي:

| دوه ئيز سيستم | لسيز سيستم |
|---|---|
| 0 | 0 |
| 1 | 1 |
| 10 | 2 |
| 1 1 | 3 |
| 100 | 4 |

په ټوليزه توګه( عمومي توګه) دلته يو څيفر پرلبسې(د عددون ترادف) $a_i \in N_2$ يو طبيعي عدد په لاندې ډول انځوروي،

$$a_n a_{n-1} \ldots\ldots a_2 a_1 a_0 = a_n.2^n + a_{n-1}.2^{n-1} + \ldots\ldots\ldots + a_2.2^2 + a_1.2^1 + a_0.2^0 \,,\; a_i \in N$$

بيلګه ۱ . ۱ :

$$59 = 1.\,32 + 1.16 + 1.8 + 0.4 + 1.2 + 1.1$$
$$= 1.2^5 + 1.2^4 + 1.\,2^3 + 0.2^2 + 1.2^1 + 1.2^0 = 111011$$

يا دونه :: څه لنډ لنډيزونه

د طبيعي اعدادو ډيرئ يا سټ داسی په نخښنه کوو:

د پيدايښتي يا طبيعی ګڼونو ډيرئ $N = \{ 1, 2 , 3 , \ldots \}$

دپيدايښتي ګڼونو ډيرئ د صفر سره $N° = \{ 0, 1 , 2 , \ldots. \}$

ه کتابونو کی دا د صفر نخښه په لاندې برخه کی راځي۰

## ۳ ۰ ۱ ۰ ب د طبیعي اعدادو یا ګڼونو انځورونه:

طبیعي اعداد په نخښو انځوریږي۰ دا عددونه یا ګڼونه د ځان لپاره یو سیستم لري، چی هغه زیات یې موږ نه څیرو۰ زموږ لپاره غوره هغۀ عربی اعداد یا ګڼونه دی۰

یا په بل ډول : دا عددونه چی موږ ورسره بلد یو د لسیز ځایستسم عددونه دي، چی دا مو د مخه په ګوته کړل۰ دا کورونه (خوني یا خانې) لري او په هر کور کی له صفر تر ۹ ځاي نیوی شي او بیا یې هر ځاي یو ارزښت لري، له دې امله دا » ځاي ارزښت سیستم« دی۰ لومړي کور ته یویز، دوم ته لسیز، دریم ته سلیز او همداسی ، چی دا مو د مخه لړ روښانه کړي۰

انځورونه یا څیفرونه یې دي : ۰ ، ۱ ، ۲ ، ۳ ، ٤ ، ٥ ، ٦ ، ۷ ، ۸ ، ۹ دا د بنسټیز ګڼونو نخښی دي، نور یې په کورونو یا ځایسیستم باندې روښانه کیدی شي۰

پیژند ۳ ۰ ۱ ۰ ب :

په یو» ځاي ارزښت سیستم « کې هغه ګڼ لوي دی، چی ډیر ځایونه ولري۰ که چیرې د ګڼ د ځایونو یا کورونو ګڼون ( تعداد ) سره برابر وي۰ نو بیا هغۀ ګڼ لوي دی، چی کیڼ لور یې ګڼنخښه لویه وي۰

### ۳ ۰ ۱ ۰ پ : طبیعي اعدادو کې د شمیرنې بنسټیز قوانین

اوس په لاندې ډول د پیداینت ګڼونو، په ټولیزه توګه د رییل ګڼونو لپاره او وروسته د کمپلکسو ګڼونو لپاره هم باوري( معتبر) بنسټیز د شمیرنې قوانین وړاندې کوو:

الف : د انډول (نظم یا ترتیب یا لوي واړه ترتيب( Anordnung) بنسټيز قوانين:

که > ولرو، نو دې ننوتي کونج کی یا د نخښی خوله کی عدد یا ګڼ لوي دئ او د وتلی کونج یا لوي کونج >که نخښه یا داسی کونجکی یا څټ یا ککره کې ليکل شوی عدد کوچنی دی۰ که ګڼونه یا اعداد ۱۵ او ۲۳ ولرو نو د لويواړه اړيکی داسی ليکو، يانې که $23 > 15$ ولرو نو ترې څرګندیږي، چی عدد۱۵ له عدد ۲۳ کوچنی دئ .

د دوه طبيعي اعدادو a اوb ترمنځ له لاندې اړيکو څخه ټيک يوه اړيکه باور لري»

$a < b \quad , a = b \quad , a > b$

۲ ـ ۲۱ =۲۱ که د ۲۱ په ځاي توری وليکو هم $a = a$ به وي اينه ونه یا هندارونه یا منعکسونه (ريفليکسيويتي Reflexivity )

۳ – له $a = b$ => ( لاس ته راځي) $b = a$ ( سيومتري، انډول، ورته والي ( Symmetry

د انعکاسي (ايينه ونيز – یا هندارونيز) برابروالی یانی که چیري دا عددونه وراينه یا هنداره یا انعکاس شي، نو دواړه عددونه په دا بل لور بيرته سره برابر دي یا برابريږي۰ که انعکاسي(اينه ونيز)برابر نوم ورته کيږدو، نو هم مناسب به وي، خو موږ به يې همغه سيومتري وبولو۰

٤ ـ له $a = b$ او $b = c$ => ( لاس ته راځی) $a = c$ (ترانزيتيوTransitivity)

ترانزيتيو ګورو، چی يو له بل اړوند مانا ته نزدی دی، ځکه چی دا ګڼونه يو د بل سره په واکوالي تړلي یا له يو څخه وبل ته ځی یا وړل کيږي۰

۵ – له $a < b$ او $b < c$ => ( لاس ته راځی) یا $a < c$ یا $a < b, b < c \Rightarrow a < c$

وړانديز : که چيری دا پورته وي یا لغاتونه یا نومه ونی په همغه لاتين نومونو وليکو ښه

به وي، خو له شمیرپوهنی پرته مانا باندی یې هم پوهیدنه ښه او اړیینه ده۰

ب : د زیاتون ( جمع) Addition n. بنسټیز قوانین

که چیرې له طبیعي اعدادو څخه یو ، دوه یا څو ګڼونه یو په بل زیات شي، نو یو پیدایښتي ګڼ ترې لاس ته راځی او دا کارونه( عملیه) «زیاتون یت جمعه » بولو، ځکه، چی ګڼونه یو په بل زیاتیږي۰

پیژند: د همغه ډول شیانو یا یو څه یو په بل زیاتیدلو ته زیاتون (جمع) وایو

که عدد ۱۰ په عدد ۱۸ ورزیات کړو نوعدد ۲۸ ترې لاس ته راځی یا

۱۰ + ۱۸ = ۲۸

په پورته کې ۱۰ او ۱۸ یو پر بل زیاتیږي، نو له دې امله یې «زیاتېدونی» ( ما تراوسه زیاتووني بللي، خو فکر کوم،چي زیاتیدوني یې ښه نومه ونه ده) بولي، ۱۰ + ۱۸ جمعه او ۲۸ « جمع ارزښت» بلل کیږي ۰ چی په هغه پخوانی نوم مو ورته حاصل جمع وایه ۰ + زیاتوننخښه ده او = برابروننخښه ( مساوات علامه) بولو

دجمعي یا زیاتون بنسټیز قوانین

۱ - د دوه طبیعي اعدادو a اوb لپاره تل یو زیاتون ( جمع) $a + b$ شته دی

۲ - یواځنوالی : له $a' = a$ او $b' = b$ څخه لاس ته راځي: $a'+b' = a + b$

۳ - COMMUTATIVE LAWکموتاتیو- یا بدلون قانون دی:$a + b = b + a$

۴ - assotiative law اسوشیاتیو - سره ګډېدنې قانون. لرو $(a+b)+c=a+(b+c)=a+b+c$

۵ - Monotony law مونوتوني – یا همغږیزوالي قانون :

له $a < b$ څخه لاس ته راځي $a+c < b+c$

يادونه : په $a+b=c$ کې $a$ اوb زياتېدوني $a+b$ زياتون او $c$ زياتون ارزښت بلل کيږي

يادونه : په زياتون کې لاندې زياتونقوانين هم باوري دي:

ناپيلي توکی: په °N کې يو توکی شته، چې که د هرپيدايښتي توکی سره په زياتون يا جمعه کی ور زيات شي همغه توکي ورکوي٠ دا توکی صفر دی: $a+0=a$

ناپيلي توکی کړی شو نالوريز وبولو،ځکه،چې د کومې لور ګڼ باندې يې په زياتون کې بدلون نه راولی يا د زياتون ارزښت همغه پاتيږي، همداسې نااړونده او که بل څه مو په خوښه وي همغسې يې وبولی٠

## پ : د کمون ( تفريق)Subtraction بنسټيز قوانين

پيژند:د پيدايښتي ګڼونوa او b لپاره، چې $a>b$ وي، يواځې يوx شته دی، د کوم لپاره ، چې باور لري: $a - b = x$

که $x= a -b$ شته وي، نو ټيک يواځني شته دي( موخه x دی)

نومه ونې: b کميدونی يا مفروق ( تراوسه مې کمونی بللی) a ترې کمونی يا مفروق منه $a+b$ کمون او x کمون- يا تفريق ارزښت بلل کيږي يا بولو :

موږ پورته د لاتين تورو لپاره طبيعي اعدادونخښی ليکو، چې ساده يې ونوموو:

$20 - 10 = 10$

په پورته کی موږ له ۲۰ لس کم کړل، چی لاس ته راوړنه یې ۱۰ ده، نو له دی امله یې داسی نوموو:

تر مخ یادونه: په لاندې کې ع . د عربې په معنا دی

۲۰ «ترې کمونی »، ځکه، چی ترې کمیږي( ع۰ مفروق منه)، ۱۰ «کموونی« یا کمیدونی( ع۰ مفروق) دا بل لس یې «کمون ارزښت» یا د کمون لاس ته راوړنه( لنډ: لاس ته راوړنه یا کمون) (ع ۰ حاصل تفریق) ، – کموننخښه او = برابرووننخښه ده۰

## ت : د ځل ( ضرب)Multiplication بنسټیز قوانین:

۱ - د دوه پیدایښتي ګڼونو a او b لپاره د پیدایښتي ګڼونو په ډیری کې تل یو ځل a.b شته دی. د a.b لپاره داسې هم لیکو ab په پورته کې a او b ځلووني ( ضریبونه) او ab=x « ځل ارزښت » یا ځل( حاصل ضرب) دی۰

وایي چی ضرب وهلو ته وایي او د جمع ( که جمعي) لنډه طریقه، چی۰۰۰۰وي یا د زیاتون لنډه لار ده۰ ګورو، چی دا پیژند، چی وهل او دربول دي زموږ لپاره دومره موخور نه دی او ځل د پینتو ښه نوم دی، چی له دربولو مو ځانونه راویستلي وي۰

که ووایو، چی : د کابل او جلالاباد ترمنځ لار ۱۵۰ کیلو متره ده۰ زمری له کابل څخه جلال اباد ته ۸ ځله لاړ، نو زمري به جلال اباد ته د تګ ټوله څومره لار وهلی وي؟

لیکو: ۱۵۰ × ۸ = ۱۲۰۰ ، نو زمري به ټوله ۱۲۰۰ کیلو متره لار وهلي وي۰ ګورو، چی د ځل نومونه د ضرب لپاره ښه او اسانه ده، ځکه چی پښتو ده او له ضریبونو څخه به هم ځلوونی اسان وي، به ۰۰۰وي نه، بلکی اسان دي۰

۲ - له $a = a'$ او $b = b'$ څخه لاس ته راځي $a'b' = ab$ ( یواځیتوب)

۳ - لرو $ab = ba$ کموتاتیو – یا د بدلون قانون

٤ - لرو $(ab)c = a(bc)$ د ګډولو- اسوشياتيو قانون

٥ – لرو $(a+b)c = ac + bc$ د ويشونې- يا ديستريبوتيو قانون
Distributive law

٦ - له $a < b$ او $c > 0$ لاسته راځي $ac < bc$

جګتيتوالي يا يوغړيزوالي قانونMonotony

ت – د ويش بنسټيز قانون Division

پيژند۳ ۰ ۲ :

كه د دوه طبيعي عددونوa اوb لپاره، چې $a \neq b$ او $a \neq 0$ وي يانی صفر نه وي يو طبيعي عددx شته، چی برابرون ( مساوات) $ax = b$ پوره كړي، نو

$x = \frac{b}{a}$ يا b/a د b او a ويش (تقسيم) بلل كيږي، چی ماتګړ(كسر) يې هم بولو

۱ – كه $a / b = x$ يا $x = \frac{a}{b} = a/b$ شته يا موجود وي ، نو يواځنی شته دی( يواځني په دې مانا، چې بل ګڼ x نه شته او يواځې همدا ګڼ x دی )

نومه ونې : په پورته برابرون كې a/b وېش x ويش ارزښت، b ويشونی يا ويشه وونی دی، ځكه چی په يوځه ويشل كيږي او a پرويشونی بلل كيږي، ځكه، چی څه پر ويشل كيږي يا مقسوم، مقسوم عليه يا قاسم ، حاصل تقسيم ۰

ګورو چی له قاسم يا مقسوم او همداسی د مقسوم عليه او حاصل تقسيم څخه مو دا د پښتو نومه ونی پر- يا پرې ويشونی ، ويشه ونی اوويش ارزښت يا لاس ته راوړنه ساده او زر پوهېږ دي، خو په خواشينی به وه وايم، چی تراوسه په شميرپوهنه كی ورسره نابلد يو ۰

که ۱۲ کتابچې پر څلورو زده کوونکو وويشو، نو هر يوه ته درې کتابچې رسيږي٠ گورو، چې ۱۲ په يو څه ويشلکيږي، نو ويشونی يې ښه نوم دی٠ دا ۱۲ په څلور ويشل کيږي پر ۰۰۰ ويشل کيږي، نو له دې امله څلور پر ويشونی بولو، درې يې لاس ته راوړنه ده لکه چې تراوسه مو ورته حاصل تقسيم وايه، له دې امله ورته ويش ارزښت وايو او دا کارونه يا عمليه خو ويش بلل شوی٠

## ۳ ۰ ۱ ۰ ۲ ټولګښونه يا تام اعداد INTEGERs

د دووو طبيعي عددونو a او bکمون يا تفريق ( x= b-a ) ټيک او ټيک هلته يا هلته او هلته د طبيعي عددونو ډيری يا سټ کی شته، چې وي : $a \leq b$

د شميرپوهنې نخښو باندې داسې ليکل کيږي:

$$x = b - a \Leftrightarrow a \leq b$$

انګريزي يې if and only if ټيک او ټيک هلته يا هلته او هلته( دا شننه يا وينه پورته د شميرپوهنې نخښې ته ده)٠

که هغی نخښی ته وګورو، نو هم لاندې ترې څرګنديږي، له ښی لور کيڼ لاس ته راځی او په څټ( برعکس) له کيڼ لور ښی لاس ته راځی٠ يا که۰۰۰ وي، نو ۰۰۰ لاس ته راځی او په څټ٠

ټولګښونه يا تام اعداد هم د انسانانو د اړتياو پر بنسټ منځ ته راغلي ، يا منځ ته راوړل شوي٠که چيرې سپين د خړ ۱۰۰ افغانیپوروړی وي او سپين ورته اتيا افغانی ورکړي، نو سپين بيا هم شل افغانی پوروړی پاتيږي، دا په دی ما، چې ۸۰ + ۱۰۰ - = ۲۰ - ۰ ګورو، چې ۲۰ – يو پيدايښتي ګڼ يا طبيعي عدد نه دی٠يا 20- = 100 – 80

په هغه حالت کی، چی کموونی (مفروق) له ترېکموني(مفروق منه) څخه لوي وي، نو لاس ته راوړنه يې طبيعي عدد نه دئ٠ اوس يوه د اعدادو بلې ډيری پيژند ته اړ کيږو، چی هغه د ټولګڼونوډيری ده او دا د طبيعي عددونو او د طبيعي عددونو کمي( منفي) او صفر سره يوځاي کوو، چی ټولنه جوړوي( په ډيری کۀ به روښانه شي)، هغه څه، چې له دې ټولنې لاس ته راځي هغه د ټولګڼونو ډيری ده او داسې يی ليکو:

$$Z = N \cup -N \cup 0$$
$$Z = \{\ldots -3, -2, -1, 0, 1, 2, 3 \ldots\}$$

د دې لپاره، چې ترې کمونی د کمېدونی کوچنی وي ، نو پيداينتي ګڼونه په کمګڼونو غزوو يا پراخوو، دا په دې مانا، چی د پيداينتي ګڼونو مخنخښه په کموننخښه يا منفي نخښه باندې سنبالوويانې ( کيدی شي زموږ هيوادوال د څټ نخښی په نامه ورسره بلدوي، خو هره نخښه، چې د ګڼ زياتی يا کمی ښايي د ګڼ کيڼ لور ته ليکل کيږي، چې دا ما مخنخښه ليکلې او بللی

هغه په برخه ۳ ۰ ۱ ۰ ۱ کې ورکړ شوي شميرقوانين په Z کې هم باور لري

د ټولګڼونوډيری

$$\} \qquad Z = \{ \ldots -3, -2, -1, 0, 1, 2, 3, \ldots$$

د مخه مو شميرقوانين، چې د پيداينتي ګڼونو لپاره ورکړل، هغۀ د ټولګڼونو لپاره هم باور لري

د کمون يا تفريق بنسټقوانين ( پسی يا دوام):

۲ - د هرو دوو ټولګڼونو يا تام اعدادو a او b لپاره يو ټولګڼ x=b-a شته، د کوم لپاره، چیa+x=b برابرون باوري دئ

د ويش تيوري:

## ۳ . ۱ . ۲ الف د ويش قاعدې ، لارې يا خويونه

د طبيعي عددونولپاره د نورو قاعدو ترڅنګ ، چې د لومړنيو ګڼونو د ټوټه ونې يا تجز يي لپاره خورا ګټور دئ باور لري

الف ) يو ګڼ په ۲ (٤ ، ۸ ، ١٦ ) ويشونی دی، که د اخر ځيفر يا کور ( له اخره( موخه تری ښی لور دئ) دوه ، درې ، څلور ۰۰۰ بنستيزو ځيفرونو ) څخه جوړ ګڼ په ۲ ( ٤ ، ۸ ، ١٦ ۰۰۰ويشونی وي) په دوه ويشونی ګڼ جوړه ( جفت) نوميږي او بل ډول يی ناجوړه( طاق) بلل کيږي۰ ګورو، چی دلته هم په جوړې او ناجوړه ښه پوهيدلی شو

ب ) يو ګڼ په ٥ ( ٢٥ ، ١٢٥ ، ٦٢٥ ، ۰۰ ) ويشونی دی، که د اخر( له ښي لور) بنستيز ځيفر ( د اخر دوه، درې ، څلور ، ۰۰۰ بنستيز ځيفرونو) جوړ ګڼونه په ٥ ( ٢٥، ١٢٥ ، ٦٢٥ ۰۰۰) ويشوني وي

يادونه : په لاتين کی هغه، چی ښي لور ته وي هغه ته اخر وايي او موږ يې شايد لومړی وبولو۰ زه کوښښ کوم، چې دا پوهوړ وليکم، خو بيا دې هم ګران لوستونکی تری ټيک ناپوهيدنه ماته وبخښي او مشوری دې راکړي۰

پ ) يو ګڼ په ۳ همداسی ۹ ويشونی دئ ، که د ګڼ پروت زياتون پر دې ګڼونو ويشونی وي۰

د يوه ګڼ پروت زياتون لاندې د هغه ګڼ بنستيز ه ګڼونخښو(ځيفرونو) زياتون پوهيږو، بی له دې، چې د هغه ځاي ارزښت په پام کې ونيول شي۰

بيلګۀ : د 126 پروت زياتون يا پرته جمعه ده: 1+2+6=9

ت) يو ګڼ په 11 ويشونی دئ که د هغه ګڼ الترنيري( نخښه بدلونکی) پروت زياتون۰ پر 11 ويشونی وي۰

الترنيري پروت زياتون، چې پروت کمون هم ورته وايی له بنسټيزو ځيفرونو ۱ ، ۳ ، ٥ زياتون ځخه د ۲ ، ٤ ، ٦ ،۰۰۰ زياتون کمون پو هيږو ، بی له دې، چې ځاي ارزښت يې په پام کی ونيول شي يا په بل ډول، که د ناجوړه کور زياتون ځخه د جوړه د زياتون کم کړو۰

بيلګه: ۱۷۳۸ په ۱۱ ويشوني دي، ځکه، چې : ۱٥= ۸+ ۷ او ٤ - = ۳ – ۱ -، چې الترنيري زياتون يانی ۱۱ = ٤ – ۱٥ يې په ۱۱ ويشونی دی۰

ټ ) يو ګڼ پ ه ۳۷ وېشوړ دی که ( د ګڼ له اخر ځخه جرړشوي) د درېګوني ګڼونو زياتون پر ۳۷ وېشونی وي.

بيلګه:

37|(448+352+216+20)⇔ 37|1036 ځکه چې 37 |20216352448

ث ) يو ګڼ په ۷ همداسې په ۱۳ ويشوړ دی، که د هغه ( د ګڼ له لخ ځخه جوړ) درېګونی الترنيري زياتون پر ۷ همداسې پر ۱۳ وېشونی وي.

بيلګې : 37604 | 7 ځکه چې 7 | 567 ⇔(37-604)|7

13| (889-293+709-96) ⇔ 13|1209 ځکه ، چې 13 | 9679293889

ج) يو ګڼ په ۱۰۱ وېشونی دی، که (د ګڼ له اخر ځخه جرشوی) دوهګونی الترنيري زياتون په ۱۰۱ وېشونی وي.

بيلګه:

101|(69-06+63-03+79)⇔ 101|202 ځکه چې 101|7930630669

يادونه : که پيداښتي ګڼونه a او b ولرواو ولرو a : b ، نو a پر b وېشو، که وېش

ارزښت يې هر ګڼ وي او که پېداښتي ګڼونه a او b ولرو او ولرو b|a ، نو دا په دې مانه، چې ګڼ b ګڼ a ويشي بې له پاتي ياني ګڼ a په ګڼ b وېشوړ دی.

## ۳ . ۱ . ۲ټ) خوراغټ ګډ پرويشونی او خورا کوچنی ګډ زياتځله

يا بزرگترين قاسم مشترک و کوچکترين مضرب مشترک(ذو الاضعافالاقل)

Great common divisor and small common multiple

ددې لپاره، چې دا په سرليک کې ورکړ شوي څه ښه و پېژندلی شو ، داسې مخ ته ځو:

لاندې ګڼونه دې ورکړ شوي وي، سملاسي يې په لومړنيو ګڼونو ټوټه کوو

$$260 = 2.130=2.2.65=2.2.5.13 = 2^2.5.13$$

$$468=2.234=2.2.117=2.2.3.39=2.2.3.3.13=2^2.3^2.13$$

له پورته دواړو ګڼونو د لومړنيوګڼونو ځله وونو هر يوه څخه هغه لومړنی ګڼ رانيسو او سره ځله وو بې، چې په دواړو ګڼونو کې ګډ وي او توان( په خپل ځای کې دې وکتل شي) يا جګګڼ بې ټيټ يا کم وي . ياني

$$22.13 = 2.26 = 52$$

دا پورته لاس ته راوړی ګڼ ياني ۵۲ پورته دواړه ګڼونه وېشي ياني د دواړو ګڼونو پرووېشونی

دی او خورا غټ پرووېشونی هم دی. ياني ۵۲ خورا غټ او ددواړو ګډ پرووېشونی دی.

لنډ : ۵۲ د يورته ګڼونو خورا غټ ګډ پروېشونی دئ.

داسې ګڼ ، خوراغټ ګډ پروېشونی، بولو ( لنډ ونه يې : غ ګ و )

هغه ګڼ، چې د دوه يا ډېرو ګڼونو ګډ پروشونی او خورا غټ هم وي، نو دې ګڼ ته خورا,,

غټ ګډ پروېشونی ,, ( لنډونه: غ ګ و) وايو. يا

(بزرګترين عامل ( مقسوم عليه ) مشترک)Greatest commom divisor(g c d)

اوس بيا داسې مخ ته ځو:

په پورته کې هغه د دواړو ګڼونو لومړني ځله وونې، له هر څخه يو چې په جګ توان وي

يانې خورا غټ جګګڼ ولري ، هغه د جګ توان رابېلوو او بيا يې سره خله وو، چې لاس ته

ترې راځي: $2^2.3^2.5.13=2340$

دا پورته ګڼ يانې ۲۳۴۰ د دواړو ورکړ شوو ګڼونو ګډ زياتځله دئ ( يانې ګډ په دواړو

وېشل کيږي) او دا خورا کوچنی ګڼ هم دئ. دا په دې مانا،چې له دې ګڼ بل کوچنی ګڼ نه

شته، چې د پورته ګڼونو دواړو ګډ زياتځله( ځو برابره ) وي.:

لنډ : خورا کوچنی ګڼ دی. د دواړوګڼونو (يانې ګډ) زياتځله (ګډ ځو واره) دئ

لنډ يې : خورا کوچنی ګډ زياتځله ( لنډونه يې: خ ګ ځ) يا
(کوچکترين مضرب مشترک يا ذوالاضعاف الاقل)Least common multiple(l.c.m.)

گران هيوادوال دې ورته پام وکړي، چې کوم نوم به زموږ لپاره زر يا بيخي پوهوړ او ساده وي.

وربسي داسي مخ ته ځو:

دا چې موږ په پيداينت يا طبيعي گڼونو کې له شميرلو سره بلد شو ، نو په لاندې ډول پيژند ورکوو:

پيژند( تعريف)۳ ۰ ۳ :

a او b دې تولگنونه وي۰ وايو چې « گڼ a گڼ bويشي» ( او يا هم a د bپرويشوني دئ او يا همa د b څو برابره ( زياتځله ) دئ) که يو تولگڼ u شته يا موجود وي او دا باوري کړي$au=b$ ددې لپاره ليکو$a|b$ (وايو، چې گڼ aگڼ b ويشي ، خو اړيين يا ضرور نه ده، چې کلمه گڼ ورسره وويل شي۰

که a د bپرويشونی نه وي، نو د دې لپاره ليکو$a|/b$(دا نخښه /| دې د نه ويشونی لپاره ومنل شي)

بيا ليکو، چې : پيداينتي گڼونه، چې په ۲ ويشل کيږي جوړه ( جفت) گڼونه بلل کيږي او که نه نو ناجوړه ( طاق) گڼونه بلل کيږي۰ د صفر گڼ د پيداينتي گڼونو په ډيرئ کې يو ځانگړی حالت لري۰

په لاندې جمله کې بې له ښووني يا اوبيونې د دې ويشکلمی لپاره يو څو ساده شميرقاعدې را يوځاې کوو، چې په راتلونکې کې ترې کار اخستل کيږي۰

جمله ۳ ۰ ۱ :

د په خوبنه يا زړه پورې تولگڼونو $a,b,c,d$ لپاره باوري دي:

( ۱ ) $\pm 1$ او $\pm a$ ويش ( دا په نامه « ساده» پرويشوني دي)

(۲) د ۱ پرویشونی ۱ او ۱ - دي

( ۳ ) تل باور لري، چې 0 | a او a | 0 یواځی په هغه حالت کې باور لري، چې a = 0 وي

( ٤ ) له a|b او b|c => a|c

( ٥ ) له a|b لاس ته راځي: ac|bc ۰که c |= 0 وي ، نو د دې په څېر هم باوري دي۰ دا په دې مانا چې، که ac|bc وي، نوa|b هم باور لري۰د ګڼونو لیکدود له مخې، که نړیوالجال ته پورته شو داسې لیکو، که نه دا پورته بسیا کوي: $c \neq 0, a \mid b \Rightarrow ac \mid bc$

( ٦ ) لهa|b او c|d څخه لاس ته راځي او په څېر ac| bd لنده لیکنه یې(که نج ته پورته شوه ): $a \mid b, c \mid d \Leftrightarrow ac \mid bd$

( ۷ ) له a | b او b| a لاس ته راځي a = ± b

( ۸ ) له a |b اوa|c څخه لاس ته راځي a|(bx+cy) د ټولو ټولګڼونو x او y لپار

( ۹ ) تیک هلته a|b کله چی وي|b| | |a|،

(۱۰ ) که a | b او b = 0 نه وي نو باوري دي |b| > a > |b| -

حل ( اوبی ) : ( ۱ ) له a = (-1)(-a) = a1 لاس ته راځي

( ۲ ) له a0 = 0 لرو a | 0 . که وي a | 0 , نو یو ټولګڼ u شته د کوم لپاره چی وي 0u = a او له کومی چی لاس ته راځي a = 0 .

( ۳ ) ساده دی.

( ۴ ) که $a \mid b$ او $b \mid c$ , نو ټولګنونه $u$ او $v$ د $au = b, bv = c$ سره موجود دی . له دې لاس ته راځي $c = bv = a(uv)$ ، پس $a \mid c$ .

( ۵ ) که $a|b$ ، پس یو ټولګڼ $u$ د $au = b$ سره موجود دی، او هم د $(ac)u = bc$ ) سره، د کوم څخه چی لاس ته راځي $ac \mid bc$ . د $c \mid= 0$ لپاره دا اخرنتخیر په څټ کیدی هم شي.

( ۶ ) د $a|b$ , $c|d$ او ( ۵ ) څخه لاس ته راځي چی $ac|bc$ او $bc|bd$ ، د ( ۴ ) له مخی $ac \mid bd$ .

( ۷ ) د $a \mid b$ او $b \mid a$ څخه د ټولګنونو $u$ او $v$ موجودیت لاس ته راځي د $au = b$ او $bv = a$ سره. برسیره پر دې لاس ته راځي $a(uv) = a$ , پس $a=0$ یا $u=v=\pm1$ . په لمړي حالت کی د $a \mid b$ له امله $b = 0$ , پس $a = b$ . په دوم حالت کی $a =\pm b$ دی.

( ۸ ) د ټولګنونو $u$ , $v$ لپاره دې $au = b$ او $av = c$ ، نو له دې $a(ux+vy)=bx+cy$ لاس ته راځی، پس $a \mid (bx+cy)$ د ټولو ټولګنونو $x$ او $y$ لپاره.

( ۹ ) وي دې $a|b$ . له $a \mid b$ ، $a| \mid |a|$ او $|b| \mid b$ څخه او د ( ۴ ) څو واره استعمال څخه لاس ته راځي، چی $|a| \mid |b|$ . په څټ: که $|a| \mid |b|$ باورلری، نو د $|a| \mid |b|$ ، $a \mid |a|$ او $|b| \mid b$ څخه په ورته ډول لاس ته راځي $a \mid b$ .

( ۱۰ ) دی $a \mid b$ ، پس د ( ۹ ) هم $|a| \mid |b|$ . که $b \mid= 0$ وي ، پس یو طبعي ګڼ $u$ لاس ته راځي د $|a|u = |b|$ سره، له کوم چی $|a| \leq |b|$ لاس ته راځي.

که $b|a$ د ټولګنونو $a,b$ لپاره د $b \mid=0$ سره، نو یو یواځنی معلوم ګڼ $q$ شته ( د $a$ او همداسی د $b$ «کومپلیمنت پرویشونی» بلل کیږي )، چی لرو $a = bq$ .

په ټولیزه توګه لاندې جمله باور لري

جمله ۳ ۰ ۲ ( د ویش الګوریتم): a اوb دې تولګنونه وي۰ د $b \neq 0$ سره ۰ نو یواځني ټاکلي، په پای پلونو(قدمونو) کی شمیرلکیدونکي تولګنونه q اوr (چې د a پرb ویش

ځخه لاس ته راځي او «ویش» په همدې ډول « پاتی بلل کیږي، شته دی،د کومو لپاره چی باور لري: $a = bq + r \ \wedge \ |0| \leq r < b$

هر یو تولګې کم له کمه ساده پرویشونی لري یعنی $\pm 1$ او پخپله د دې تولګې زیاتیز( مثبت) او کمیز( منفي)۰ دې پرویشؤنو ته «سادهٔ پرویشونی» وایو۰

پیژند ۳ ۰ ب :

هر یو تولګې، چې یواځی او یواځي ساده پرویشونی ولري موږ ورته لومړنی ګنونه وایو او دا لومړنی یا پریم ګنونهPrimzahlen په pسره په نخښه کوو، چې دا پریم یا لومړی ګڼ د پیدایښتي ګنونوتوکی دی۰

هریو تولګې، چی لومړنی ګڼ نه وي د لومړنیو ګنونو په ځلونو( ځله وونو)(ضریبونو) توټه یا تجزیه کیدی شي۰

بیلګی :

1 - $240 = 24 \,.\, 10 = 3 \,.\, 8 \,.\, 2 \,.\, 5 = 2 \,.\, 2 \,.\, 2 \,.\, 2 \,.\, 3 \,.\, 5 = 2^4 \cdot 3 \,.\, 5$

2- $2310 = 2 \,.\, 1155 = 2 \,.\, 3 \,.\, 385 = 2 \,.\, 3 \,.\, 5 \,.\, 77 = 2 \,.\, 3 \,.\, 5 \,.\, 7 \,.\, 11$

$3750 = 25 \,.\, 15 \,.\, 10 = 5 \,.\, 5 \,.\, 3 \,.\, 5 \,.\, 2 \,.\, 5 = 2 \,.\, 3 \,.\, 5^4$

که پورته بیلګو ته په ځیر شو نو په ۱ او ۳ راغلو ګنونو کی ګڼ ۲ د دواړو پر ویشونی دی او همدا ډول ۳ هم د دواړوګنونو پرویشونی دی یانی $2.3 = 6$ برسیره پردې ګڼ ۵ هم نو $2.3.5 = 30$ دواړه ګنونه ویشي او شاید په دې ګنونو کی یو خورا غټ ګډ پرویشونی هم وي۰

په پورته درېواړو بيلګو کې ۲ ، ۳ ، ۵ د ځلوونو په څير خوندي دي يانې دا ګنونه ويش، چې له دې امله ګڼ ۳۰ د درجواړو ګنونو غ۰ګ۰پ دئ

پيژند ۳ ۰ پ :

a او b دې ټولګنونه وي او d دې يو مثبت يا زياتونى ټولګڼ وي، د کومو لپاره، چې باور لري:

$$(1) d \mid a \wedge d \mid b$$
$$(2) t \mid a \wedge t \mid b \Rightarrow t \mid d$$

پس d د a او b خورا غټ ګډ پرويشونى(غ۰ګ۰پ) بلل کيږي d لپاره داسى ليکو:

$$d = (a,b)$$

نو d خورا غټ ګډ پرويشونى( لنډ: غ۰ګ۰پ) بلل کيږي۰

که باوري وي: $(a,b) = 1$ نو a او b پروېش پردي بلل کيږي يانې له ۱ پرته بل داسې ګڼ نه شته، چې دواړه ګنونه پر ووېشل شي.

يادونه : په زياتو ادبياتو کي لنډونه په درېتورو کيږي، خو که غواړى دا خورا غټ ګډ پرويشونى داسې رالنډوو : خ غ ګ پ

يادونه: ما د خورا غټ ګډ پرويشونى لپاره دا پورته درې توکي غوره کړي، که ګران لوستونکي بل وړانديز لري، نو زه يې ضرور په پام کى په پوره خوښى نيسم۰ دې دوه کلمو ته په فارسي ادبياتو کي بزرګترين قاسم مشترک او کوچکتريب مضرب مشترک وايي او ذوالاضعاف الاقل يې هم بولي۰

يادونه : که چيرېd او *d دواړه دa او b غ ګ پ وي، نو له پورته پيژند څخه لاس ته راځي

چی $d \mid d^*$ او $d^* \mid d$ ، نو د $d \geq 0$ , $d^*$ له امله لرو $d^* = d$

لاندې جمله به وښايي ، چې داسې غ ګ و تل شته دی

جمله ۳ ۰ ۳ :
په خوښه ټولګټونوa اوb لپاره دې غ ګ پ d شته وي، نو ټولګټونه x او y شته د کومو لپار، چې لرو: $d = ax + by$

حل( اوبی): که $a = b = 0$ وي ، نو 0 د a او b غ ګ و دی، نور ساده دی. د a او b د ممکنه بدلون ( په پام کی دې وي چی د $(a , b)$ تعریف په a او b کی سیومتریك دی) له امله اجازه لرو چی $b \neq 0$ ونیسو.
موږ اوس رکورسیف (rekursiv (دا په دې مانا چی د مخه غړي څخه وروستی یعني وریسی غړی لاس ته راوړلکیږي )
ټولګټونه.......,$r_{-1}, r_0, r_1, r_2$.......... او $q_1, q_2$.......... په لاندې ډول تعریفوو : وي دې $r_{-1} = a$ , $r_0 = b$ د $i \geq 1$ او $r_{i-1} \neq 0$ لپاره ټولګټونه $r_i$ , $q_i$ داسی تعینوو چی $r_{i-2} = q_i r_{i-1} + r_i$

او $0 \leq r_i < |r_{i-1}|$ کوم چی له جملی ( ۱ . ۳ ) څخه ممکن کیدی شي . باید یو نه منفی ګڼ n ورکړ شوی وي، د کوم لپاره چی لرو $r_n \neq 0$ مګر $r_{n+1} = 0$ , چی بی له دې بیا یوه نه پای د طبعي ګڼونو لویدونکی یا کمیدونکی پرلپسی لاس ته راځي، کوم چی ناشونی(ناممکن) دی. دامو اوس ددې لاندې مساواتو شیما ته لاربشودوي

$$a = q_1 b + r_1$$

$$b = q_2 r_1 + r_2$$

..................

..............

$$r_{n-2} = q_n r_{n-1} + r_n$$

$$r_{n-1} = q_{n+1} r_n$$

که دا مساوات د شکته پورته وویل شي، نو په ترتیب (یو په بل پسی) لاس ته راځي:

$$r_n \mid r_{n-1} , r_n \mid r_{n-2} , \dots r_n \mid b , r_n \mid a$$

دا په دې مانا چې $r_n$ د a او b یو غ ګ و دی. t دې د a او b یو بل غ ګ و وي،
نو په دې حالت کې که دا پورته مساوات له پورته شکته ولولو، نو یو په بل پسی لرو

$$t \mid r_0 , t \mid r_1 , t \mid r_2 ,\dots, t \mid r_{n-1} , t \mid r_n$$

دا په دې مانا چې |r| د a اوb غ ګ و دی.
هر د دې ګڼونو $r_i$ د ( $-1 \leq i \leq n$ ) سره، په ځانګړي ډول $r_n$ او ددې سره (a , b) یو د a او b لاینې کمبینیشن دی ، په لاندې ډول au + bv , چې u او v ټولګڼونه دي.
$r_{-1} = a$ د
او $r_0 = b$ لپاره ساده دی. که د یوه i لپاره د $1 \leq i \leq n$ سره، که یو د a او b یو لاینې کمبینشن ښوونه د $r_{i-1}$ او $r_{i-2}$ لپاره همدا سم د لاسه پیداشوي وي، نوله $r_{i-2} = q_i r_{i-1} + r_i$ څخه د یوې داسې $r_i$ د ځاي په ځاي کولو له لارې هم ، چې په دې ډول د ایندکشن له لارې غوښتنه لاس ته راځي. ( پای )

یادونه : د غ ګ پ د ښوونې متود ، چې پورته او په لاندې بیلګه کې راوړل شي د اویکلید الګوریتم"Euklid Algorithmus„ د یوې ګڼیزې دندې یا کارونی (عملیې) شیماتیکي اوبیونې( حل) متود په نامه یادیږي، نو له دې سره x او y هم له a څخه

d = ax + by اکسپلیځیتExplizit ( لاتین: څرګند، واضح، روښانه) شمیرل کیدی شي.

بیلګه:

غوښتنه (1764 , 2124 ) = d . د اویکلید الګوریتم کارونی له لارې لرو:

$$2124 = 1 . 1764 + 360$$

$$1764 = 4.360 + 323$$

$$360 = 1.324 + 36$$

$$324 = 9.36$$

$$\Rightarrow d=36$$

که پورته وګورو نو   غ ک پ   $d = 36$ دئ

د دې لپاره ، چې$d$ له$x$ او$y$ سره په $d = ax+by$ ډول انځور کړی شو، نو په لاندې توګه مخ ته ځو:

$$36 = 360 – 1.324 = 360 – 1( 1764 – 4.360) = (-1).1764 + 5.360$$

$$= ( -1) . 1764 + 5.(2124 – 1764) = 2124 . 5 + 1764.(-6)$$

د پورته څخه د$a$ او$b$ لپاره لاندې مهمه پېژند نخښنه يا نخښنونه لاس ته راځي

يادونه : ماته دا لاندې جملې ښه ښکاريږي، چې ګرانو لوستونکو ته يې بې له اوبيونې

وړاندې کړم، دا جملې په خته کې د ګڼونوتيوري دنده ده، چې په ګڼونتيوري کې بيا د ښوونې سره ښوول کيږي٠

جمله۳ ۰ ۹ :

$a$ او$b$ دې ټولګڼونه وي. د $a$ او$b$ يو ګډ پرويشونی $t \geq 0$ هلته او هلته د $a$ او $b$ ګ غ پ دئ کله چې دا شکل $t = ax + by$ د $a$ او$b$ ټولګڼونو سره انځور کړاي شو٠ په ځانګړي ډول $a$ او$b$ هلته او هلته ويشپړدي دي، که ټولګڼونه $x$ او$y$ شته وي د کومو لپاره چې باور لر:

$$ax + by = 1$$

اوبیونه : د شرایطو ضرورت سم د لاسه له ۳ ړ ۶ څخه لاس ته راځي. دا چې شرایط پوره کېدونکي هم دي، له دې لاس ته راځي، چې هر د او پروېشوني د پروېشوني هم دي..

څو جملې په لاندې کې روړو، ګڼونتېړي پورې اړه لر او دلته یې نه ښایو.

جمله : ۱۰ . ۳

a او b دې تولګڼونه وي٠ د a او b هر ګډ پرویشونی $t \geq 0$ لپاره باور لري:

$$(a/t,b/t) = ( a,b) / t$$

په ځانګړي توګه t د a او b یو ګډ پرویشونی هلته اوهلته غ ګ پ دئ چې باور ولري

$$(a/t,b/t) = 1$$

لیما۳ ٠ ۱۱( جمله ګۍ)( اویکلید): په خوښه تولګڼونو aاو b او c لپاره باور لري

له $a|bc$ او $(a,b) = 1$ لاس ته راځي $a|c$

تعریف ۲ ت : $a_1 , a_2 , .... a_n$ دې تولګڼونه وي $( n \geq 1 )$, او d دې یو نه منفي تولګڼ وي د کوم لپاره چې باور لري :

لمړی : $d | a_i$ د ټولو $i = 1 ,...., n$ لپاره

ب : له $t | a_i$ څخه د ټولو $i = 1 ,...., n$ لپاره لاس ته راځي $t | d$ .

نو d د $a_1,...., a_n$ غ ګ و بلل کیږي او د d لپاره هم داسې لیکو $( a_1 , .... , a_n )$.

د $a_n$ , .... , $a_1$ لپاره د داسی غ گ و یواځنتوب په۳ . ۵ کی کتل کیدی شي او د موجودیت لپاره یی لرو :

جمله۳ . ۱۳ : د خوښي تولګټونو $a_n$ , ... , $a_1$ لپاره ( $n \geq 1$ ) غ گ و موجود او d د $a_n$ , ... , $a_1$ خطي (لایتي) کمبینیشن دی دا په دې مانا چی

$$d = a_1x_1 + ... + a_nx_n$$

د مناسبو تولګټونو $x_n$ , ... , $x_1$ لپاره.

یادونه : له دې بیا لاس ته راوړل کیدی شي:

$$( a_1 , .... , a_n ) = ((a_1 ,..., a_{n-1}), a_n)$$

د په خوښه تولګټونو$a_n$ , ...,$a_1$ د ( $n \geq 1$ ) لپاره. سړی کړی شي چی د $a_1,...,a_n$ غ گ و پل په پل د اویکلید الګوریتموس له لارې پیدا کړي، چی دلته یی د اوبی یا حلښخه تیریږو.

د اوبی یا حل لپاره یی د n په لور د پوره ایندکشن څخه کار اخستل کیږي چې په ۸ –امه برخه کې څیړل شوی دی.

بیلګې:

۱ - ګڼونه 240 او3750 غ گ پ 30 = 2.3.5 لري

۲ – لرو 408 او748

$$408 = 2^3.3.17, 748 = 2^2.11.17$$

پس غ ک پ دی: 17 . 2<2> = (408,748 ) يا دا لاندې که ن ج پورته شول

$$(408,748) = 2^2.17 = 68$$

۳ – پ غ ک پ د ګڼونو او غ ک پ 6 = (30.66.114 ) دی، ځکه، چې
30 = 2.3.5

او 66 = 2.3.11 او 114 = 2.3.19 دي

٤ – ګڼونه 54 او 65 ګډ پرويشونی نه لري دا موږ پرويشپردی بولو، ځکه، چې دي:

65 = 5.13 /\ 54 = 2.3.3.3

## خورا کوچنی ګډ زیاتځلی(کوچکترین مضرب مشترک )

موږ په لاندې کې د خورا کوچني ګډ زياتځله ( لنډ: ک ک ز) کليمې په څيړنه پيل کو۰ دا کلمه و غ ک پ یوه دوه ییزه یا دوه ګونی یا غبرګه (دوال Dual) کلمه ده، موږ په لاندې ډول سملاسي تېوليز پيژند ورکوو

**تعريف ۲** . تې : $a_1 ,....., a_n$ دې ( $n \geq 2$ ) ټولګڼونه وي، او v دې یو داسی نه منفی ټولګڼ وي، د کوم لپاره چې باور لري:

الف – $a_i \mid v$ د $i = 1 ,, ... , n$ لپاره

ب – له $a_i \mid w$ څخه د $i = 1 , ... , n$ لپاره لاس ته راځي $v \mid w$ .

نو v د $a_1 , ... , a_n$ کوچنی ګډ زیاتځله( لنډ : ك ګ ځ ) بلل کیږي او داسې یې لیکو

$$v = [a_1 , ... , a_n ]$$

پيژند (د دوه ګڼونو لپاره )

a او b دې ټولګڼونه وي او v دې يو داسې نه کميز يا نه منفی ټولګڼ وي، د کوم لپاره، چې باور لري:

( ۱ ) $v|a$ او $v|b$

( ۲ ) له $a|w$ او $b|w$ څخه لاس ته راځی $v | w$

نو v د a او b خورا کوچنی ګډ زياتځله ( لنډ» ک ګ ز او که غواړی خ ک ګ ز) بلل کيږي او په لاندې توګه يې ليکو

$$v = [a,b]$$

جمله :

په خوښه ټولګڼونو $a,b,c,\ldots,n$ لپاره ک ګ ز شته دی او دا يواځنی دئ

$$[a,b,c,\ldots,n]$$

**يادونه: موږ لاندې مساوات هم د مختلفو جملو او د هغو له حلونو لاس ته راوړو:**
دټولګڼونو ( $n \geq 3$ ) $a_1, \ldots a_n$ لپاره لرو $[a_1,\ldots,a_n] = [[a_1,\ldots,a_{n-1}], a_n]$
او هم $|a_1a_2| = [a_1, a_2] (a_1, a_2)$

**لاس ته راوړنې ( داهم په همدې مانا مګر د جملی په څير دی ): د په خوښه ټولګڼونو $a, b, c$ لپاره باور لري: له $a | c, b | c$ او $(a,b) = 1$ څخه لاس ته راوړو $ab | c$**

د ګڼتيوري بنسټيزه جمله:

پيژنده :

يو ټولګڼ$n > 1$ لومړی ګڼ (prime number) بلل کيږي، که له ساده پرويشونv بل پرويشونی ونه لري٠

لومړي ګڼونه لاندې غوه خويونه لري.:

ليما (لکه کوچنی جمله ): که p يولمړی ګڼ وي او$p \mid a_1 \dots a_n$ د ټولګڼونو $a_1,\dots,a_n$ لپاره. نو $p \mid a_i$ د کم له کمه يوه i د $1 \le i \le n$ سره.
حل ( اوبی ): حل يی د ايندوکشن له لارې صورت نيسی، چی ددې لپاره بايد ۸ - امه برخه کتل شوي وي.
د $n = 1$ لپاره ښوونه ساده ده . اوس دې $n > 1$ وي او ليما دې $n-1$ لپاره سملاسي باور ولري. نو لرو $p \mid a_n$ . په بل ډول بيا له $p \nmid a_n$ څخه لاس ته راځی چې $(p, a_n) = 1$ دې . له مخنته تيرې جملی لاس ته راځي، چې که $p \mid a_1 \dots a_{n-1}$ وي ، نو داسې دی $p \mid a_i$ د يو i لپاره چې $1 \le i \le n-1$ وي د ايندکشن د نيونې په بنسټ.

د لومړنيو ګڼونو غوره والی د « ګڼونتيوري بنسټيزی جملې» څخه لاس ته راځي

جلمه ( د ګڼونتيوري بنسټيزه جمله):

هر يو پيداينتي ( طبيعي) ګڼ ،د ګڼونو تر تيب پورې، په يواځني او يواځني ( يويواځنی (له دې کلمو څخه موخه داده، چې دا په يواځی يو ډول ليکل کيدی شي او بس٠ کيدی شي د ګڼونو پروتځاي بدل وي، خو ضريبونه همغه دي)) ډول د لومړنيو ګڼونو ځل په ځير ليکل کيدی شي٠

اوبی : ښوونه د n په لور ايندکشن له لارې مخ ته بيايو (برخه ۸ دې ودې کتل شي )
د $n = 1$ لپاره باور لري، که. لکه معمول ، 1 د طبعي ګڼونو د تش(خالي ) ځل په ځير تعريف کړو. له دې امله دې $n > 1$ وي او جمله دې د ټولو طبعي ګڼونو $< n$ لپاره ښوول

شوي وي. مونږ اوس ټول د n پروېشونی $t > 1$ په نظر کي نيسو. کم له کمه يو داسی ګڼ شته لکه n . که p د دې پرويشونو کوچنی پرويشونی وي، نو p لمړی ګڼ دی. په بل ډول به نو بيا p يو پرويشونی q لرودی د $1 < q < p$ سره، او دا چی q د n پرويشونی وي، نو دا به د p تعريف رد کړي. دا چی $n / p < n$ د ايندونکشن نيوني په بنسټ $\frac{n}{p}$ د لمړي ګڼونو د ځل په څير ليکل کيدی نو په همدې ډول پخپله n هم.

وي دې $n = p_1p_2..p_r = p'_1p'_2...p'_s$ د n دوه ډوله د لمړيوګڼونو د ځل په څيرليکنه . له $p_1 \mid p'_1...p'_s$ اوس لاس ته راځي $p_1 \mid p'_i$ د يو i د $1 \leq i \leq s$ سره . د نمړې بدلولو له لارې دې وي $p_1 \mid p'_1$ . داچي بيا $p_1 = p'_1$ باور لري، نو لاس ته راځي $p_2...p_r = p'_2....p'_s$ ، له کومو چی د ايدکشن له نيونی لرو $r - 1 = s - 1$ ، پس $r = s$ او ( او د ترتيب بدلون ) هم $p_i = p'_i$ له $2 \leq i \leq r$ لاس ته راځي .

پای.

د بنسټيزې جملی د ګټور استعمال لپاره لاندې جمله ده

| |
|---|
| **جمله** : هر طبعی ګڼ n په ټيك يو ډول په لاندې فورم انځوريدلی شي $n = \prod_p p^{\nu_p}$ ( لپاره p د پای ډيرو $\nu_p$ يواځي د $\nu_p = 0$ دي ).( ν نيول شتل کيږي) چيرته چی p ټولو طبعي ګڼونو کې په جګيدونکي لړی پرلپسې کې ځغلي. |

يادونه: د عملي شميرنې لپاره په هغو ګڼونو چې جګ يې صفر وي تيريدل کيدی شي، لکه : $n = 28 , n = 2^2.7$ د $n = 2^2 . 3^0 . 5^0 . 7$ لپاره

لاس ته راوړنې : $( a,b ) = 1$ او $( a , bc ) = 1$ ، نو هم $( a , bc ) = 1$ ،د په خوښه ټولګڼونو a , b , c لپاره

اوبی یا حل : نیولی دې وي چې $(a, bc) > 1$ ، نو بیا به یو لمړنی ګڼ p موجود وي د p/a او p / bc سره، د لیما ۲ . ۲ له مخې به یې باور لرودی p/b یا p/c داد (a,b)= (a,c) = 1 سره تضاد دی.

جمله : a او b دې له صفر مختلف ګنونه وي او $|a| = \prod_p p^{\alpha_p}$ او $|b| = \prod_p p^{\beta_p}$ د دوي مطلقه ارزښتونو لمړی فاکتورتجزیه د ۲ . ۴ له مخې ، نو a | b هلته او هلته باور لري که د ټولو لمړي ګڼونو p لپاره باور ولري $\alpha_p \le \beta_p$

لاس ته راوړني : وي دې a او b له 0 مختلف ګڼونه، $|a| = \prod_p p^{\alpha_p}$ همداسی $|b| = \prod_p p^{\beta_p}$ دې د مطلقه ارزښتونو لمړني فاکتورتوتونه ( تجزیه ) وي. نو باور لري

$$(a,b) = \prod_p p^{\min(\alpha_p, \beta_p)}, \quad [a,b] = \prod_p p^{\max(\alpha_p, \beta_p)}$$

چیرته چې $\min(\alpha_p, \beta_p)$ د دواړو ګڼونو $\alpha_p$ او $\beta_p$ خوراکوچنی او $\max(\alpha_p, \beta_p)$ خورا لوی په ګوته کوي.

**بیلګه** : $a = 2124 = 2^2.3^2.59$ او $b = -1764 = -2^2.3^2.7^2$ نو لرو $(a,b) = 2^2.3^2 = 36$ او $[a,b] = 2^2.3^2.7^2.59 = 104076$

**یادونه** : د لاس ته راوړنې ۲ څخه سم د لاسه له دوو څخه زیاتو ټولګنونوباندې غ ګ و او ک ګ ز هم استعمالیدی شي.

یو څو په لمړیو ګنونو اړونده پرابلومونو دې پوښتنو ته چې ایا ناپای زیات لمړي ګڼونه موجود دي که نه اویکلید لخوا ځواب ورکړ شوی. لاندې یو ښکلي ځواب دی چې له هغه ریښه نیسي:

لاس ته راوړني : وي دې a اوb له 0 مختلف ګنونه $|a|=\prod_p p^{\alpha_p}$ او $|b|=\prod_p p^{\beta_p}$ همداسې دې د مطلقه ارزښتونو لمړني فاکتورېتونه ( تجزيه ) وي. نو باور لري

$$(a,b)=\prod_p p^{\min(\alpha_p,\beta_p)}\ ,\ [a,b]=\prod_p p^{\max(\alpha_p,\beta_p)}$$

چيرته چې $\min(\alpha_p,\beta_p)$ د دواړو ګنونو $\alpha_p$ او $\beta_p$ خوراکوچنی او $\max(\alpha_p,\beta_p)$ خورا لوي په ګوته کوي.

**بيلګه** : $a = 2124 = 2^2.3^2.59$ او $b = -1764 = -2^2.3^2.7^2$ نو لرو $(a,b)=2^2.3^2 = 36$ او $[a,b] = 2^2.3^2.7^2.59 = 104076$

**يادونه** : د لاس ته راوړنې ۲ څخه سم د لاسه له دوو څخه زياتو تولګنونوباندې غ ګ و او ك ګ ز هم استعماليدی شي.

يو څو په لمړيو ګنونو اړونده پرابلومونو دې پوښتنو ته چې ايا ناپای زيات لمړي ګنونه موجود دي که نه اويکليد لخوا ځواب ورکړ شوی. لاندې يو ښکلي ځواب دی چې له هغه ربنبه نيسي:

جمله: ناپاي ډير لومړني ګنونه شته.

حل(اوبی) : موږ جمله ناسيده يا ناسمه ښايو ( ۸ –امه برخه دې وکتل شي ) او نيسو چې پايڼدير لمړی ګنونه $p_1 , p_2 , p_3 , ........, p_r$ موجود دي. ګڼ $N = p_1p_2...p_r+1$ له 1 لوي دی او له دې امله په يوه لمړي ګڼ p ويشونکی دی. د نيونی له مخی لرو $p = p_i$ د $1 \le i \le r$ سره . د $P|N$ او $p \mid p_1p_2....p_r$ له امله لاس ته راځي $p \mid 1$ .کوم چې ناشونی دی ( ناممکن ) له دې امله بايد ناپای زيات لمړي ګنونه موجود وي.

يادونه : د ميلاد څخه پخوا د « اريتوتنس غلبيل» متود څرګندوو، چې موږ د 1 او 100 ترمنځ د لمړي ګڼونو معلومول دځې متود له لارې په لاندې توګه څرګند وو

1 2 3 4 5 6 7 8 9 10 11 12 13 14
15 16 17 18 19 20 21 22 23 24
25 26 27 28 29 30 31 32 33 34 35 36
37 38 39 40 41 42 43 44 45 46 47 48 49 50
51 52 53 54 55 56 57 58 59 60 61 62 63 64
65 66 67 68 69 70 71 72 73 74 75 76 77
78 79 80 81 82 83 84 85 86 87 88 89 90 91
92 93 94 95 96 97 98 99 100

## ۳ . ۱ . ۳ ـ راشنل ګڼونه Rational Nnumbers

( لاتين: عاقلانه يا هوښيار اعداد يا ګڼونه)

د افغانستان په دري ادبياتو کې داسې ګڼونه او ايراشنلګڼونه کله ناطق د ګونګ اوداسې نورو ګڼونو په نامه يا ديږي، کله يې ماتګڼونه بللي، خوزه دا ښه بولم، چې دا همداسې يانې راشنلګڼونه وبلل شي، که څوک يې هوښيار ګڼونه بولی هم خوښه يی او يا مات ګڼونه ، خو دلته راځيو Ratio n هوښيار په معنا نه بلکه د نسبي په معنا دی٠

يادونه : که / ولرو يانې که ولرو a / b نو دا په دې مانا، چېa په b ويشل کيږي٠ که ولرو≠ نود نابرابرونخښنه ده٠ دا په دې مانا، چې b له 0 سره برابره نه ده٠ د دوه ګڼونود a او b ويش x = b / a د ټولګڼونو په ډيرۍ کې تل هلته شته دی، چې a د b ټولګڼيز څو ځله وي٠

د دې لپاره، چی بیا هم ویش$a : b$ ( دلته هم $b$ پر $a$ ویشل کیږي) کیدونی شي» سره له دې، چی ویش تل په ټولګڼونوکی پیژند نه لري یا تعریف نه دی یا صورت نه نیسي« باید د ټولګڼونو ډیری ماتګڼونو(کسر) ډیری‌ته پراخه شي، چی د لومړي حُل لپاره افاده یا وینه $b/a$ سومبولیک مانا لري، د نوو ګڼونو په څیر نیسو او په ټولګڼونو یې ور زیاتوو، نو هغهٔ ګڼونه، چې لاس ته راځی موږ ورته راشنلګڼونه وایو۰ دلته دا راشنل ګڼ د جوړې په څیر ورکړ شوی دی

$cb / ca$ هلته باور لري، چې $c \neq 0$ دټولګڼ او $a|b$ د ماتګڼ په څیر ورکړ شوي وي

د راشنلګڼونو ډیری، چې په $Q$ سره ښایو د ټولګڼونو ماتګڼو $b/a$ چې $a \neq 0$ او $a$ او $b$ د ټولګڼونو له ډیری وي، د ټولګڼونوپراخوالی دی او ټول د مخه تیر بنسټیز قوانین په کې باور لري او د ویش بنسټیز قانون ته داسې پراخیدلی شي

ټ : د ویش(تقسیم) بنسټیز قانون( دوام)

۲ - د دوه راشنل ګڼونو $a$، $a \neq 0$ او $b$ لپاره یواځنی راشنل ګڼ $x = b/a$ شته دی، چې برابرون یا مساوات$ax = b$ پوره کوي

راشنل ګڼونه هم د ورځنیو اړتیاو پر بنسټ منځ ته راغلی

بیلګه :

که شپږ منه غنم په دولسو تنو وویشو، نو د هر تن نیم من غن, راسیږي، چې دا نیم یې

راشنلګڼ دی، یاني $6 : 12 = 1 / 2 = 1 : 2$ یا $\frac{1}{2}$

دا باید په ګوته کړو، چې راشنل ګڼونه د پای یا ناپای لسمیز ګڼ په څیر لیکل کیدی شي

## ۳ ۰ ۱ ۰ ٤ - رییل ګڼونه( Real numbers (reele Zahlen

( فرانسوي: په ریښتوني شته یا موجود)

د ریښنلګڼ په بنسټ هغه ورځنی تیوریکی اړتیاوي چی د شمیرعملیو بی بندیزه (نامحدود ) په کار اچولو یا استعمال ته موجود وي حل یا اوبی شوې او همدارنګه عملي اړتیاوي چی اندازه کولو ته موجود وي هم حل شوې وي.

د ریښنلګڼ له لارې کیدی شي چی د کرښی اوږدوالی ټیك ورکړ شي یا په همدې مانا : په هرڅومره وړوکی ګڼونکرښه انتروال کی هم ناپای زیات ګڼونه، چی په ټکو یا نقطو انځور شوي، پراته دي.




د ټولو دې امکاناتو سره سره هم بیا په یوه کرښه کی هر ټکی د ریښنلګڼ په ذریعه نه شي ښودل کیدی یا په بل عبارت د کرښی هر ټکی د ریښنلګڼ په مانا نه دی . دا ګڼونه چی د «ایریښنلګڼونو»په نامه یادیږي، کیدی شي د یوه پریودیکي(periodische ) (د ګڼونو کړی نه شلیږي ) ناپای لسیزمات له لارې وښوول شي.
د بیلګي په توګه د مربع د نیمي(قطر ) x اندازه چی د مربع یو اړخ ۱ وي نه شي کیدی چي په ریښنلګڼ وښوول شي. د پیتاګوراس د جملی په بنسټ د x لپاره لاندې مساوات لرو : $x^2 = 1^2 + 1^2$ , پس $x = \sqrt{2}$

د رييلګڼ کليمه يوه ژوره کليمه ده چې د پوهيدلو لپاره يې «پولي» ( ليمس lim ) ته اړتيا موجود ده چې په ۱۸ –امه برخه کې به تر څيړنې لاندې ونيول شي.

ډير اينتروالبنديدل چې په همغه يوه ټکي راځرخي مساوي(ورته ) ارزښته (Äquivalent لاتين :مساوي ارزښته) ليدل کيږي

رييلګڼډيرى R چې په ريشنلګڼډيري د ايريشنلګڼډيري ورزياتول دي چې له ۲ . ۱ . ۱ تر ۳ . ۱ . ۳ برخې پورې ټول بسټزقوانين په کې باور لري. د رييلګڼ له لارې دکرښې ټول ټکي په بر کې نيول کيدی شي. په دې ډول رييلګڼونه ټولی د شميرلو او اندازه کولو اړتياوې پوره کوي.

ګورو چې $x^2 + 1 = 0$ د رييلګڼ حل يا اوبې نه لري. دلته د دې ګڼونو پراخوالي ته اړتيا پيښيږي چې کمپلکسګڼونو ته پراخ شي، او په ۵ –امه برخه کې به تر څيړنې لاندې ونيول شي.

يا دا لاندې په لنډه توګه:

موړ ګڼونه يا اعداد لرو، چې هغه راشنل ګڼونه نه دي يانی که موړ د ۲ ګڼ رينه(جذر) ونيسو، نو داسی يو ګڼ لاس ته راځي، چې هغه په لسميزه توګه پای ته نه شي رسيدی يانی پريوديکی ( تل بيرته راګرځيدونی يا پسی نور هم پراخيدونی ) دي۰ داسی ګڼونو ته ايراشنل ګڼونه وايو۰

تل بيرته راګرځيدنيز ( periodi(cal تل بيرته راګرځيدوني ,Period د ګڼونو ځنځير نه شليږي

## ايراشنل – يا نانسبي عددونه ياګڼونهIrational numbers

د راشنل او ايراشنل ګڼونوټولنی ته رييل ګڼونه وايو( دا چې ټولنه څه شی دی، په ډيری پوهنه يا سيټتيوري کې به ولوستل شي) .۰ موږ د ګڼونو د ښوولو لپاره لاندې ګڼونکرښه باسو په کومه کې چې له صفر سره پيداييتي-، ټول- راشنل-،اراشنل ګڼونه کښل شوي دي يانې ريل ګڼونکرښه




۳ ۰ ۲ - رابيلشوی( له نورو - ) د شمير قواعد

په دې برخه کې د رييل ګڼونو لپاره رابيل شوي قوانين څيرو، چې د مخه تيرو قواعدو باندې ولاړ دي۰ دلته درانده ټکی دا لاندې دي:

- په رييلګڼونو کی څلور بنسټيز شميرډولونه په ځانګړي توګه په لاندې ډول د نوکانو افادی (ويينی ) سره شميرنه ( نوکان ابنسوول)۰ له زياتون ګډ فاکتورونه يا ځلووني له نوکانو راوستل، د بينوميال فرمولونه۰

- پر صفر ويشنه د ناشونوالی په پام کی ساتنه

- له ماتو ( کسرونو ) سره شميرل او په ځانګړي توګه لنډول ( واړه کول ) پراخول يا غزول او د اصلي ګډ ماتلاندي ( مخرج المشترک) جوړول۰ د داسی ماتلاندی( مخرج) چې له ټاکلو او ناټاکلو ترمونو څخه جوړ وي۰

نوموني: کسر ته مات وايو او صورت او مخرج ته موږ ماتباندې او ماتلاندې وايو، چې سملاسي يې په مانا هم پوهيږو۰

## ۳ ۰ ۲ ۰ ۱ ـ جمعه او تفریق (زیاتون او کمون)

د زیاتون او کمون بنسټیزو قوانینو څخه لاندې لاس ته راځي

$$- ( -a) = a , \quad a – b = a + (-b),$$

$$( a+ b + c \ldots -c –d-\ldots) + (e+f +\ldots-g-h-\ldots) = a+b+\ldots-c-d-\ldots+e+f+\ldots-g-h-\ldots$$

دا دا مانا لري، چی که چیرې د نوکانو دباندې زیاتوننخښه ( د جمع علامه ) وي، نو د نوکانو څخه ویستلو کې ګڼ خپله مختخښه نه بدلوي۰ که د نوکانو د باندی کموننخښه (منفي نخښه ) وي، نو د ګڼونو له نوکانو ایستلو په حال کی د نوکانو دننه نخښی بدلیږي۰ یانی کموننخښه زیاتوننخښه او زیاتوننخښه کموننخښه کیږي۰ بیلګه یې لاندې ګورو

$$(a +b+\ldots-c-d-\ldots)-(e+f+\ldots-g-h-..)= a+b+\ldots-c-d-\ldots..-e-f-\ldots\ldots+g+h+\ldots$$

په همدې ترتیب کیدی شي نوکان هم ځاي پرځای شي۰

دلته باید مطلق ارزښت هم په ګوته شي ، چی په ګڼکرښه د صفر څخه د یوه رییلګڼ واټن په ګوته کوي،

د کوم لپاره چی لیکو :

مطلق عدد یا - ګڼ یا بې اړیکو ګڼ (absolut number )

دا په دې مانا، چې د دې ګڼ سره زیاتیزه او کمیزه نخښه یا مثبت او منفي نه لیکل کیږي یا یون( واحد) هم ورسره نه وي، دا ټیک او ټیک یو ګڼ ښایج او بس۰

$$|a| = a \ ; \ a > 0$$

$a| = 0 \; ; a = 0$

$| a| = -a \; ; \; < 0$

یانې که a زیاتیزه یا مثبت وي،نوa پخپله لیکواو که a کمیزه یا منفي وي، نوa- لیکواو که a صفر وي نو د هغه لپاره 0 لیکو

۳ ۰ ۲ ۰ ۲ ځل(ضرب)

د ځل لپاره لاندې د مخنخښی قوانین باور لري:

$(+a)(+b) = +ab, (+a)(-b) = -ab , ( -a)(-b) = + ab, (-a)(+b) = -ab$

که چیرته ډیر نوکبندونه راګرځیدلی وي، نو دا د ځل قانون پل په پل پر مخ ځی

بیلګه:

$$(a+b)(c-d)(e-f-g) = (ac – ad + bc –bd)(e-f-g)$$

$$= (ace-acf-acg-ade+adf+adg + bce-bcf-bcg-bde-) bdf+bdg$$

د ځانګړي حالت په توګه د بینوم پیژندل شوی فرمولونه راوړو:

$$(a+b)^2 = a^2 + 2ab + b^2$$

$$( a – b)^2 = a^2 - 2ab + b^2$$

$$( a + b)(a-b) = a^2 - b^2$$

ګران لوستونکی کولی شي، چې پورته فرمولونه وښايي، چې ټيک دي.

دا په لاندې ډول کارولکيږي :

بیلګه ۱ . ۳ :

$$4a^2 + 12ab + 9b^2 = (2a + 3b)^2 .$$

$$a^2x^2 - 2abxy + b^2y^2 = (ax - by)^2 = (by - ax)^2.$$

$$16u^2 - 2v^2 = (4u + \sqrt{2}\, v)(4u - \sqrt{2}\, v)$$

۳ ۰ ۲ ۰ ۳ ويش

په پام دې کې ولرو، چې b:a د $a = 0$ لپاره کوم مفهوم نه لري۰ پر صفر ويش ناشونی دئ

په ويش کی نوکبندول د زياتون، کمون او ځل په څير ساده نه کيږي۰ په ويش کی د زياتون په ډول ليکل شوی هر توکی په ماتلاندې ويشل کيږي:

بيلګه ۳ ۰ ٤ :

$$(3a^2b - 6ab^2 + 12\,abc) : 3ab = a - 2b + 4c$$

يا داسې

$$\frac{3a^2b}{3ab} - \frac{6ab^2}{3ab} + \frac{12abc}{3ab} = a - 2b + 4c$$

د $ab \neq 0$ لپاره

دې لاس ته راوړنې(نتیجې) ته سرې د ګډو ځلوونو یا فاکتورونو یا خپلواکنوک څخه وتلو له لارې هم رسیدلی شي:

$$3a^2b - 6ab^2 + 12\,abc = 3ab(a - 2b + 4c)$$

له دې ځایه کیدی شي، چې د بولینوم وېش بیل شي

بیلګه ۳ . ۵ :

$$(3a^2b - 6ab^2 + 5c) : 3ab = a - 2b \text{ Rest } 5c \text{ باقي} \Leftrightarrow$$
$$\frac{3a^2b}{3ab} - \frac{6ab^2}{3ab} + \frac{5c}{3ab} = a - 2b + \frac{5c}{3ab} \text{ لپاره } ab \neq 0,$$

د یوه زیاتو یا چمعې وېش په یوه چمعه، کیدی شي د بینوم جکلي له لارې صورت ونیسي

بیلګه ۳ . ۶ : $(a^2 + 2ab + b^2) : (a + b) = a + b \Leftrightarrow \frac{(a+b)^2}{a+b} = a + b$ لپاره $a \neq -b.$

بیلګه ۳ . ۷ : $(a^2 - b^2) : (a + b) = a - b \Leftrightarrow \frac{a^2 - b^2}{a+b} = a - b$ لپاره $a \neq -b.$

بیلګه ۳ . ۸ : $\frac{(ax - by)^2}{by - ax} = \frac{(by - ax)^2}{by - ax} = by - ax$ لپاره $ax \neq by,$

دلته هم وېش د پاتې یا باقي سره شونی دی.

بیلګه ۳ . ۹ : $a^2 - 2ab + b^2) : (a - b) = [(a - b)^2 + b^2] : (a - b) = a - b$ :
باقي یا پاتې $b^2$

له دې لاس ته راځی او په څټ

## بیلګه ۱ . ۱۰

$$\frac{(a-b)^2+b^2}{a-b}=\frac{(a-b)^2}{a-b}+\frac{b^2}{a-b}=a-b+\frac{b^2}{a-b}$$ بیا $a \neq b$,

$C: (16u^2 - v^2) : (4u + \sqrt{2}\,v) = 4u - \sqrt{2}\,v$ Rest $v^2$ باقي ⇔

$$\frac{16u^2-v^2}{4u+\sqrt{2}\,v}=\frac{16u^2-2v^2+v^2}{4u+\sqrt{2}\,v}=\frac{16u^2-2v^2}{4u+\sqrt{2}\,v}+\frac{v^2}{4u+\sqrt{2}\,v}$$

$$=4u-\sqrt{2}\,v+\frac{v^2}{4u+\sqrt{2}\,v}$$

د $4u \neq -\sqrt{2}\,v$ لپاره

فورمال ور د دوه پولینومونو ویش دی ( برخه ۱۲ دي انډول(پرتله ) شي ):

$$\frac{P_n(x)}{Q_m(x)}=\frac{a_nx^n+a_{n-1}x^{n-1}+\ldots+a_1x^1+a_0}{b_mx^m+b_{m-1}x^{m-1}+\ldots+b_1x^1+b_0}=P_n(x):Q_m(x),$$

که د ماتباندې پولینوم درجه د ماتلاندې پولینوم درجې لوي يا مساوي وي$(n \geq m)$.

مور نیسوچې: $a_n \neq 0, b_m \neq 0$ او $Q_m(x) \neq 0$ .

د دواړو ویشو« توټه ویشو» ( پارځیالویش( Partialdivision ) ) دا دی چې دا

د $P_n(x) : Q_n(x)$ ویش په لاندې ډول ولیکلی شو:

$$\frac{P_n(x)}{Q_m(x)}=\text{Polynom } 1+\frac{\text{Polynom } 2}{Q_m(x)},$$

چیرته چې د پولینوم 2 درجه له $Q_m(x)$ درجې څخه کوچنی ده.

دې هدف ته په لاندې ډول رسیږو

۱ – سرې یواځې د جګ نظم غړي $a_nx^n : b_mx^m$ ویشي او له دې سره یوه

غلطي $F(x)$ کوي:

$$Q_{n(x)}: Q_m(x)=\frac{a_n}{b_m}x^{n-m}+F(x) \qquad *$$

۲ – سړی (*) په ماتلاندې پولینوم $Q_m(x)$ ویشي

$$P_n(x) = (a_n / b_m)\, x^{n-m} Q_m(x) + F(x)$$

او له دې غلطی $F(x)$ ، په لاندې فورم یا ډول لاس ته راخي

$$F(x) = P_r(x) / Q_m(x)$$

د $P_r(x) = P_n(x) - (a_n / b_m)\, x^{n-m}\, Q_m(x)$ سره

چیرته چی د پولینوم $P_r(x) = c_r x^r + c_{r-1}x^{r-1} + .. + c_0$ درجه r د پیل پولینوم $P_n(x)$ له درجی n څخه کم له کمه په یوکوچنی وي . د ګڼونو شمیر په

---

تکیه ویلی شو، چی $P_r(x)$ پاتی پولینوم یا په ساده ډول پاتی ( باقي ) دی.

۳ – که لا تراوسه د $Q_m(x)$ درجه r له m کوچني وي نو د ټکو ۱ – او ۲ – تړته ویش په $P_r(x) : Q_m(x)$ استعمالیږي، د لاندنی نتیجی سره

$$P_r(x) : Q_m(x) = (c_r / b_m)\, x^{r-m} + P_t(x)/Q_r(x)$$

چیرته چي د $P_t(x)$ درجه t کم له کمه په یو له $P_r(x)$ درجي کوچنی وي.

د تړته ویش دا عملیه اخر ته رسیږي، که ( د پای ډیرو پلونو (قدمونو ) اخستلو وروسته د ماتباندې غلطی پولینوم درجه له m څخه کوچنی وي.

بیلګه ۲ . ۱۱ . لمړی دې د تړته ویش ۱ او۲ پلونه ( قدمونه، کدمونه ) په پراخ ډول د لاندې ویش په بیلګه توضیح شي

$$P_n(x) : Q_m(x) = P_3(X):Q_1(x) = (6x^3+5x^2-3x+1):(3x-2)$$

| | $P_3(x) \quad : Q_1(x) = (a_3 / b_1)x^2 + F(x)$ |
|---|---|
| $(a_3 / b_1)x^2Q_1(x) = 2x^2(3x-2) =$ | $(6x^3 + 5x^2-3x+1) : (3x-2) = 2x^2 \quad +F(x)$<br>$6x^3 -4x^2$ |
| $P_2(x) = P_3(x) -(a_3 /b_1) x^2Q(x) =$ | $9x^2 -3x +1$ |
| $F(x) = P_2(x) : Q_1(x) =$ | $(9x^2 - 3x +1) : (3x - 2)$ |

بیلګه۱۳ . ۱۲ : د پورته ویش بیلګه ۱ . ۱۱د F ( x ) غلطی ته دوام ورکوو، ترڅو چی د لیکنی شکل لنډ شي:

$$F(x) = P_2(x):Q_1(x) = (9x^2-3x+1):(3x-2) = 3x+G(x)$$

$$3x.Q_1(x) \quad = \quad (9x^2-6x)$$

یاباقي پاتي $= 3x+1$

$$G(x)= (3x+1):(3x-2)$$

له دې لاندې نتیجه لاس ته راځي :

$$(6x^3+5x^2-3x+1):(3x-2)=2x^2+3x + G(x)$$

$$G(x) = (3x+1):(ex-2) = 11 +H(x)$$

$$Q_1(x) = 3x-2$$

پاتی = یاباقي = 3

$$H(x) = 3 : (3x-2)$$

پس باور لري

$$(6x^3+5x^2 - 3x+1) : (3x-2) = 2x^2+ 3x+1 + 3/(3x-2)$$

تول توته ویش کیدی شي په لاندي ډول مخ ته یووړ شي .

(1)   (4)   (7)   (۱۰)

$(6x^3+5x^2-3x+1) : (3x-2) = 2x^2 + 3x + 1 + 3/(3x-2)$

(2) $\underline{6x^3-4x^2}$

(3) $-9x^2-3x+1$

(5) $\underline{9x^2-6x}$

(6) $3x+1$

(8) $\underline{3x-2}$

(9) $3$

دلته ( i ) د پرلپسی پل اخستلو په مانا ده.

جمله ۳ . ۱۳

(1)   (4)   (7)   (10)

$$(18x^4 + 15x^3 + 0x^2 - 2x + 1) : (3x^2 + x - 1) = 6x^2 + 3x + 1 + \frac{2}{3x^2 + x - 1}$$

(2) $\underline{18x^4 + 6x^3 - 6x^2}$

(3) $9x^3 + 6x^2 - 2x + 1$

(5) $\underline{9x^3 + 3x^2 - 3x}$

(6) $3x^2 + x + 1$

(8) $\underline{3x^2 + x - 1}$

(9) $2$

## ۳ ۰ ۲ ۰ ٤ ماتشميرنه ( کسرشميرنه)

د مات m/n کلمه د لومړي ځل لپاره د ټولګڼونو m,n څخه د ريشنلګڼونو انځورونو لپاره تعريف شوې۰ کيدی شي، چې دا کلمه a/b ته، چې a او b رييل ګڼونه دي، وغزول شي۰

بايد په پام ې ور،چې ماتباندې صفر نه شي..

د بيلګي په توګه:

ويش a/(b-c) تيک هلته مفهوم لري، چې $b \neq c$ وي۰ ماتګڼ a/b همدا ګڼ ښايي

لکه a : b او يا $\frac{a}{b}$ ، دلته هم بايد b |=0 وي.

په اخر کې بايد په ګوته شي، چې مات لاندی – او همدارنګه ماتباندې ګڼ هم هر ماتګڼ کيدی شي او هم دواړه۰ دا بايد دلته هم په پام کې وي، چې هيڅ يو ماتلاندې ګڼ بايد صفر نه وي يانی دلته بی له اولنی ماتباندې نور يو ګڼ هم، چې ماتلاندې پورې اړه لري، نه شي صفر کيدی دا موږ د ماتو مات ( کسرالکسر) بولو۰

بيلګې:

$$a : (b/c) = a / (b/c) , b |=0 , c|= 0 \quad ,$$

$$(a/b) : c = (a/b) / c \quad b|=0, c|= 0$$

$$(a/b): (c/d) = (a/b) / ( c/d), b |= 0 , c |= 0 , d |=0$$

يا په لاندې ډول:

$$\frac{a}{b}:\frac{\frac{a}{b}}{c},b\neq 0,c\neq 0,...,\frac{a}{b}:\frac{c}{d}=\frac{\frac{a}{b}}{\frac{c}{d}},b\neq 0,c\neq 0,d\neq 0$$

په څو واره ماتګڼ کې باید اصلي ماتکرښه څرګنده پیژندونکي وي، چې په دې توګه د هر ډول ناټیکوالی مخه نیول شوي وي۰ په ټولیزه توګه باور لري

$$\frac{\frac{a}{b}}{c}\neq\frac{\grave{a}}{\frac{b}{c}}$$

هریو ماتګڼ b|=0, a / b په یوه ګڼ c |= 0 پراخیدی او همداسې لنډیدی شي

یانې ماتلاندې او ماتباندې په یوه ګڼ c ځلیدی یا ویشل کیدی شي او دا کړنلار په اصلي

ګڼ کې تغیر نه راولي

$$\frac{a}{b}=\frac{a.c}{b.c}=\frac{a:c}{b:c},b\neq 0,c\neq 0$$

د ماتګڼ لنډوالی ددې لپاره ښه دی، چې ماتګڼ ساده کړي.

د بیلګې په توګه:

$$\frac{8}{12}=\frac{2}{3},\frac{ax-ab}{y-ac}=\frac{x-b}{y-c};a\neq 0,y\neq c$$

باید تل په پام کې ولرو، چې یواځنی فکتور یا څلوونی یا ضریب لنډیدی شي او نه زیاتوونی د بیلګې په توګه لاندې ماتګڼ

(a+c):b+c) چې b≠- c وي نه شي لنډيدى دا (a+c) : (b+c) = a:b

باور لري،چې b |= 0, c = 0 \/ -c |= a, a = b

پراخوالى يا غزول د دې لپاره اړيين دى، چې ډير ماتګنونه په ګډ ماتباندې (مخرج المشترک) راوستلى شي، څکه چې يواځې هغۀ مات يو په بل زياتيدى يا يو له بل کميدى شي، چې ګډ ماتلاندې ولري.

لکه : $\frac{a}{c} \pm \frac{b}{c} = \frac{a \pm b}{c}, c \neq 0$

که چيرې پرڅېټ يا برعکس ماتګنونه a / b او c/d د نابرابر ماتلاندې لرونکى سره زياتوو او يا کموو ، نو دا په ګډ ماتلاندې بايد راولو۰ ګډ ماتلاندې د ټولو ماتلاندو څخه دی۰ د بيلګې په توګه لاندې باور ي دی:

$$\frac{a}{b} + \frac{c}{d} + \frac{e}{f} = \frac{adf + bcf + bde}{bdf}, b \neq 0, d \neq 0, f \neq 0 \Leftrightarrow bdf \neq 0$$

او دا لاندې

$$\frac{a}{b} \pm \frac{c}{d} = \frac{ad}{bd} \pm \frac{cb}{bd} = \frac{ad \pm cb}{bd}, b \neq 0, d \neq 0 \Leftrightarrow bd \neq 0$$

تل بايد ماتګنونو ګڼلو کې ماتلاندې سره ځل نه شي، چې ګډ ماتلاندې لاس ته راولو، دا د ښوونځي په څرګنده بيلګه باندې ښايو

بيلګه: $\frac{1}{2} - \frac{1}{3} + \frac{1}{5} - \frac{1}{6} + \frac{1}{15} - \frac{1}{36}$

کيدی شي، چې اصلي ماتلاندي)ا۰م۰ل (وټاکل شي

= 2.3.5.6.15.36= 97200 ۰ ل ۰ م ۰ ا

کيدی شي، چی ا۰م۰ل۰ د لومړنيو ګڼونو ځل په ځير هم وليکو:

2 = 2

3= 3

5 = 5

6 = 2. 3

15= 3 .5

3۰. 3.۰2۰36 = 2

---

$2^2.3^2.5 = 4.9.5 = 180$

پس د ګډ ماتلاندي لپاره د لوړکې يا لوړ جګکې يا لوړ طاقت لومړي ځلووني رانيول کيږي۰ چې ګڼل خورا ساده کوي۰

$$\frac{1}{2}-\frac{1}{3}+\frac{1}{5}-\frac{1}{6}+\frac{1}{15}-\frac{1}{36}=$$

$$\frac{90-60+36-30+12-5}{180}=\frac{43}{180}$$

دا چې دا تګلار ځنګه د ماتو په ټوليزه افاده استعماليدی شي لاندې بيلګه يی ښايي:

بیلګه ۳ ۰ ۱۵ په لاندې بیلګه کې

$$\frac{1}{a}-\frac{1}{b}+\frac{1}{ab}-\frac{1}{a^2b}+\frac{1}{ab^2}$$

چې یواځې د لاندې لپاره موخه ور دی $a \neq 0 \wedge b \neq 0$

د اصلي ماتلاندې لپاره یانې

$$a.b(ab)(a^2b).(ab^2) = a^5.b^5$$

نه ټاکي، نو له دې امله دی

$$a = a$$

$$b = b$$

$$ab = a \quad b$$

$$a^2 . b = a^2 \quad b$$

$$ab^2 = a \quad b^2$$

-------------------

دا ا۰م۰ل۰ په لاندې توګه دی $= a^2 \quad b^2$

له دې امله لرو:

$$\frac{1}{a}-\frac{1}{b}+\frac{1}{ab}-\frac{1}{a^2b}+\frac{1}{ab^2}=\frac{ab^2-a^2bab-b+a}{a^2b^2}$$

بیلګه ۳ ۰ ۱٦ : د ویینې یا افادې

$$\frac{2}{a-2}+\frac{2}{a-1}-\frac{1}{a+1}-\frac{a+3}{a^2-1}-\frac{a+6}{a^2-4}, a \neq 0, a \neq \pm 2$$

لپاره ټاکو

a-2 = (a-2)

a – 1 = (a-1)

a+1 = (a+1)

a + 2 = (a+2)

$a^2$ - 1 = (a-1)(a+1)

$a^2$-4 = (a-2) (a+2)

---------------------------------------------------------------

$(a-2)(a-1)(a+1)(a+2) = (a^2-1)(a^2-4)$

دا پورته لاس ته راوړنه ا۰م۰ل۰- چۀ دا په همدې وخت کې غ ک پ هم دی- په ګوته کوي او له پورته څخه د مخه ورکړشوې افادې لپاره لاس ته راځي:

$$\frac{2(a^2-1)(a+2)+2(a^2-4)-(a-1)(a^2-4)-(a-2)(a^2-1)}{(a^2-1)(a^2-4)}$$

$$=\frac{(a+3)(a^2-4)+(a+6)(a^2-1)}{(a^2-1)(a^2-4)}$$

---

د دې مات ماتباندې صفر دې‌په دې ډول په پورته پیل کې ورکړ شوې افاده یا وینه د صفر پیچلې لیکلو بیلګه ده او بس۰

د ځل او ویش لپاره لاندې قاعدې باور دي:

$$\frac{a}{b}\cdot\frac{c}{d}=\frac{ac}{bd}, b\neq \wedge d\neq \Leftrightarrow bd\neq 0$$

$$\frac{a}{b}:\frac{c}{d}=\frac{\frac{a}{b}}{\frac{c}{d}}=\frac{a}{b}\cdot\frac{d}{c}; b\neq 0, c\neq 0, d\neq 0 \Leftrightarrow bcd\neq 0$$

بیلګه ۳ ۰ ۱۷ الف)

$$1-\frac{1}{1-a\frac{1}{1-\frac{b}{a}}}=1-\frac{1}{1-\frac{a}{\frac{a-b}{a}}}=1-\frac{1}{1-\frac{a^2}{a-b}}=1-\frac{1}{\frac{a-b-a^2}{a-b}}$$

$$=1-\frac{a-b}{a-b-a^2}=\frac{a-b-a^2-a+b}{a-b-a^2}=\frac{-a^2}{a-b-a^2}=\frac{a^2}{a^2-a+b}$$

د $a\neq 0, a\neq b, a^2-a+b\neq 0$

لپاره۰ دا په دې مانا، چې

$$a\neq\frac{1}{2}(1\pm\sqrt{1-4b})$$

بیلګه ۳۰ء ۱۷ ب:

$$\frac{\frac{a}{a-b}-\frac{b}{a+b}}{\frac{a}{a+b}+\frac{b}{a-b}}=\frac{\frac{a(a+b)-b(a-b)}{(a-b)(a+b)}}{\frac{a(a-b)+b(a+b)}{(a+b)(a-b)}}=\frac{a(a+b)-b(a-b)}{(a^2-b^2)}\cdot\frac{(a^2-b^2}{a(a-b)+b(a+b)}$$

$$=\frac{a^2+ab-ab+b^2}{a^2-ab+ab+b^2}=\frac{a^2+b^2}{a^2+b^2}=1,\forall\ |a|\neq|b|$$

يادونه: په پورته ليکنه کې د ګڼونو موضوع لږ وغزول شوه، خو لږ څه نور هم بايد راغلي وی· دلته اړيين د ګڼونو شميرقوانين دي او د ګڼونو پيژندل· د ګڼؤنو اړيکې د خونديونې له لارې

$N\subset Z\subset Q\subset R$

او په دې کنونو کې باوري د شمير قوانين، چې هغه زياتون ، کمون ، ځل ، ويش دئ او د ويش په بنسټ ماتشميرنه· دا بايد په همغه ساده ډول زده کړای شي·

موږ هغه د لومړي وار لپاره اړيين د ګڼونو شميرنقوانين په لاندې توګه رالنډوو، چې د لومړي وار لپاره په همدې پوهيدنه بسيا کوي·

ګڼونډيرئ ( لنډه ټولګه)

پيداينتي – يا طبيعي ګڼونډيرئ

N = {1, 2, 3, 4, 5, ... }.)

په وړانګه د پيداينتي ګڼونو انځورونه



د ټولګڼونو ډېرى

Z = { ... -3, -2, -1, 0, 1, 2, 3, ... }

د ټولګڼونو ډېرۍ انځورونه په یوه کرښه




د راشنلګڼونو ډېرۍ

$$Q=\{\frac{p}{q} \mid p,q \mid Z \wedge q \neq 0\}$$

په ګڼونکرښه راشنلګڼونه د ټولګڼونو تر منځ پراته دي




هر راشنل ګڼ د لسمیز یا پریودیکی ګڼ په څیر لیکل کیدئ شي

د ماتو سره شمیرنه

د دوه راشنلګڼونو ترمنځ تل ناپاي زیات نور راشنلګڼونه شته ، دا ګڼ پارته دي، مګر بیا یې هم ترمنځ نور ګڼونه یا ځایونه هم شته، چې ګڼونه په کې ځاي دی او دې ګڼونو ته مو ایراشنل ګڼونه وویل ۰ لکه چې یو راشنلګڼ نه دئ

راشنل او ایراشنلګڼونه رییل ګڼونه جوړوي

## د رییل ګڼونوډیرۍ یا حقیقي اعدادو سټ

د ریيلګنونو ډيری د ګنونکرښی تولو ټکو څخه جوړه ده، لاندې ګنونکرښه کي روښانه ده




په ریيلګنونوکي بی له بنديزونو شميرل کړی شو، خو په ماتلاندې کي بايد صفر نه وي او دا د هر ډول ګنونولپاره باور لري

شميرډولونه لومړی پوړی

:Additionزياتون يا جمعه

زياتوونی +زياتونی = زياتون

د زياتون کموتاتيو قانون $a + b = b + a$

د زياتون اسوخياتيو قانون $(a + b) + c = a + (b + c)$

و زياتون ته د يوه بی اغيزه يا ناپيلی توکی شتون$a + 0 = a$

مخامخ – يا په ښټ ګن يا برعکس عدد$a + (-a) = 0$

کمون:Subtraktion

د زياتون په ښټ کارونه يا عمليه ، ترې کمه وونی – کمه ونی = کمون

$a + x = b \Leftrightarrow x = b - a$

بیلګه: $7 + x = 10 \Leftrightarrow x = 10 - 7 = 3$

شمیرډولونه:

دویمه پوړۍ

ضرب یا ځل: فاکتور ( ځله وونی ضریب ) ۰ فاکتور( ځله وونی) ځل
د زیاتون تکرار، بیلګه. $4 + 4 + 4 = 3\cdot4 = 12$

د ضرب یا ځل کموتایتو قانون $a.b = b.a$

د ضرب یا ځل اسوشیاتیو قانون$(a\cdot b)\cdot c = a\cdot(b\cdot c)$

دستریبوتیو قانون $a\cdot(b + c) = a\cdot b + a\cdot c$

و ضرب ته د یوه ناپیلي توکي شتون( بي اغیزه توکی يې که وبولو هم بده به نه وي)

$a\cdot1 = a$

په ځښ ارزښت یا برعکس قیمت$a\cdot(1/a) = 1$

یو ضرب تیک هلته صفر دئ، چي د صرب یو ضریب صفر وي $a\cdot0 = 0$

ویش:
ویشونی : پرویشونی = ویش ( لوستل يې له ښي وکيڼ لورته)

ویش د ضرب یا ځل په ځښ کارونه ده) $a:b=c$

$a\cdot x = b \Leftrightarrow x = b:a$

د بېلګې په توګه z.B.: $4\cdot x = 12 \Leftrightarrow x = 12:4 = 3$

په صفر ویش پیژند نه لري یا تعریف نه لري

## ۳ . ۳ تمرينونه

۱ – د اعدادو يا ګڼونو ډولونه او د د اعدادو انځورونه

۱ ، ۱ – په کوم د اعدادو ډيرئ يا سټ کې د عدد a او عدد bلپاره د شميرلو
څلور قاعدې يا لارې باور لرې؟

يادونه: دلته دې ترې کمونې يا مفروق منه او وېشونش يا مقسوم تل a وي
همداسې دې کمونې يا مفروق او پروېشونې يا مقسوم عليه تل b وي.

a) $a = 8, \quad b = 2$
b) $a = 5, \quad b = 8$
c) $a = 7, \quad b = 0$
d) $a = -6, \quad b = 1$

۱ . ۲ عددونه او يو له بل سره پرتله کړئ او ورکړئ، چې له دې دواړو
کوم لو دی!

a) $a = \frac{13}{17}, b = \frac{169}{289}$
b) $a = \frac{11}{21}, b = \frac{121}{231}$
c) $a = \frac{888}{901}, b = \frac{896}{911}$
d) $a = -\frac{13}{12}, b = -\frac{143}{130}$

۱ . ۳ – د اعدادو يا ګڼونو او څخه تفرسق، ضر ب او وېش جوړ کړئ!
ورکړئ، چې دا نتيجې د اعدادو کومو ډولونو پورې اړه لري!

د پوښتنې ۱ ، ۱ يادونه دلته هم باور لري.

a) $a = \pi, \quad b = 5$
b) $a = \sqrt{2}, b = \sqrt{2}$
c) $a = \frac{2}{3}, \quad b = \frac{3}{2}$
d) $a = 0, \quad b = 1$

۱ . ۴- په دوه ييز سيستم کې لاندې ګڼونه يا اعداد انځور کړئ!

a) 28 b) 47 c) 73 d) 112

۱ . ۵ – لاندې ربښتوني يا راشنل اعداد د کوتيو کې اچوني يا کوتی وني له لارې په نږدې ۵ ځايونږ تيک پيدا کړی.

a) $\sqrt{3}$ b) $\sqrt{18}$ c) $\sqrt{2}+\sqrt{3}$ d) $\frac{1}{\sqrt{2}}$

۲ . د زياتيزو او ځليزو ( د جمعې او ضرب) نوکانو وازول

۲ . ۱ – لاندې نوکان واز کړی

a) $7a - 3b + (-a + 2c) - (3c - 6b) - (6a - 3c)$
b) $5a + [7c - (2a - 3b)] - (4c - a + b)$
c) $7a - [3a - (7 + 5b)] + [a - (4 - 6b)] - (2a + 7b)$
d) $8a - \{a + [(3a - 2b) - (5a + 3b)] - [(-a + 6b)]\}$

2.2. a) $(-a)(b - a - c)$
b) $2a[a - (b - 3a)]$
c) $3(a + b + c) - 5(a + b) - c - 2(b - c - a)$
d) $|a| \cdot (b - 2a) - b \cdot (a + 2b)$

2.3. a) $(2a - b)(9a + 4b)$ b) $(9a - 2b)(7a - 3b)$
c) $(a + b - c)(a - b - c)$ d) $(3a + 2b)(4a - 3b)(5a - 7b)$

2.4. a) $(7a - 5b)(3a + 4b) - (5a - 9b)(4a - b)$
b) $(a + 4)(a - 2) - (a + 2)(a - 1)$
c) $(a + b)(c - d) - (a - b)(c + d)$
d) $(1 - a)(a - 1) - 2(a + 1)(a - 2)$

۳ – د بينوم فرولونه

۳ . ۱ – د بينوم فرمولونه وکاروی يا استعمال کړی او د شونتيا سره سم يې ساده کړی

a) $(-a + 3b)^2$ c) $(-a - b)(a - b)$
b) $(-1 + a)(a + 1)$ d) $(-1 + a)^2 - (1 - a)^2$

3.2. a) $(4a^2 - 3)(4a^2 + 3) - (3a - 4)^2 + (5a + 1)^2$
b) $(a^2 + b^2)^2 - (a^2 - b^2)^2$

c) $(3a + 2b - 5c)^2$
d) $(a + b - c - d)^2$

3.3. a) $49a^2 + 42a + 9$
b) $25a^2 + 40ab + 16b^2$
c) $169a^2 - 130ab + 25b^2$
d) $9a^4b^2 + 12a^2b + 4$

3.4. a) $(8a - b)^2 - 16a^2$
b) $81a^2 - 16(4a - 3b)^2$
c) $4a + 12\sqrt{ab} + 9b$
d) $(\sqrt{ab} - 1)(-1 - \sqrt{ab})$

3.5. a) $(a + b + 1)(a + b - 1)$
b) $(a + b)^2 + 2a + 2b + 1$
c) $a^2 - 2ab + b^2 - 2a + 2b + 1$
d) $a^2 + 2ab + b^2 - 4(a + b) + 4$

۳ . ۶ لاندې ويينې يا افادې ساده کړئ، داسې چې د مربع تکميلونې له لارې پوره مربع وې جوړې کړئ!

a) $4a^2 - 12a + 9b^2 - 24b = 0$
b) $16a^2 + 25b^2 - 128a + 50b = 0$
c) $3a^2 - 2b^2 - 2\sqrt{6}\,a + 2\sqrt{6}\,b = 0$
d) $4x^2 + 12xy - 9a^2 + 12ab = 0$

۴ . د مناسبو ضريبونو له نوکانو راوسته　　　　له ۴ .
۱ تر ۴ . ۴ پورې پوښتنو کې ورکړ شوې ويينې يا افادې په ضريبونو ټوټه کړئ او تر شوونتيا پورې يې ساده کړئ.

4.1. a) $a + a^2$
b) $-a^2 - a$
c) $8ab + 20b^2$
d) $ab + ac - ad$

4.2. a) $a^2b^2 + ab + ab + 1$
b) $ab - ac - b + c$
c) $3a + 3 - 2a - 2 + 4b(a + 1)$
d) $8(7a - 5b) - 5c(7a - 5b)$

4.3. a) $3ac - 3bc - 2ad + 2bd + 4ac - 4bc - 7ad + 7bd$
b) $a^2b + ac - ab - c$
c) $15ab - 5a - 1 + 3b$
d) $4a^2 + 20ab + 25b^2 - a^2$

4.4. a) $(a^3 - a^2)(2a - 2a^2)$
b) $(-5a - 3b)^2 + (-5a + 3b)^2$
c) $(-5a - 10b)(-3a + 6b)$
d) $(-a - 1)(a - 1) - (a^2 - 1)$

۴ . ۵ – هر ځل د n لوی توان (n=1,2,3,...) له نوکانو راوباسئ!

a) $n^2 + n + 1$
b) $3n^2 - n + 2 - \frac{1}{n} + \frac{1}{n^2}$
c) $(1 - 2n)^3$
d) $(\frac{1}{4}n^2 + 3n - 1)^2$

۵ – د په نوکانو کې افادو وېش

لاندې وېش سره ته ورسوئ.

دا چې وېش په صفر ناشونی دی، په دې او لاندې ټولو تمرینونو کې دا ا رزښتونه له شمیره وباسئ، کوم چې ...,a,b یې نه شي نیولی یا اخستلای.

5.1. a) $(10a^2 - 2ab + 16ac) : 2a$
b) $(25ab - 40b^2) : (-5b)$
c) $(28a^3 - 20a^2 + 32a) : (-4a)$
d) $(27a^2b - 63ab^2) : (-9ab)$

5.2. a) $(3a^2 + 5ab + 2b^2) : (a + b)$
b) $(a^2 - 2ab - 3b^2) : (a - 3b)$
c) $(3a^2 + 2a - 5) : (3a + 5)$
d) $(4a^2 - 7ab + 3b^2) : (4a - 3b)$

5.3. a) $(35a^2 + 24ab - 15ac + 4b^2 - 6bc) : (5a + 2b)$
b) $(15a^3 + 67ab^2 - 52a^2b - 28b^3) : (5a - 4b)$
c) $(21ax - 15bx + 9cx - 35ay + 25by - 15cy) : (7a - 5b + 3c)$
d) $(12a^2 + ab - 17ac - 20b^2 + 29bc - 5c^2) : (3a + 4b - 5c)$

5.4. a) $(a^3 + b^3) : (b + a)$
b) $(1536b^3 + 375a^3) : (25a^2 + 64b^2 - 40ab)$
c) $(144a^4 - 81b^2) : (27b + 36a^2)$
d) $(a^3 - b^3) : (a - b)$

5.5. a) $(9a^3 - 7ab^2 + 2b^3) : (3a + 2b)$
b) $(a^2 - 10a - 25) : (a - 5)$
c) $(a^3 - 2ab + b^3) : (a + b)$
d) $(24a^4 - 26a^3 - 76a^2 + 32a) : (4a^2 - 7a - 8)$

5.6. a) $(x^4 - x^3 - 5x^2 - 40x + 7) : (x^2 + 3x + 9)$
b) $(2x^2 - x + xy - y^2 + 2y - 2) : (2x - y + 1)$
c) $(13a^2b + 4b^3 - ab^2 + 10a^3) : (2a + 3b)$
d) $(3a^3 + 2a^2 - 7a^2b + 3a - 2ab + 4ab^2 - 4b + 3) : (3a - 4b + 2)$

## ۶ . ماتشمیرنه یا کسرشمیرنه

۶ . ۱ – لاندي کسرونه صورت او م خرج یعني د ماتباندي او ماتلاندي د خورا غټ ګډ پروېشوني سره د لومړنیو ضریبونو یا ځلوونو له لارې لنډ کړی

a) $\frac{6\,732}{20\,196}$
b) $\frac{2\,730}{5\,005}$
c) $\frac{20\,520}{2\,280}$
d) $\frac{69\,069}{138\,138}$

۶ . ۲ – د لاندي اعداد خورا کوچنی ګډ زاتځلی (ذ الاضعافالاقل) پیدا کړی

په لاندې کې und د او په معنا دی

a) 3, 6, 9, 18, 27, 54 und 81
b) 8, 12, 21, 42, 56 und 84
c) 5, 13, 16, 20, 26 und 42
d) 120, 252, 264, 315 und 616

۶ . ۳ . د برابر نومیزو یا برابرمخرج کسرونو شمیرنه

6.3.1. a) $\frac{1}{3} + 3\frac{1}{3} + 3 \cdot \frac{1}{3} - 4\frac{2}{3}$
b) $\frac{3}{7} - \frac{1-6}{7} + 2\frac{1}{7} - 7\frac{2}{7}$
c) $10\frac{1}{5} - \frac{4-5}{5} - 5 \cdot \frac{1}{5} + \frac{10-1}{5}$
d) $2\frac{2}{26} + \frac{5-3}{13} + 3\frac{33}{39} - 0 \cdot \frac{25}{65}$

6.3.2. a) $\frac{a+1}{a} - \frac{a-1}{a} - \frac{1-a}{a}$
c) $\frac{(a-b)^2}{ab} - \frac{1-2ab}{ab} - \frac{a^2+b^2}{ab}$

b) $\frac{a+1}{b}-\frac{a-b}{b}-\frac{b-a}{b}$ d) $\frac{(a-b)^3}{2ab}-\frac{(a+b)^3}{2ab}$

۶ . ۴ – د نا برابرنومیزو کسرونو جمعه او تفریق، په مخرج یا ماتلاندې کې ضریبونه

6.4.1. a) $5\frac{7}{12}+1\frac{41}{72}+2\frac{17}{24}+9\frac{5}{9}$ c) $\frac{5}{18}+\frac{5}{6}-\frac{1}{3}+\frac{14}{27}+\frac{71}{81}$

b) $36\frac{14}{39}+19\frac{4}{13}+15\frac{5}{6}-2\frac{19}{72}$ d) $\frac{15}{64}-\frac{77}{96}+\frac{1}{243}-\frac{3-8}{24}+3\frac{1}{1296}$

6.4.2. a) $\frac{b+5c-a}{6}-\frac{3a-7b+6c}{4}+\frac{4a-5b+7c}{3}$

b) $\frac{a-9}{18}+\frac{a-2}{6}+\frac{5(2a-1)}{12}-\frac{3(a-1)}{8}-\frac{2(3a-4)}{9}$

c) $\frac{16b+3a}{48}+\frac{7a-8b+9c}{24}-\frac{9a+8b+12c}{32}$

d) $\frac{4c-3a}{12ac}+\frac{5b-2c}{10bc}-\frac{b^2-c}{4b^2c}+\frac{4b^2-5a}{20ab^2}+\frac{2}{3a}+\frac{a-b}{5ab}$

6.4.3. a) $\frac{b}{a}+\frac{a}{b}-\frac{a^2+b^2}{2b}-1$

b) $\frac{5a-6b}{30c^2}-\frac{b(5c^2-3a)}{15ac^2}-\frac{a}{4b}+\frac{a(3c^2-2b)}{12bc^2}+\frac{b}{3a}$

c) $\frac{3a^2+8b^2}{6ab}-\frac{a(4b-5c)}{10bc}+\frac{4a-5b}{10c}+\frac{b(3a-2c)}{6ac}$

d) $\frac{4c-3a}{12ac}+\frac{5b-2c}{10bc}-\frac{b^2-c}{4b^2c}+\frac{4b^2-5a}{20ab^2}+\frac{2}{3a}+\frac{a-b}{5ab}$

۶ . ۵ - د نابرابر نومیزو ماتونو(کسرونو) جمعه او تفریق( زیاتون او کمون)، جمعه مخرج یا ماتلاندې کې.

۶ . ۵ . ۱ : د a لپاره یو په بل پسې ورکړشوي ارزښت ځای په ځای کړئ‌او دا داسې لاس ته راغلي ماتونه(کسرونه) سره یوځای کړئ! بیا په ټولیزه توګه د ورکړ شوو کسرونو لاس ته راوړنې ورکړئ او هغه ارزښتونه لرې کړي، چې د a د اخستلو یا نیولو اجازه نه لري.

| | |
|---|---|
| a) $\frac{1}{a}+\frac{1}{a+1}+\frac{1}{a+2}$ | د a=1,2,3 سره |
| b) $\frac{1}{a-2}-\frac{1}{a-1}+\frac{1}{a+1}-\frac{1}{a+2}$ | د a=3,4,5 سره |
| c) $\frac{a}{a-1}+\frac{a}{a+1}-2$ | د a=2,3,4 سره |
| d) $\frac{1}{a+1}-\frac{1}{a-1}+\frac{1}{(a+1)^2}-\frac{1}{(a-1)^2}$ | د a=2,3,4 سره |

6.5.2. a) $\frac{3a-1}{4a-1}-\frac{3}{4}$

b) $\frac{a-2}{a-3}-\frac{a-1}{a-2}$

c) $\frac{1}{a+1}+\frac{4}{3a+2}-\frac{3}{a+1}$

d) $\frac{10}{2a-2}-\frac{6a}{3a^2-6a}-\frac{9b}{3ab-9b}$

6.5.3. a) $\frac{3ax-3by}{6x^2y-6xy^2}-\frac{5a^2x+5aby}{10ax^2y+10axy^2}$

b) $\frac{6ab+9b}{6ab-6b}-\frac{6ab-4b}{6ab+6b}-\frac{10b^2}{12a^2b^2-12b^2}$

c) $\frac{1}{a^2-b^2}-\frac{2b^2}{2a^4-2a^2b^2}-\frac{b^2}{a^2b^2}+\frac{1}{a^2+b^2+2ab}$

d) $\frac{24a^2b-72ab^2}{60a^2b+24ab^2}-\frac{49a^2b-28ab^2}{35a^2b+14ab^2}-\frac{20a-10b}{10a-5b}$

6.5.4. a) $\frac{3a+b}{2a^2+2ab}-\frac{a^2+b^2}{2a^2b+2ab^2}+\frac{2a-5b}{4ab+4b^2}$

b) $\frac{a+2b}{3a^2-3ab}-\frac{1}{2b}-\frac{3b-a}{2ab-2b^2}$

c) $\frac{2a-5}{a+3}-\frac{3a-4}{a+2}+\frac{a^2+6a+10}{a^2+5a+6}$

d) $\frac{5a-2b}{3a+b}-\frac{88a^2+28ab+0,25b^2}{48a^2+7ab-3b^2}+\frac{24a+b}{16a-3b}$

6.5.5. a) $\frac{a}{b}+\frac{b}{a}-\frac{b^2}{a^2+ab}-\frac{a^2}{ab+b^2}$

b) $\frac{6a-5b}{8a^2+24ab+18b^2}-\frac{2a-b}{36a^2-81b^2}+\frac{3}{12a-18b}$

c) $\frac{2a+3b}{2ab+b^2}-\frac{4a^2+b^2}{4a^2b+2ab^2}-\frac{5a-b}{4a^2+2ab}$

d) $\frac{9a-b}{6a^2-2ab}-\frac{6a+b}{3ab-b^2}+\frac{1}{2b}$

۶ . ۶: د ماتونو يا كسرونو ضربونه( يا ځلونه):

6.6.1. a) $3\cdot\frac{1}{3}$ b) $b\cdot\frac{1}{a}$ c) $\frac{5}{8}\cdot\frac{8}{5}$ d) $\frac{0}{b}\cdot\frac{b}{c}$

6.6.2. a) $\left(\frac{a}{3b}+\frac{3b}{a}\right)\cdot 3ab$ c) $\left(\frac{1}{2a}+\frac{1}{3b}\right)\cdot(2a-3b)$

b) $\left(\frac{5a}{6bc}-\frac{6b}{7ac}+\frac{2c}{3ab}\right)\cdot 84abc$ d) $\left(\frac{2}{a}+\frac{3}{b}\right)\cdot\left(\frac{a}{2}-\frac{b}{3}\right)$

6.6.3. a) $\frac{4a^2-9b^2}{21a^2b+14a^3}\cdot\frac{7a+5ab}{6b-4a}$ b) $\frac{16a^4-a^2}{24a^3+8a^2}\cdot\frac{36a^2+24a+4}{4a+1}$

c) $\frac{a^2+1}{(a+1)^2}\cdot\frac{a^3+a^2+a+1}{(a^2+1)^2}$ d) $\frac{4ab-3a}{9ab-3b^2}\cdot\frac{18a-6b}{4a^2+10ab}\cdot\frac{8ab-6a}{4ab+10b^2}$

۶ . ۷ . د ماتونو وېش:

6.7.1. a) $\frac{2}{3}:3$ b) $a:\frac{1}{b}$ c) $\frac{a}{b}:b$ d) $\frac{0}{a}:\frac{1}{b}$

۶ . ۷ . ۲ : د لاندې ويينو يا افادو برعكس يا په ځېټ ارزښتونه پيدا كړئ.

a) $\frac{a}{b}$ b) $\frac{a+1}{b}$ c) $\frac{1}{a}+\frac{1}{b}$ d) $\frac{1}{a+b}$

6.7.3. a) $\left(\frac{a}{2b}-\frac{2b}{a}\right):\frac{a}{a+2b}$ c) $\left(\frac{a}{b}+\frac{b}{a}\right):\left(\frac{a}{b}-\frac{b}{a}\right)$

b) $\left(1-\frac{2}{a}+\frac{1}{a^2}\right):\frac{1-a^2}{a^2}$ d) $\left(\frac{a+b}{b}+\frac{a+b}{a}\right):\left(\frac{1}{a}+\frac{1}{b}\right)$

6.7.4. a) $\dfrac{1-\dfrac{1}{a}}{\dfrac{1}{a}-\dfrac{1}{a^2}}$

b) $\dfrac{\dfrac{a}{b}+\dfrac{b}{a}+1}{\dfrac{a^2+b}{b}-\dfrac{a+b^2}{a}}$

c) $\dfrac{\dfrac{a}{a-b}+\dfrac{b}{a+b}}{\dfrac{a}{a+b}-\dfrac{b}{a-b}}$

d) $\dfrac{\dfrac{a}{1-a}+\dfrac{a+1}{a}}{\dfrac{a-1}{a}-\dfrac{a}{a+1}}$

6.7.5. a) $\dfrac{\dfrac{1}{a^3}-\dfrac{1}{b^3}}{\dfrac{1}{a^2}+\dfrac{1}{ab}+\dfrac{1}{b^2}}$

b) $\dfrac{\dfrac{x^2}{ab}+x\cdot\left(\dfrac{1}{a^2}-\dfrac{1}{b^2}\right)-\dfrac{1}{ab}}{\dfrac{x}{a}-\dfrac{1}{b}}$

c) $\dfrac{\dfrac{a+b}{a-b}-\dfrac{a^2+b^2}{a^2-b^2}}{\dfrac{a+b}{a-b}-\dfrac{a-b}{a+b}}$

d) $\dfrac{\dfrac{1}{16a^2}+\dfrac{1}{2ab}+\dfrac{1}{b^2}}{\dfrac{1}{8a}+\dfrac{1}{2b}}+\dfrac{\dfrac{1}{16a^2}-\dfrac{1}{2ab}+\dfrac{1}{b^2}}{\dfrac{1}{8a}-\dfrac{1}{2b}}$

6.7.6. a) $\dfrac{a+\dfrac{1}{1-ab}}{1-\dfrac{1}{1-ab}}$

b) $\dfrac{1}{a-\dfrac{a}{1-\dfrac{a}{a-b}}}$

c) $1-\dfrac{1}{1-a\cdot\dfrac{1}{1+\dfrac{b}{a}}}$

d) $\dfrac{\dfrac{a+\frac{1}{4}b}{a-\frac{1}{4}b}-\dfrac{a-\frac{1}{4}b}{a+\frac{1}{4}b}}{1+\dfrac{b^2}{16a^2-b^2}}$

۶ . ۸ . لاندې ماتونه يا کسرونه، که ممکن وي، ساده کړئ ( که غواړئ د مخکني شکل بدلون څخه وروسته)

6.8.1. a) $\dfrac{35ac-50bc}{7a-10b}$

b) $\dfrac{a-\sqrt{a}\cdot b}{b-\sqrt{a}}$

c) $\dfrac{34ax+51bx-119cx}{2a+3b-7c}$

d) $\dfrac{a^2-ab+ac}{b-a-c}$

6.8.2. a) $\dfrac{ax+bx+ay+by}{a+b}$

c) $\dfrac{91ab+7b+39a^2+3a}{13a+1}$

b) $\dfrac{ab+\frac{1}{2}b-\frac{1}{2}a-\frac{1}{4}}{a+\frac{1}{2}}$

d) $\dfrac{ax+\frac{x}{b}-\frac{a}{y}-\frac{1}{by}}{\frac{1}{b}+a}$

6.8.3. a) $\dfrac{25a^2-130ab+169b^2}{25a-65b}$

c) $\dfrac{\frac{1}{4}a^2b^2+17ab+289}{\frac{17}{2}\left(\frac{1}{17}ab+2\right)}$

b) $\dfrac{2x^2+8xy+8y^2}{(x+2y)^2}$

d) $\dfrac{25a-20\sqrt{ab}+4b}{ab(\sqrt{a}-0{,}4\sqrt{b})}$

6.8.4. a) $\dfrac{a^4-b^4}{(a+b)^2(a-b)}$

c) $\dfrac{(a^2-b^2)^2-(a^2+b^2)^2}{ab(a+b)}$

b) $\dfrac{(a+b)^4-(a-b)^4}{a^2+b^2}$

d) $\dfrac{(a^2+b^2)^2(a^2-b^2)^2+2a^4b^4}{a^4+b^4}$

6.8.5. a) $\dfrac{(\frac{1}{9}a^2+b^2+\frac{2}{3}ab)(x^3-27y^3)}{(2b+\frac{2}{3}a)(x-3y)}$

c) $\dfrac{(80-40ab+5a^2b^2)(4-ab)}{64\cdot\left(\frac{ab}{4}-1\right)^3}$

b) $\dfrac{(2x^2-20x+50)(2a-1)(a+\frac{1}{2})}{(1-2a)(2a+1)(25-x^2)}$

d) $\dfrac{(32a^3b^2x-18ax^3y^2)\cdot 3by}{(12ab^2y+9bxy^2)\cdot 2ax}$

6.8.6. a) $\dfrac{(a+b+1)(a+b-1)+(a-b)^2-2\cdot\left(b^2+\frac{1}{2}\right)}{a+1}$

b) $\dfrac{\left(4a+\frac{1}{4}b-2\sqrt{ab}\right)\cdot\left(2\sqrt{a}+\frac{1}{2}\sqrt{b}\right)}{2\sqrt{a}-\frac{1}{2}\sqrt{b}}$

c) $\dfrac{(a+1)^2-b^2}{a^2+2ab+b^2+2a+2b+1}$

d) $\frac{(a-1)^2-(b-1)^2}{a^2+b^2+2ab-4(a+b-1)}$

۶ . ۹ . د (1-) سره شمیرنه

الف- ورکړشوی دې وي/ a(b-c) /c . a=-1ځای په ځای کړئ او داسې لاس ترې راغلي کسر یا مات لپاره مختلف لیکدودونه ورکړئ.

ب – ورکړي دې (5c -3b-a)/(1-a) وي په صورت او مخرج ( ماتباندې او ماتلاندې) کې (1-) له نوکانو راوباسئ او دا عدد لنډ کړئ.

پ – کسر یا مات $(b^2 - a^2)$ /(-a-b) د (1-)سره پراخ کړئ او ساده یې کړئ.

ت- ورکړی دې وي $1-\frac{25a^2-36b^2}{6b-5a}$ په مخرج یا ماتلاندې کې (1-) له نوکانو راباسئ او دا وبینه یا افاده ساده کړئ.

## ٤ ٠ توان ( پوتنځ) او ريښه ( جذر) ( Potenz , Wurzel Root)

په دې برخه کې د توان او جذر يا ريښې قوانين ترځيرنې لاندې نيسو، دلته غوره دا ده، چې د کارونې يا استعمال چټکتيا ته پرمختګ ( تکامل) ورکړو٠ دا مشوره کيږي، چې ريښه دې په پوتنځ واړول شي، چې د اکسپوننت - يا جګعدد يې نسبي يا راشنل وي٠ د دې فورمال ټيک کره د ګڼلو قوانينو په څنګ کې د باوري کيدو لپاره بايد په نيونو(فرضيو ) هم ژور فکر وشي٠

د ريښې پيژند د خلاف يا پر ځښ عمليو مخه بايد نيول شوي وي، چې د هغې له مخې راديکاند ( ريښه ويستونی يعنی هغه ګڼ، چې ريښه يی وېستلکيږي يا نيول کيږي،د ريښې نخښې لاندې ګڼ او هم د ريښی ارزښت نامنفي اعداد ( ناکميز ګڼونه) وي٠ د توان زړه پورې ريل اکسپوننت ( په جګ) هلته کره دی يا باوري دی، چې د بنسټ لپاره د مثبت عددونو نيونه يا فرضيه شوي وي٠

### ٤ ٠ ١ توان ( پوتنځPotenz ) په ټولګڼيز يا تام عدد په جګ يل اکشسپوننت

---

پيژند ٤ ٠ ١:

د يوه په خوښه ريل کڼ توان لاندې موږ د a د خپل ځان سره n- م واره ځل

پوهيږو٠ د دې لپاره ليکو: $a^n = b$ دلته a بنسټ n = 1,2,3,...

اکسپوننت(جګګڼ، لنډ: جګ) او b د پوتنخ يا توان ارزښت بلل کيږي٠

د بيلګي په توګه

$$a = a\ ,\ a^2 = a\ .\ a\ ,\quad a^3 = a.a.a$$

(4,1 ) د n = 0 لپاره کره ټاکل کيږي $a^\circ = 1$ د $a \mid= 0$ سره

د پيژند يا تعريف پر بنسټ ( او د څه بنديزونو په څلورديوالی کې، چې لاندې شوي) ښوول کيدی شي، چې د خوښی يا زړه پورې رييلګڼونو $a,b \in R$ او $m,n \in N^*$ نامنفی ټولګڼونو اکسپوننت يا جګګڼ لپاره لاندې باورلري

$$a^n.b^n = (a.b)^n;........................................(4,2)$$

$$a^n : b^b = (\frac{a}{b})^n = (a/b)^n; b \neq 0;................(4,3)$$

$$a^n.a^m = a^{n+m};........................................(4,4)$$

$$a^n : a^m = \frac{a^n}{a^m} = a^{n-m}; a \neq 0, n \geq m;............(4,5)$$

$$(a^n)^m = a^{n.m};........................................(4,6)$$

---

دا پورته د توان اړیکې د ټولګنيز مثبت جګښ یا اکسپوننت لپاره باور لري، کیدئ شي، چی ټولګنونو ته وغزول شي، که چیرې پیژند ورکړو یا تعریف کړو:

$$\frac{1}{a^n}=a^{-n};n=1,2,3,....,..a\neq 0,..................(4,7)$$

دا پورته د توان قوانین د ټولګنيز جګ(اکسپوننت) لپاره بی بندیزونو یواځې د نه ورکیدونکو رییل بنسټونو یانې د $a \mid= 0$ او $0 =\mid b$ لپاره باور ي دي . په (4,5) کې بیا بندیز $n \geq m$ اړیین نه دی.

د توان قوانین کیدئ شي په ښه بدلونکو افادو یا وییینو وکارول- یا استعمال شي.

بیلګه4 .1

$$[\frac{4a^{-3}b^{0}}{x^2y^{-1}}]^{-2}=(4abx^{-2}y]^{-2}=4^{-2}a^6x^4y^{-2}=\frac{a^6x^4}{16y^2},abxy\neq 0$$

بیلګه 4 . 2

$$\frac{9^4(a^2\sqrt{ab})^2}{18^2.(3ab)^3}=\frac{3^8.a^4.a.b^2}{2^2.3^4.3^3.a^3.b^3}=\frac{3a^2}{4b},a>0,b\neq 0$$

بیلګه4 . 3

$$\frac{3-a}{a^{m-4}}+\frac{a^6-a^5+2a^3-1}{a^{m+1}}-\frac{2a^2+1}{a^{m-2}}=$$

$$=\frac{a^5(3-a)+a^6-a^5+2a^3-1-a^3(2a^2+1)}{a^{m+1}}=$$

$$=\frac{3a^5-a^6-a^5+2a^3-1-2a^5-a^3}{a^{m+1}}=\frac{a^3-1}{a^{m+1}},a\neq 0,m\in Z$$

د ---------------------------------------------------------------------------

پوتنخ زياتون او کمون کې بايد پام وي، چې يوازې د برابر پوتنخ ګڼونه يو له بل سره زياتيدی او يو له بل کميدی شي٠

بيلګه 4 . 4

$$3a^n + 2a^n = 5a^n$$

بيلګه4 . 5

$$4a^{n+1} + 2a^n + 5b^{n+1} - 3b^n - 3a^{n+1} + a^n - 4b^{n+1} + 3b^3 = a^{n+1} + 3a^n + b^{n+1}$$

دې ته بيا ګوته نيسو، چې د بنسټ - او پوتنخ مخنخښې کې دې توپير وشي٠ پوتنخ له مثبت - يا زياتونمخنخښې سره تل مثبت يا زياتيز پوتنخ ارزښت لري، په دې ترڅ کې، چې پوتنخ د منفي - يا کميز بنسټ سره که اکسپوننت جوړه وي مثبت زياتيز او که اکسپوننت ناجوړه وي نو منفي - يا کمون ارزښت لري٠

باور لري:

$$(2a)^{2n} = +a^{2n}, ...., (-a)^{2n} = +2a^{2n}$$
$$(+a)^{2n+1} = +a^{2n+1}, ..., (-a)^{2n+1} = -a^{2n+1}, n \in Z, a > 0$$

٤ ۰ ۲ – ريښه او توان له ريشنل جګ عدد (اکسپوننت) سره

پيژند ٤ ۰ ۲

د يوه نامنفي ګڼ a لپاره n -مه ريښه هغه نامنفي ګڼ b دی، د کوم لپاره چې

---

باور لري: $b^n = a$

د دې لپاره ليکو:

$$b = \sqrt[n]{a}, n = 1, 2, 3, .....................(4,8)$$
$$a \geq 0, b \geq 0...............................(4,9)$$

دلته a راديکاند Radikand ، يا ګڼ، چې رېښه (جذر) يې نيولکيږي( مورږ دا

رېښه نيووني يا رېښه ويستونی بولو) او n دريښې جګ(اکسپوننت) اوb د

رېښې ارزښت يا رېښه ارزښت بلل کيږي٠

بايد پردې تينګار وشي، چې رېښه يوازې د نامنفی راديکاند يا رېښه ويستوني (رېښه نيوني) $a \geq 0$ راوستل کيږي يا نيول کيږي او پخپله په لاندې توګه يو نامنفي - يا ناکميز ارزښت لري يانی

$$b = \sqrt[n]{a} \geq 0$$

د دې کره کوني لپاره لاندې يادونې شوي دي:

۱ – د جوړه $n = 2,4,6,...$ لپاره د $a<0$ سره رېښه b په رېيلګڼونو کې نه شته، کوم ، چې (4,8) پوره کړي

ځکه، چې د b جوړه په توان تل نامنفي يا ناکميز يانې زياتيز ګڼ دی٠

۲ – د جوړه او مثبت - يا زياتيز برابرون $b^n = a$

په ختنه په رېښتوني دوه رېيل اوبيونې ياحلونه لري د بيلګي په توګه $b^2 = 4$

---

ياني $n = 2$ او $a = 4$ اوبيوني

$$b_1 = 2, b_2 = -2$$

دي٠ د دې لپاره، چې د راديکاند د شميرلو کاروني يواځنۍ سرته ورسولی شو، بايد د يوې اوبيونې لپاره پريکړه وکړو، نو له دې امله موږ مثبت ارزښت غوره بول

۳ – د ناجوړه . $n= 1 , 3 , 5$ او $a\geq 0$ لپاره

$$b^n = a$$

تل يواځني زياتيز(مثبت) اوبی يا حل لري ياني $b\geq 0$

٤ – د ناجوړه n او کيمز يا منفي a لپاره $b^n = a$

تل يواځني يو منفی اوبی يا حل لري٠ ياني $b < 0$ د بيلګي په توګه دا $b^3= -8$ يواځې

اوبی $b = -2$ لري.

په هر صورت بايد د جوړه... $n=2,4,6$ ګڼونو لپاره $a\geq 0, b\geq 0$ وغوښتل شي، ځکه چې په بل صورت کې به يا ريښه شته نه وي او يا به يواځنی اوبی نه لري، ياني څو اوبی به شته وي

د ناجوړه يا طاقو,... $n = 1,3,5,\ldots$ لپاره کيدی شي، چې له دواړو غوښتنو تير شو٠ دلته به يواځې تاوان يا زيان دا وي، چې د ټولو ممکن حالتونو لپاره به بيل بيل د ريښي د قوانينو غوره کولو ته اړ کيږو٠ له بلې خوا به ريښی د قوانينو ترتيبول د پوتنځ لپاره ، چې پورته ايښول شوي بنديزونه nقوانينو لپاره ستونځمن وي٠ له دې امله د ناجوړه ريښو

---

اکسپوننت غوره کوو او د يواځني يو اوبی لپاره 2- د 8- = $b^3$ او نه $-2=\sqrt[3]{-8}$

بلکه $-2=-\sqrt[3]{8}$ ليکو٠ په دې اړوند او د يادو شوو نيونو په بنسټ دې دا لاندې اوبی په ګوته شوی وي

$$\sqrt{a^2}=a,\ldots\ldots\ldots\ldots(4,10)$$

څلوری ريښه يا مربع ريښه $\sqrt{a^2}$ د ټولو حقيقي اعدادو يا - ګڼونو a لپاره تعريف شوي٠ د نامثبت يا نازياتيز ې a لپاره به (4,10) په داسی حال کې، چې د منفي a لپاره به بيا د (4,10) اوبی منفي يا متيز وي، کوم، چې نيونه $b \geq 0$ نفې کوي.

په ځانګړي حالتونوکې به د ( 10 , 4 ) ښول شويو حالتونو استعمال لاندې مخامخوالي يا مضاد لاس ته راولي، لکه :

$$\sqrt{4}=\sqrt{2^2}=2, \sqrt{4}=\sqrt{(-2)^2}=-2$$

ياني د 2- = 2 سره٠

د (10 , 4 ) ټيک داسې ليکل کيدی شي:

$$\sqrt{a^2}=|a|=\{a, a\geq 0,\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(4,11)$$

$$=\{-a \quad , a\leq 0 \qquad (4,11)$$

د ريښې يا جذر له پيژند ( 9 , 4 ) , ( 8 , 4 ) سره سم کيدی شي، چې لاندې باوري د ريښې قوانين وليکل شي د.... $n = 1,2,3$ او $a , b \geq 0$ لپاره

$$\sqrt[n]{a}.\sqrt[n]{b}=\sqrt[n]{ab}\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(4,12)$$

$$\sqrt[n]{a}:\sqrt[n]{b}=\sqrt[n]{a}/\sqrt[n]{b}=\sqrt[n]{a/b}, b>0\ldots\ldots(4,13)$$

$$\sqrt[n]{a}.\sqrt[m]{a}=\sqrt[n.m]{a^{n+m}}\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(4,14)$$

$$\sqrt[n]{\sqrt[m]{a}}=\sqrt[n.m]{a}\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(4,15)$$

----------------------------------------------------------------------------

پورته د (4,15),(414),(,413).(4.12) ترمنځ بايد لږ واټن وي، خو کومه ترې ناسمه پوهيدنه نه رامخ ته کوي ۰ دلته پيژندل کيږي، چې د ريښې قوانين د پوتنځقوانينو ته، چې په(4,2) تر (4,6)پورې ورکړ شوي،د پرتلې وړ دي۰ په رښتيا چې دا د پوتنځقوانينو لاس ته راتلی شي، که پوتنځ د ريشنل اکسپوننت سره په لاندې ډول تعريف شي يا يې لاندې پيژند ورکړ شي۰

$$\sqrt[n]{a} = a^{1/n} \Leftrightarrow \sqrt[n]{a^m} = (\sqrt[n]{a})^m .......(4,16)$$

د... $m = 1 \, , 2 \, , 3 \; 4$ , $n = 1,2,3,\ldots$ , $a \geq 0$ لپاره

د بيلګې په توګه (١٦ ، ٤ ) په لاندې ډول ليکل کيږي

$$\sqrt[n]{a}.\sqrt[m]{a} = a^{1/n} \cdot a^{1/m} = a^{(1/n)+(1/m)} = a^{(n+m)/n.m} = \sqrt[n.m]{a^{n+m}}$$

دا اړيکې (4,16) کيدی شي منفي $m = -1,-2,-3,\ldots$ ته هم پراخه شي، چيرته، چې (4,17) په ټينګه - يا کره باور ولري

$$a^{-(m/n)} = \frac{1}{a^{\frac{m}{n}}}, a > 0....................(4,17)$$

بې له بنديزونو د خوښې جګو n او m لپاره د پوتنځقوانين (4, 2 ) تر (4,6) باور لري، خو يواځې هلته، چې نه ورکيدونو بنسټونو يانې $a>0, b>0$ نيونه شوې وي۰

د ريښي شميرلو لپاره بايد اساساً د(4,16) له مخې ريشنل اکسپوننتونه واوړي او له (4,2) تر (4,6) استعمال کړي

اړتيا لرو، چې د پوتنځ او ريښي سره شميرلو د قوانينو استعمال نيوني تل و ازمايلی شو۰ په ځانګړي ډول د بنسټ نه منفيتوب کمونوالی يا نامنفيوالی يا مثبتتوب(مثبتوالی يا زياتونوالی) پريږدو، چې لاندې ناسم پاي کيدډول وښايو۰

$$\sqrt{-a} = (-a)^{1/2} = (-a)^{2/4} = \sqrt[4]{(-a)^2} = \sqrt[4]{a^2} = a^{2/4} = a^{1/2} = \sqrt{a}$$

برابرون یوازې د دې ساده حالت0 = a لپاره شته دی یا باور لري، د a|=0 یا $a \neq 0$
لپاره a-او یا a منفي دي دا په دې مانا، چې a یاa- پیژند نه لري یا تعریف نه دی٠

د توان قوانین د توان سره شمیرلو، چې راشنل جګ لري، په لاندې بیلګو کې روښانه کوو:

پام: په لاندې بیلګو کې دا تراوسه د شمیر بنسټیز قوانین ټول راغلي، د نو ورسره بلدېدونکو ګرانو لوستونکو ته دې دا روښانه وي، چې د لږ فکر وروسته هرڅه روښانه کیدی شي٠ شمیرنه یې لږ وخت نیسي، که غواړی پخپله یې یو ځل وشمیری٠

بیلګه ٤ ٠ ٦

$$\sqrt[3]{\sqrt{125}} = \{(125)^{\frac{1}{2}}\}^{\frac{1}{3}} = (125)^{\frac{1}{6}} = (5^3)^{\frac{1}{6}} = 5^{\frac{1}{2}} = \sqrt{5} = 2,2361$$

بیلګه ٤ ٠ ٧

$$\frac{a^2\sqrt{b}c^{-2}}{\sqrt[3]{a^2}b^{-3}} : \frac{d^2\sqrt{c}}{\sqrt[5]{d}a^{-5}} = \{a^{(2-\frac{2}{3})}b^{(\frac{1}{2}+3)}c^{-2}\} : \{a^5c^{-2}d^{(2-\frac{1}{5})}\} =$$

$$= a^{(2-\frac{2}{3}-5)}b^{(\frac{1}{2}+3)}c^{(-2-\frac{1}{2})}d^{(-2+\frac{1}{5})} = a^{-\frac{11}{3}}b^{\frac{7}{2}}c^{-\frac{5}{2}}d^{-\frac{9}{5}} =$$

$$= \frac{\sqrt{b^7}}{\sqrt[3]{a^{11}}.\sqrt{c^5}.\sqrt[5]{d^9}} = \frac{b^3.\sqrt{b}.c^2}{a^3.\sqrt[3]{a^2}.c^2.\sqrt{c}..d^5.\sqrt{d^4}}$$

بیلګه ٤ ٠ ٨

$$8.\sqrt[3]{343} - 4.\sqrt[3]{125} + 5\sqrt[3]{8} - 5\sqrt[3]{729}$$

$$= 8.\sqrt[3]{7^3} - 4\sqrt[3]{5^3} + 5.\sqrt[3]{2^3} - 5.\sqrt[3]{3^6} = 8.7 - 4.5 + 5.2 - 5.9 = 1$$

---

بيلګه ٤ ٠ ٩

$$5.\sqrt{63}-2.\sqrt{175}-\sqrt{343}+3.\sqrt{28}$$
$$=5.\sqrt{7.3^2}-2.\sqrt{7.5^2}-\sqrt{7.7^2}+3.\sqrt{7.2^2}=$$
$$=5.3\sqrt{7}-2.5\sqrt{7}-7.\sqrt{7}+3.2.\sqrt{7}=$$
$$=15.\sqrt{7}-10.\sqrt{7}-7.\sqrt{7}+6.\sqrt{7}=4.\sqrt{7}$$

بيلګه ٤ ٠ ١٠

$$\sqrt{a-\sqrt{a^2-b^2}}.\sqrt{a+\sqrt{a^2-b^2}}=\sqrt{(a-\sqrt{a^2-b^2}).(a+\sqrt{a^2-b^2})}=$$
$$=\sqrt{a^2-(\sqrt{a^2-b^2})^2}=\sqrt{a^2-a^2+b^2}=|b|$$

د $|a| \geq |b|$ لپاره

د مختلفو شميرلو لپاره موخور دی، چې مات لاندې کې منځ ته راغلې ريښې له منځه يوسو ( د ماتلاندې ريشنل کول)۰

که په ماتلاندې کې يوه ريښه $\sqrt[n]{a^m}=a^{\frac{m}{n}}$ د فاکتور يا ځلوونې په څيررامنځ ته شي، نو دا د وظيفې لپاره يوازې اړيين ده چې (m < n ( m , n >0 او $m,n\in Z$ په پام کې راوړو

کارونه يا عمليه په لاندې ډول اجرا کيږي(N*|= 0 , a > 0)

$$Z\Big/N=\frac{Z}{N}=\frac{Z}{N*\sqrt[n]{a^m}}=\frac{Z.a^{1-\frac{m}{n}}}{N*a^{\frac{m}{n}}.a^{1-\frac{m}{n}}}=\frac{Z.\sqrt[n]{a^{n-m}}}{N*a},..........(4,18)$$

بیلګه ٤ ۰ ۱۱

$$\frac{3}{2\sqrt[3]{3}}=\frac{3}{2.3^{\frac{1}{3}}}=\frac{3.3^{\frac{2}{3}}}{2.3.3^{\frac{2}{3}}}=\frac{3^{1+\frac{2}{3}}}{2.3^{\frac{1}{3}+\frac{2}{3}}}=\frac{3^{\frac{5}{3}}}{2.3}=\frac{3^{\frac{2}{3}}}{2}=\frac{1}{2.\sqrt[3]{9}}$$

که په ماتلاندې کې د څلورۍ- یا مربع رېښې زیاتون یا کمون وي $N=\sqrt{a}\pm\sqrt{b}$ نو ماتلاندې له مات $\sqrt{a}\pm\sqrt{b}$ سره غزوو او د بینوم فرمول استعمال سره له $a > 0$ او $b > 0$،چې $a \neq b$ وي لاس ته راځي:

$$\frac{Z}{N}=\frac{Z}{\sqrt{a}\pm\sqrt{b}}=\frac{Z.(\sqrt{a}\pm\sqrt{b})}{(\sqrt{a}\pm\sqrt{b}).(\sqrt{a}\mp\sqrt{b})}=\frac{Z.(\sqrt{a}\pm\sqrt{b})}{a-b},...(4,19)$$

بیلګه ٤ ۰ ۱۲

$$\frac{1}{2-\sqrt{3}}=\frac{2+\sqrt{3}}{(2-\sqrt{3})(2+\sqrt{3})}=\frac{2+\sqrt{3}}{4-3}=2+\sqrt{3}$$

بیلګه ٤ ۰ ۱۳

$$\frac{1}{\sqrt{2}+\sqrt{3}}=\frac{\sqrt{2}-\sqrt{3}}{(\sqrt{2}+\sqrt{3})(\sqrt{2}-\sqrt{3})}=\frac{\sqrt{2}-\sqrt{3}}{2-3}=\sqrt{3}-\sqrt{2}$$

## ۴ . ۳ توان( پوتېنخ) د حقیقي – یا رییل جګ ( اکسپوننت ) سره

دلته دا په ګوته کوو یا دې دا ویل شوي وي، چې د توان ټول قوانین له (4,2) تر (4,7) دې په خوښه حقیقي اعدادو اکسپوننتونو(جګعددونو)m,n لپاره باور لري،طبعاً بې بندیزه ټیک د مثبت بنسټ لپاره. یعنې a,b>0 ، برسیره پردې دې باید توان $a^{\alpha}; a > 0$ د ناریښتوني یا ایراسنل عدد $\alpha$ لپاره تعریف شي.

---

که α يو ايراشنل – يا رېښتونی عدد وي، نو موږ د ۳ . ۱ . ۴ برخې سره سم انتروالونو بندولو په بنبټ لرو: $\alpha = \{a_{n;}a'_n\}$. دلته $a_{n;}a'_n$ هوښيار يا راشنل اعداد دي.

بيا نو

$$\beta = \{a^{a_n}; a^{a'_n}\} \qquad (4,20)$$

هم په انتورالونو بندول دي چې غږي يې ( ۴،۲ ) لاندې تعريف شوي توانونه دي د راشنل اکسپوننت سره. د هغه موجود په انتروالونو بندولو سره په دې توپير، چې

$$\begin{aligned} 2^1 &< 2^{\sqrt{2}} < 2^2 \\ 2^{1,4} &< 2^{\sqrt{2}} < 2^{1,5} \\ 2^{1,41} &< 2^{\sqrt{2}} < 2^{1,42} \\ 2^{1,414} &< 2^{\sqrt{2}} < 2^{1,415} \\ 2^{1,4142} &< 2^{\sqrt{2}} < 2^{1,4143} \\ &\vdots \end{aligned}$$

اخرني مساوات په دې معنا دی

نو لرو $$\sqrt[10000]{2^{1412<2^{\sqrt{2}}<\sqrt[10000]{2^{14143}}}}$$

٤ ، ۳ تولګه : د a>0, b>0 رييل او $m,n \in N(n \neq 0)$

همدا ډول $m,n \in N(n \neq 0)$ ييلو لپاره باور لري

$$\alpha, \beta \in R$$

$$a^0 = 1, \frac{1}{a^\alpha} = a^{-\alpha}, \sqrt[n]{a} = a^{\frac{1}{n}}, \sqrt[n]{a^m} =$$

$$= (\sqrt[n]{a})^m = a^{\frac{m}{n}}$$

---

دا پورته موضوع تر دې ځايه بسيا کوي، که نور څه مخته راتلل، چې اړيين وو، هغه به بيا په ګډه ورزياتوو

## ۴ . ۵ . تمرينونه

### ۱ . د توان کلمه، د توان جمعه او تفريق يا زياتون او کمون

#### ۱ . ۱ – د توان په څير يې وليکئ

a) $(-a^{-1})\cdot(-a^{-1})\cdot(-a^{-1})\cdot(-a^{-1})$ b) $-\left(\frac{1}{a^{-2}}\cdot\frac{1}{a^{-2}}\cdot\frac{1}{a^{-2}}\right)$

c) $-(b-a)\cdot(a-b)\cdot(a-b)$ d) $-(a^0 b)\cdot(a^0 b)\cdot(a^0 b)\cdot(a^0 b)$

1.2. a) $-3^{-4}$ b) $(-5)^3$ c) $(-2^{-1})^3$ d) $-\left(\frac{2}{3}\right)^2$

1.3. a) $12a^2b-6ab^2-15a^2b+6ab^2-7a^2b$

b) $(3a+2b)x^4-x^4(2b-3a)+x^4(3a+2b)$

c) $4(a-b)^2+2(b-a)^2-3(a-b)^2$

d) $18(a-1)^3-3(1-a)^3-15(a-1)^3+4(1-a)^3+3(1-a)^3$

### ۲ – د توانو ضرب او وېش د برابر بنسټ سره

2.1. a) $\frac{3a^{n+1}\cdot 6x^{n+7}\cdot 9b^{x+1}}{3x^n\cdot 2b^{x+1}\cdot 3a}$ c) $\frac{a^{x+1}\cdot b^{x+3}\cdot a^{3x-1}\cdot b^{x+3}}{a^{x-2}\cdot b^{3-x}\cdot a^x\cdot b^{x+1}}$

b) $\frac{a^{n+1}\cdot a^{n+1}\cdot a^n}{a^0\cdot a^n\cdot a^{n-1}}$ d) $\frac{a^{3n-x}\cdot b^{2n+x}}{a^{n+2x}\cdot b^{2n-x}}\cdot\frac{x^{3n+2}\cdot y^{2n-1}}{x^{2n-3}\cdot y^{n+1}}$

2.2. a) $\frac{18x^{a+4}}{2y^{5a+7}}:\frac{4x^{7-3a}}{9y^{8+5a}}$ c) $\frac{42a^2b^3\cdot x^{n+1}}{36c^3\cdot y^2\cdot z^{n-3}}:\frac{70a^3b^2\cdot x^{n+2}}{54c^2y^4\cdot z^{n-2}}$

b) $\frac{a^{5x-2y}}{b^{6m-1}}:\frac{a^{4x+y}}{b^{m-2}}$ d) $\frac{45xa^3\cdot 9y^n(a-1)^2}{9yb^3\cdot 30x^n(a+1)^2}:\frac{9y^{n-1}(1-a)^3}{24x^{n+1}(1+a)^2}$

۲ . د توان ضرب  او جمعه(زياتون) د همغه بنسټ سره:

2.3. a) $(x^{5n+3} + x^{4n+5} - x^{3n+4}) : x^{2n+3}$

b) $(143a^4b^5 - 221a^3b^5 - 247a^5b^4) : 13a^3b^4$

c) $(a^{n+1}b^{x-1} + a^nb^x + a^{n-1}b^{x+1}) : a^{n-2}b^{x-1}$

d) $(16a^8 - a^4b^2 + 9b^4) : (4a^4 - 5a^2b + 3b^2)$

د لوګاريتم بنسټ فرمولونو استعمال.

په لاندې کې x وشميرئ

۳ . د توان په توانونه، د توانونو  ضرب او وېش د برابر جګګې يا جګعدد سره، د کميزو يا منفي اکسپونتتونو سره شميرنه

3.1. a) $\left(1\frac{3}{4}\right)^2 : \left(2\frac{1}{3}\right)^2$

b) $4^{-2} \cdot \left(\frac{1}{4}\right)^{-4}$

c) $\left(-\frac{1}{a^{-4}}\right)^{-5}$

d) $\left(\frac{3}{4}\right)^{-2} \cdot \left(\frac{4}{3}\right)^{-3}$

3.2. a) $\dfrac{18^4(a^2b)^2}{27^3 \cdot (2a\sqrt{a} \cdot b)^2}$

b) $\dfrac{(6ab)^3 \cdot (5a^2b)^4}{2^4 \cdot 3ab^2 \cdot (25a\sqrt{b})^2}$

c) $\left(\dfrac{4b^2y^2}{6a^2x^2}\right)^3 \cdot \left(\dfrac{8a^3y^2}{6b^3x^3}\right)^4 \cdot \left(\dfrac{18b^3x^6}{16a^3y^3}\right)^2$

d) $\left(\dfrac{45b^2y^3}{24a^3x}\right)^2 \cdot \left(\dfrac{6bx^3}{9ay^3}\right)^3 \cdot \left(\dfrac{75b^3x^3}{36a^4y}\right)^2$

3.3. a) $\dfrac{(3a-9b)^2}{81b^2-9a^2}$

b) $\dfrac{(6a-12b)^2 \cdot (3a+6b)^2}{(6a^2-24b^2)^2}$

c) $\dfrac{(4a^2-9b^2)^2}{(3a^2-2ab)^2} \cdot \left(\dfrac{9a^2-4b^2}{2a^2+3ab}\right)^2$

d) $\left(\dfrac{2xb^3}{3ya^3}\right)^3 \cdot \left(\dfrac{15x^2a^3}{8y^3b}\right)^2 : \left(\dfrac{25x^3b^3}{12y^4a}\right)^2$

3.4. a) $\dfrac{27x^{-5} \cdot y^{-6} \cdot z^{-1}}{45x^{-4} \cdot y^{-5} \cdot z^0} \cdot \dfrac{49x^{-2} \cdot y^{-3} \cdot z^{-4}}{42x^{-3} \cdot y^{-4} \cdot z^{-3}}$

b) $\dfrac{a^{-2} \cdot x^{-4} \cdot y^{-6}}{b^3 \cdot c^{-4} \cdot z^{-5}} : \dfrac{a^{-3} \cdot b^{-5} \cdot x^{-3}}{c^{-5} \cdot y^6 \cdot z^{-7}}$

c) $\frac{(ax-ay)^m \cdot (3bx+3by)^n}{(cx^2-cy^2)^{m+n}}$

d) $\left(\frac{(x+y)^{3a-4}}{x^{a-1}y^2} : \frac{y^{2a-5}}{x^{4a-3}(x+y)^{3-2a}}\right)\frac{x^{4-3a}y^{3a-6}}{(x+y)^{a-2}}$

۴ . د کومو شرلیطو لاندې کیدی شي لاندې عددونه د یوه مربع – یا څلورۍ رېښه وي؟

4.1. a) $+a, -a$ b) $+a^2, -a^2$ c) $+a^3, -a^3$ d) $ab$

4.2. a) $+(a-b), -(a-b)$ b) $+(a-b)^2, -(a-b)^2$ c) $a^2-b^2$ d) $a^2+b^2$

۵ - د رېښو جمعه او تفریق)زیاتوناو کمون)

5.1. a) $6\sqrt{27}+2\sqrt{108}-7\sqrt{75}$

b) $\sqrt{50}+\sqrt{8}-\sqrt{72}+\sqrt{18}$

c) $3\sqrt[4]{256}-4\sqrt{49}-7\sqrt[3]{27}+2\sqrt[5]{32}$

d) $3\sqrt{50}-\sqrt{98}+4\sqrt{288}+14\sqrt{162}-\sqrt{25-9}\cdot\sqrt{2}$

5.2. a) $\frac{x(2r^2-4x^2)}{\sqrt{r^2-x^2}}-8x\sqrt{r^2-x^2}$

b) $\frac{r(4r^2-3rH)}{\sqrt{4r^2-2rH}}-3r\sqrt{4r^2-2rH}$

c) $2\sqrt{(x-k)^2+x^2}-\frac{(2x-k)^2}{\sqrt{2x^2-2kx+k^2}}$

d) $\frac{h^2+\left(c-\frac{c}{2}\right)^2-\left(c+\frac{c}{2}\right)^2}{\sqrt{h^2+\left(c-\frac{c}{2}\right)^2}}-\frac{h^2+2\cdot\frac{c^2}{4}}{\sqrt{h^2+\frac{c^2}{4}}}$

5.3. a) $\sqrt{1-x}+\frac{x+1}{2\sqrt{1-x}}$

b) $\frac{1}{(1-x^2)\sqrt{1-x^2}}+\frac{3x^2}{(1-x^2)^2\sqrt{1-x^2}}$

c) $\frac{\sqrt{a^2-x^2}}{a^2-x^2}+\frac{x^2}{\sqrt{(a^2-x^2)^3}}$

d) $\frac{1}{x+\sqrt{x^2+a^2}}+\frac{x}{(x+\sqrt{x^2+a^2})\cdot(\sqrt{x^2+a^2})}$

۶ – د رېښو یا جذرونو ضرب او وېش

---

6.1. a) $\sqrt{3\cdot 7}\cdot\sqrt{3\cdot 5}\cdot\sqrt{5\cdot 7}$ c) $\sqrt{\frac{a^2+b^2}{4}} : \sqrt{\frac{a^2-b^2}{4}}$

b) $(\sqrt{a}+\sqrt{b})(\sqrt{a}-\sqrt{b})$ d) $\sqrt{\frac{a^2+b^2+2ab}{2}}\cdot\sqrt{\frac{b^2-2ab+a^2}{2}}$

6.2. a) $(3-\sqrt{2})(2+3\sqrt{2})$ c) $\sqrt{12x^2-12x}\cdot\sqrt{3x^2-3}$

b) $\sqrt{8+2\sqrt{10}}\cdot\sqrt{8-2\sqrt{10}}$ d) $\sqrt{a^2+a}\cdot\sqrt{ab+b}$

6.3. a) $\left(4^{-\frac{1}{4}}+\left(\frac{1}{2^{-\frac{3}{2}}}\right)^{-\frac{4}{3}}\right)\cdot\left(4^{-0,25}-(2\sqrt{2})^{-\frac{4}{3}}\right)$ c) $\frac{\sqrt{a+c}+\sqrt{b+c}}{\sqrt{a+c}-\sqrt{b+c}}$

b) $\sqrt{6x^2-6}\cdot\sqrt{\frac{3x-3}{2x+2}}$ d) $\frac{\sqrt{(a-b)^2+a^2+b^2-2ab}}{\sqrt{2(a^2+b^2)(a^2-b^2)}}$

## ۷ – د توان او ريښې ريښه وېستنه (حلونه)

.1. a) $\sqrt{0,04^5}$ b) $\sqrt[3]{4200}$ c) $\sqrt[3]{\sqrt[3]{8}}$ d) $\sqrt{\sqrt[4]{256}}$

.2. a) $\sqrt[2n-1]{a^{4n^2-1}}$ c) $\sqrt{\sqrt[3]{a^6\cdot b^{12}}}$

b) $\sqrt[4]{a^2\cdot\sqrt[3]{a^2}}$ d) $\sqrt[3]{\sqrt{a^6\cdot b^8}}$

.3. a) $\sqrt[3]{(a-b)^3(a+b)^4}$ c) $\frac{4\pi r^3-8\pi r^3}{\sqrt{\left(4r^2-2r\cdot\frac{4}{3}\cdot r\right)^3}}$

b) $\sqrt{\frac{1}{8}a^2+\sqrt{\left(\frac{a^2}{8}\right)^2+\frac{a^4}{8}}}$ d) $\pm\sqrt{\left(\frac{x_0y_1^2}{y_1^2-y_2^2}\right)^2-\frac{y_1^2x_0^2}{y_1^2-y_2^2}}-\frac{x_0y_1^2}{y_1^2-y_2^2}$

.4. a) $\sqrt[4]{\frac{a}{b}\cdot\sqrt[3]{\frac{b^2}{a}\cdot\sqrt{\frac{1}{a^2}}}}$ c) $\sqrt{a\cdot\sqrt[8]{a^5\cdot\sqrt[3]{a}}} : \sqrt[4]{a\cdot\sqrt[3]{a^2\cdot\sqrt{a}}}$

b) $\sqrt[3]{a^3\cdot\sqrt{a^2\cdot\sqrt[5]{a^8\cdot\sqrt[4]{a^3}}}}$ d) $\frac{\sqrt[6]{a^5\cdot\sqrt[3]{a^2}}}{\sqrt[3]{a^2\cdot\sqrt[6]{a^4}}} : \frac{\sqrt{a^3\cdot\sqrt[9]{a^7}}}{\sqrt[9]{a^7\cdot\sqrt{a}}}$

۸ – لاندې ماتونه يا کسرونه داسې شکل ته واړوئ، چې مخرج ريښه نه وي.

8.1. a) $\frac{3}{4\sqrt{3}}$ b) $\frac{4}{\sqrt[3]{2}}$ c) $\frac{10}{3\sqrt{8}}$ d) $\frac{15}{\sqrt[11]{243}}$

8.2. a) $\frac{a^2}{\sqrt[3]{a^5}}$ b) $\frac{1}{\sqrt[9]{x^{13}}}$ c) $\frac{y^2x}{\sqrt{x^3y}}$ d) $\frac{ab}{\sqrt[7]{a^2b^3}}$

8.3. a) $\frac{13}{7-\sqrt{10}}$ b) $\frac{6}{\sqrt{5}+1}$ c) $\frac{15}{3-\sqrt{6}}$ d) $\frac{16}{3+\sqrt{5}}$

8.4. a) $\frac{8}{3\sqrt{2}+4}$ b) $\frac{17}{3\sqrt{5}-2\sqrt{7}}$ c) $\frac{6}{\sqrt{8}+\sqrt{5}}$ d) $\frac{6}{\sqrt{7}-\sqrt{3}}$

8.5. a) $\frac{3+\sqrt{5}}{3-\sqrt{5}}$ b) $\frac{3(\sqrt{5}-\sqrt{8})}{\sqrt{8}+\sqrt{5}}$ c) $\frac{3+\sqrt{6}}{\sqrt{3}+\sqrt{2}}$ d) $\frac{4\sqrt{10}-7\sqrt{3}}{\sqrt{10}-\sqrt{3}}$

8.6. a) $\frac{7\sqrt{5}+4\sqrt{3}}{5\sqrt{3}+2\sqrt{5}}$ c) $\frac{\sqrt{3-\sqrt{2}}}{\sqrt{3+\sqrt{2}}}$

b) $\frac{2\sqrt{6}+3\sqrt{5}}{2\sqrt{6}-3\sqrt{5}}$ d) $\frac{1+\sqrt{2}+\sqrt{3}}{1+\sqrt{2}-\sqrt{3}}$

# ۵ ۰ لوګاريتم يا لوګاريتموس Logarithmus

په دې برخه کې د لوکاريتم کلمه ترڅېرنې لاندې نيسو او د لوګاريتم د قوانينود استعمال اسانتياوې، چې په کره يا په کلکه يې په نيونو (فرضيو) پاملرنه شوي وي څېړو ۰

۵ ۰ ۱ د لوګاريتم کلمه

موږ په دې برخه کې لوګاريتم تر څېړنې لاندې نيسو، د لوګاريتم د قوانينو اسانتياوې څېړو ، چې په نيونو يا فرضيو کې باید پوره پاملرنه شوې وي ۰د لوګاريتم $c = \log_b a$ پيژند لپاره د يوه زياتيز - يا مثبت عدد a يوه زياتيز - يا مثبت عدد b ته چې $b \neq 1$ او د لوګاريتم بنسټ بلل کيږي له لاندې برابرون يا مساوات څخه مخ ته ځو د په خوښه لپاره c

$$b^c = a \; ; a > 0; b > 0; b \neq 1 \qquad (5,1)$$

که a او b له مخه ورکړ شوي وي، نو د برخې ٤ سره یواځنی ټاکلی دی٠ که a او b له مخه ورکړشوي وي، نودپورتنیو نیونو سره یواځنی رییل ګڼc شته دی، چې برابرون(4,1) پوره کوي٠ دې ته د a لوګاریتم وایود b پر بنسټ:

پیژند ۵ ۰ ۱:

د ریلل مثبت ګڼ a لوګاریتم لاندې، چې له یوه سره نابرابر بنسټ bولري، هغه ریلل ګڼ c پوهیږو , له کوم سره، چې bد هغه په توان یا پوتنځ کړو او ګڼ a ترې لاس ته راشي٠ لکه (5,1)

د دې لپاره لیکو:

$$c = \log_b a; a > 0; b > 0; b \neq 1, .............(5,2)$$

(5,1) او (۲ ۰ ۵ ) یو ارزښت لري د دې لپاره، چې د لوګاریتم قوانین له (5,2) سره سم لاس ته راوړو، نو د(5,1) ته بیرته ورګرځو٠ دا به په لاندې بیلګه کې روښانه شي،په کوم کې چې له a,b,c څخه تل دوه ګڼونه ورکړ شوي دي

بیلګه ۵ ۰ ۱

۵ ۰ ۱ الف : له $2^x = 16$ لرو x=4 ، ځکه، چې $16 = 2^4$

ب له $3^x = \frac{1}{9}$ څخه لرو x=-2 ، ځکه چې $3^{-2} = 1/3^2 = 1/9 = \frac{1}{9}$

۵ ۰ ۱ ۰ ۲ الف: $2 = \log_x 36$ د x²=36 سره یو ارزښت لري، نو لروx=6

ب : $-6 = \log_x \frac{1}{36}$ د $x^{-6} = \frac{1}{64} = \frac{1}{2^6} = 2^{-6}$ سره یو ارزښت لري،

نو لرو2 $x = 2$

۵ ۰ ۱ ۰ ۳ الف : د $x = \log_5 125$ سره، یوارزښت لري، $5^x = 125 = 5^3$

نو3 $x = 3$

ب: د $x = \log_{\frac{1}{2}}(\frac{1}{16})$ $(\frac{1}{2})^x = 1/16 = (1/2)^4$

سره یو ارزښت لري، نو لرو4 $x= 4$

۳ ۰ ۱ ٤ الف د $5 = \log_3 x$ $3^5 = x$ سره یو ارزښت لري، نو $x=243$

ب : د $-5 = \log_2 x$ $2^{-5} = x$ سره یو ارزښت لري، نو لرو $x = \frac{1}{2^5} = \frac{1}{32}$

۵ ۰ ۱ ۰ ۵ الف $2 = \log_x(-6)$ تعریف نه دی یا پیژند نه لري۰

ب : $x = \log_{-5} 125$ پیژند نه لري یا تعریف نه دی

پ: $\log_1 x$ پیژند یا تعریف نه دی

له (5,1) او(5,2) څخه لاس ته راځي

$$a = b^{\log a}, \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(5,3)$$

$$\log_b 1 = 0, \log_b b = 1, \ldots\ldots\ldots\ldots(5,4)$$

.

د ځانګړي بنسټ لپاره لاندې سومبول کارولکیږي

$b = e = 2,71828 \Leftrightarrow b = 10$

$$\log_{10} a = \log a, \log_e a = \ln a, ................(5,5)$$

د lga لوګاریم ته لسیز لوګاریتم وایي او lna ته پیداینښتي یا طبیعي لوګاریتم وایي( e وروسته څیړو) زیات وخت د لشمیز لوګاریتم لپره داسې هم لیکو:

$$c= \log a \qquad (5,6)$$

که سومبولlog څو واره رامنځ ته شي، نو په پام کې دې وي، چې په خوښه، مګر همغه بنسټ باید وکارول شي۰

۵ ۰ ۲ د لوګاریتم قوانین

د لوګاریتم د پيژند سره سم د (5,1) او(5,2) له مخې کیدی شي د پوتنځ د قوانینو(5,3) تر(5,7) په مرسته لاندې لوګاریتم قوانین رابیل کړای شو، کوم چې په خوښه مګر همغه لوګاریتم بنسټ b |= 0 ، b>0 او د زیاتیز(مثبت) x> 0 , y > 0 لپاره باور لري

$$\log(x.y) = \log x + \log y, ......................(5,7)$$

$$\log \frac{x}{y} = \log x - loy, ...........................(5,8)$$

$$\log x^a = a \log x, a \in R, .......................(5,9)$$

$$\log \sqrt[n]{x} = \frac{1}{n} \log, n = 1, 2, ..., ............(5,10$$

د پوتنځ قوانینو له مخې د دې فرمولونو راوستل یو د وړاندیز وړ د لوګاریتم ژورې څیړنې لپاره تمرین ښایي

د بیلګې په توګه له ( ۷ ، ۵ ) همداسې

$$\log_b(x.y) = \log_b x + \log_b y, ..........................(5,11)$$

څخه په لاندې ډول او له (5,2)،(5,1 ) څخه لرو

$$c_1 = \log\ x, c_2 = \log_b y, c = \log_b(x+y), .................(5,12)$$

د لاندې سره یو ارزښت لري

$$b^{c_1} = x, b^{c_2} = y, b^c = x.y, ..............................(5,13)$$

له(5,13) او د پوتنځ قانون( 4, 2 ) پر بنسټ لرو :

$$b^c = x.y = b^{c_1}.b^{c_2} = b, \Rightarrow c = c_1 + c_2, .....................(5,14)$$

او له (5,11) همداسې د(5,7) ښوونه د (5,12) له امله د لوګاریتم د (5,7) تر(5,10)

قوانینو کیدی شي د پیچلي لوګاریتم له افادې څخه د لوګاریتم ساده بنستیزې افادې ته بیرته راوګرځو اوپه ځتې۰

بیلګه ۵ ۰ ۲

$$\log\frac{2\sqrt{a+b}\,a^3 b^2}{\sqrt[3]{c}(a+c)^2}$$

$$= \log 2 + \frac{1}{2}\log(a+b) + 3\log a + 2\log b - \frac{1}{3}\log c - 2\log(a+c)$$

بیلګه ۵ ۰ ۳

$$\log(a+b)+2\log(a-b)-\frac{1}{2}\log(a^2-b^2)$$
$$=\log\frac{(a+b)(a-b)}{\sqrt{a^2-b^2}}=\log\frac{(a^2-b^2)(a-b)}{\sqrt{a^2-b^2}}=\log[(a-b)\sqrt{a^2-b^2}]$$

اوس بايد وښايو، چې تر کومو شرايطو لاندې دا اړيکې باور لري۰

په بيلګه ۵ ۰ ۲ کې په کيڼ اړخ کې لوګاريتم ځاي لري، چې د ټولو a,b,c تعريف دی او لاندې برابرون پوره کوي يا ډکوي:

وي دې a+b>0 ( د دې لپاره ، چې ريښه تعريف وي او صفر نه شي، ځکه، چې بيا لوګاريتم اوبی يا حل نه لري۰

وي دې 0 < c ( د دې لپاره چې ريښه تعريف او ماتلاندې صفر نه شي)

وي دې $a+b\neq 0$ ( د دې لپاره، چې لوګاريتم تعريف وي)

وي دې $b\neq 0, a>0$ ( د دې لپاره، لوګاريتم تعريف وي)
د کيڼ اړخ لوګاريتم په ځانګړي ډول د a = 2 . b = -1 , c = 1 لپاره تعريف دی۰ په ښي اړخ کې ولاړ برابرون شکلبدلون يا څيره بدلون ريښتونی کيدی نه شي، ځکه چې Log بې ځايه دی ۰ د دې لپاره، چې د څيرې بدلون ريښتونوالی ممکن شي، بايد د $b\neq 0$ پر ځاي په ټينګه يا کره b>0, وغوښتل شي ۰

په بيلګه۵ ۰ ۳ کې کينه خوا يواځې هلتهموخه وره ده، چې وي:

a+b>0,   a-b>0

نو بيا a²-b² = (a+b)(a-b)> 0 او په دې بيلګ کې رامنځ ته شوي ټول لوګاريتمونه هم تعريف دي۰ دا اړيکې د ټولو a ، bلپاره هم باور لري،د کومو لپاره چېپورته نابرابرون ډک وي۰ دا کيدی شي a > - b , a > b له امله هم و|a >|b ته راغوند شي۰

دي ------------------------------------------------------------------------

ته دي هم ګوته نیولې وي، چې لوګاریتم په یوه بنسټ b یوه بل لوګاریتم یوه په خوښه بل بنسټd ته د شمیراوړون د شمیرنې اړول کیدی شي $(b>0, b\neq 1, d>0, d\neq 1, a>0)$

د(۵،۳) له مخې باور لري $a = b^{\log_b a}$

د دې برابرون لوګاریتم نیول و بنسټd ته لرو:

$$\log_d a = \log_d b^{\log_b a} = (\log_b a)(\log_d b), \ldots\ldots\ldots\ldots(5,15)$$

د

لسیز لوګاریتم اړول په پیدایینتي یا طبیعي لوګاریتم او په څنټ لپاره لیکو b=10, d = e همداسې b = e , d = 10 او لاس ته راځي :

Lga = (lge)(lna); …………………(16)

Lna=(ln10)(lga) = 2,30429lga;……(17)

$$\lg a = (\lg e)(\ln a), \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(5,16)$$
$$\ln a(\ln 10)(\lg a) = 2,30429 \lg a, \ldots\ldots\ldots\ldots(5,17)$$

|  | د لوګاریتم فنکشن یا بلواک او دیاګرام یې |
|---|---|

$$b^{\log_b n} = n$$

$$\log_b b^x = x$$

تکرار د نورو تورو سره

د یوه ځل لوګاریتم

$$\log_b (n \cdot m) = \log_b n + \log_b m$$

$$\log_b \frac{n}{m} = \log_b n - \log_b m$$

د پوتنځ لوګاریتم

$$\log_b n^m = m \cdot \log_b n$$

د ریښي لوګاریتم

$$\log_b \sqrt[m]{n} = \frac{1}{m} \log_b n$$

د لوګاریتم یو په بل بدلیدل

$$\log_b n = \log_b d \cdot \log_d n$$

د کوما یا لسمیزمات نخښۀ وروسته بینارځایونه ó او لسمیزسیستم

--------------------------------------------------------------------------------

| | binär | dezimal |
|---|---|---|
| $2^{-1}$ | 0,1 | 0,5 |
| $2^{-2}$ | 0,01 | 0,25 |
| $2^{-3}$ | 0,001 | 0,125 |
| $2^{-4}$ | 0,0001 | 0,062.5 |
| $2^{-5}$ | 0,0000.1 | 0,031.25 |
| $2^{-6}$ | 0,0000.01 | 0,015.625 |
| $2^{-7}$ | 0,0000.001 | 0,007.812.5 |
| $2^{-8}$ | 0,0000.0001 | 0,003.906.25 |
| $2^{-9}$ | 0,0000.0000.1 | 0,001.953.125 |

## ۵ . ۰ ۳ ټولګه

لوګاریمتم د اکسپوننشل فنکشن یا بلواک په څېړ بلواک دی

$x = \log_b n \iff b^x = n$

د $a,b,x,y,d, > 0$ رییل ګڼونواو $a, b, d \neq 1$ لپاره باور لري:

$c = \log_b a \Leftrightarrow b^c = a, b^{\log_b a} = a, \log_b 1 = 0, \log_b b = 1, b \neq 1$

$\log_{10} a = \lg a, \log_e a = \ln a, e = 2,71828.....$

$\log(x.y) = lox + \log y, \log \frac{x}{y} = lodx - \log y,$

$\log x^{\alpha} = \alpha, \alpha \in R, \log \sqrt[n]{x} \frac{1}{n} \log x, n = 1,2,3,....$

$\log_b a = (lod_b d)(.(\log_d a),$

$\lg a = (\lg e).(\ln a) = 0,43429 \ln a, \ln a = (\ln 10).(\lg a) = 2,30259 \lg a$

## ۵ . ۴ – تمرینونه

۱ . د د لوګاریتم تعریف

دلوګاریتم تعرف وکاروئ یا استعمالکړئ او x وټاکئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 1.1. | a) $\log_7 49 = x$ | b) $\log_3 1 = x$ | c) $\log_5 \sqrt[6]{25} = x$ | d) $\log_{0,5} \frac{1}{32} = x$ |
| 1.2. | a) $\lg \frac{1}{10} = x$ | b) $\lg 10^{-\frac{1}{3}} = x$ | c) $\lg \sqrt[3]{100} = x$ | d) $\lg \sqrt{\frac{1}{10}} = x$ |
| 1.3. | a) $\log_x 8 = 3$ | b) $\log_x 25 = 2$ | c) $\log_x 243 = 5$ | d) $\log_x 1024 = 10$ |
| 1.4. | a) $\log_x 4 = \frac{1}{2}$ | b) $\log_x \frac{1}{5} = -1$ | c) $\log_x \sqrt{10} = \frac{1}{2}$ | d) $\log_x \frac{1}{32} = -5$ |
| 1.5. | a) $4^x = 64$ | b) $64^x = 64$ | c) $9^x = 3$ | d) $8^x = 4$ |
| 1.6. | a) $2^x = \frac{1}{8}$ | b) $3^x = \frac{1}{27}$ | c) $5^x = 0{,}04$ | d) $10^x = 0{,}0001$ |
| 1.7. | a) $\lg x = 3$ | b) $\lg x = -2$ | c) $\log_2 x = 6$ | d) $\log_{0,5} x = 4$ |
| 1.8. | a) $\ln x = 2$ | b) $\ln x = \frac{1}{2}$ | c) $\ln x = -1$ | d) $\ln x = 0$ |

۲ . د لوګاریتم قوانینو استعمال دلوګاریتم قوانیناستعمال کړئ دو د a,b,c,d,m,n باور لرلو ورشو کره وټاکئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 2.1. | a) $\lg 2^4$ | b) $\lg \left(\frac{1}{2}\right)^3$ | c) $\lg \sqrt{10}$ | d) $\lg \sqrt{\frac{1}{100}}$ |
| 2.2. | a) $\ln \left(\sqrt{e}\right)^3$ | b) $\ln \sqrt{e^{3(\ln e^2 + \ln e^6)}}$ | c) $\ln \sqrt{\frac{1}{\sqrt[3]{e^2}}}$ | d) $\ln \sqrt{\frac{5e}{e^{\ln 5}}}$ |
| 2.3. | a) $\lg \sqrt[7]{a^5}$ | b) $\lg \frac{a^2 b^3}{c}$ | c) $\lg \sqrt[3]{\frac{ac^2}{bd}}$ | d) $\lg \frac{a^2\sqrt{b}}{\sqrt{a^5 b^3}}$ |
| 2.4. | a) $\lg (a^4 - b^4)$ | b) $\lg (a^2 + b^2)^2$ | c) $\lg \frac{(a^2 - b^2)^2}{a^4 - b^4}$ | d) $\lg \frac{a^2 - b^2}{(a^2 + b^2)^2}$ |
| 2.5. | a) $\log \sqrt{\frac{1-a}{1+a}}$ | | c) $\ln \frac{\sqrt{a} \cdot b^{-2}}{\sqrt[3]{c} \cdot d^{-3}}$ | |
| | b) $\lg \sqrt[n+1]{a^n \cdot \sqrt[m]{b^{-1}}}$ | | d) $\log 2 \sqrt{3 \cdot \sqrt[3]{a^2 b \cdot \sqrt[4]{ac^2}}}$ | |

---

2.6. a) $\frac{1}{3}\log(a+b)+\frac{1}{3}\log(a-b)^{-1}$

b) $\lg a + n\lg(a+b) + n\lg(a-b)$

c) $\lg a - \frac{1}{2}\lg b + \frac{4}{3}\lg c$

d) $\frac{1}{3}\lg(a^2-b^2) - \frac{1}{2}\lg(a-b) - \frac{1}{2}\lg(a+b)$

2.7. a) $\frac{1}{3}\lg a + \frac{1}{3}\left\{\frac{1}{2}\lg(a+b) + \frac{1}{2}\lg(a-b) - \lg a - \lg b\right\}$

b) $\frac{1}{2}\lg(a^2+b^2) - \frac{1}{3}\{\lg(a-b) + \lg(a+b)\}$

c) $\frac{1}{3}(\lg a + 3\lg b) - \frac{1}{2}(4\lg c - 2\lg d)$

d) $\frac{1}{2}\ln\left(\frac{b}{a}+\sqrt{\frac{b^2}{a^2}-1}\right) - \frac{1}{2}\ln\frac{1}{b-\sqrt{b^2-a^2}} + \ln\sqrt{a}$

۳ . د لوګاریتم بنستیز فرمولونو استعمال.

x وشمیرئ.

3.1. a) $x = \lg 5 \cdot \lg 20 + (\lg 2)^2$

b) $x = 2 \cdot 10^{2\lg 2}$

c) $x = 3 \cdot 10^{-2\lg 3}$

d) $x = \left(100^{\frac{1}{2}\lg 49}\right)^{\frac{1}{2}}$

3.2. a) $x = \sqrt{10^{2+\lg 9}}$

b) $x = \sqrt[3]{10^{4-\frac{1}{2}\lg 100}}$

c) $x = \sqrt[3]{10^{\frac{1}{2}(\lg 2 + \lg 32)}}$

d) $x = \sqrt{\sqrt{10}^{\lg 16}}$

3.3. a) $x = \ln\frac{7{,}63}{\sqrt{e^3}}$

b) $x = \ln\frac{0{,}23}{2e^2}$

c) $x = \left\{\left(\sqrt[3]{e}\right)^2\right\}^{\ln 8}$

d) $x = \left(\sqrt{e}\right)^{3\ln 5}$

## ٦ ۰ ګونومتري ( کونجکچ یا مثلثات (Gonometry

دا برخه هم د ښوونځي له امله یو تکراري خوي لري. ددې وظیفه به داوي چی د کونجکچ
چېکتیاته ( ګونومتري شمیرنی ته) په ګراد- او لینده کچ، دکونجفنکشن په استعمال د
ولاړکونجیز - او عمومي درېګوډیود تریګونومتري فرمولونو په استعمال د تریګونومتري
افادو په ځیره بدلون ته پر مختګ ورکړي یا پر مخ بوزي. غواړم چی د بنسټیزې هندسي
کلیمی او قوانین مو د هرڅه له مخه مخ ته پراته وي . خو سره له دې به هم ددې کتاب
لوستونکی د بنسټیزې هندسی سره بلد وي ۰ زه به کوښښ وکړم چی ځنی هندسي
کلیمی،کم له کمه په ځیره کی ګرانو لوستونکو ته، په مناسب ځاي کی وړاندې کړم یا
بهتره په پښتو ونوموم .

### ١ ۰ ٦ بنسټیزه هندسه

#### ٦ . ١ . ١ ټکی او کرښه point (stright) line

ټکی او کرښه د بنسټیزې هندسی مهمی بنسټیزې کلیمی دي. دا ابسترکتی( خیالي، فکري ،
نه لیدیدونکی) کلیمي په خورا ټیك راوړوندود هم نه شي تعریف کیدی، مګر ددوي ترمنځ
موجودې اړیکي کیدی شي په شمیرنه کی په خورا زیاتو ډولونو استعمال شي، ٦

---

سره له دې هم هڅه کيږي چې ټکی او کرښه ليدوړ وګرځول شي لکه څنګه چی په ۴ . ١ - امه برخه کی پيښ شوي. دلته کرښي په g ښوول شوي او غشی يی ناپای پراخوالی په ګوته کوي. دا د غشي انځورونه دکرښی په انځورونه کی پرېښول کيږي يعني نه انځوريږي، که دا مو و ناريښتياو ته ونه هڅوي ٠ ټکی کيدی شي د دوه کرښو غوځځاي په ځير ونيوله شي ) ځيرې په غور وګورئ



A ray وړانګه

g کرښه

(stright line

بند کرښه يا ټوټه کرښه Line segment



A B



دوه کرښې په ټکی کې سره غوڅوي

د بيلګي په توګه لاندې ويناوې باور يا صدق لري

- ددوه ټکو له لارې يوه کرښه ټاکل کيږي( پورته ځيره وګورئ)، چی دا کرښه دا ټکي خوندي ساتي يا پخپل بر کی لري .

- دوه ناغبرګي او په يوه هواره کی پرتی کرښی يو بل ټيك په يوه ټکي کی سره غوڅوي (پورته ځيرو کې کتل کيږي)

يوه وړانګه $s_1$ له يوې لور په يوه ټکي A بنده کرښبرخه ده ) ( او يوه پايکرښه له دوه ټکو A او B بنده يا راګير کرښه ده )

## ٦ . ١ . ٢ کونج angle یا زاویه

که یوه وړانګه $s_1$ د خپل پیلځاي څخه په S و خپل اخر ځاي $s_2$ ( څیره ۴ . ۲الف ) ته یووړه شي، نو دا وهل شوې هواره دننني هواره، $s_1$ او $s_2$ پښې او په همدې ډول د S کونج $\alpha$ (الفا) ککره بلل کیږي.




که څرخون د ساعت نخښې په څټ یا مخامخ وي نو دا څرخونلورمثبت یا زیاتیزه او همداسې کونج مثبت یا ز یاتیز کونج بولو او بل ډول څرخونلور یې منفي- یا کمیز کونج بلل کیږي.

په مخامخ ه کې سور په نخښه شوی کونج ننوتی او زرغون په نخښه شوی کونج وتلی کونج دی

کیدی شي چې یو کونج x په ګراد اندازه شي

$$x = a° \qquad (6.1)$$




په داسې حال کې چې ولاړکونج، کوم چې یو په بل ولاړې کرښې $g_1 \wedge g_2$ (او ته دې پام وي یې جوړوي، له 90° سره مساوي وښایو(لاندې څیره ، که نورېڅیرې و نه کښل شوې) . کیدی شي چې کونج x (ایکس دلته د الفا په ځاي دی، توري پروانه لري، چې کوم وي)په لینده اندازه هم ورکړ شي

$$x = b \qquad (6.2)$$

## ۷ ۰ ګډوله ګڼونه یا کمپلیکس اعداد Komplexe Zahlen

د مخه مو ولیدل، چې څنګه یوه ګڼدیرۍ پر بله ګڼدیرۍ ودانه شوې ده۰ که ولرو

$$x^2 + 1 = 0 \Leftrightarrow \quad x^2 = -1 \qquad (7,1)$$

که پورته برابرون ته وګورو، نو څرګند لیدل کیږي، چې دا په رییلګڼونديرۍ کې اوبی یا حل نه لري، نو له دې امله باید ( 7 , 1 )د ګڼنو ډیرۍ وغزول شي۰ له

$$x_1 = \sqrt{-1}, x_2 = -\sqrt{-1}, .........(7,2)$$

د $\sqrt{-1}$ ګڼ، چې د لومړي ځل لپاره د رییل مانانه لري، دا سومبول د $i = \sqrt{-1}$

ټاکل کیږي چیرته، چې لرو: $i^2 = -1$ د

$$x_1 = i, x_2 = -i \Leftrightarrow x_{12} = \pm i, ..................(7,3)$$

-----------------------------------------------------------------------------------

ليکو : دا پورته د لاندې سره

$$i^2 = -1 \qquad (7,4)$$

د (7,1) ځاي نيسي، ځکه، چې باور لري

$$x_1^2 = i^2 = -1 \Leftrightarrow x_2^2 = i^2 = -1$$

دا چې i رييل مانا نه لري، نو دې سومبول ته ايماجينارګڼ imaginär( لاتين: فقط خيالي)يوون(واحد)وايو.

برابرون

$$x^2+a = 0 \quad \Leftrightarrow \quad x^2 = -a \quad , a > 0 \qquad (7,5)$$

کيدی شي په لاندې ډول وليکل شي

$$x_1 = \sqrt{-a} = \sqrt{a}.\sqrt{-1} = \sqrt{a}.i, \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(7,6)$$
$$x_2 = -\sqrt{-a} = -\sqrt{a}.\sqrt{-1} = -\sqrt{a}.i$$

دلته د(7,4) له امله باور لري

$$x_1{}^2 = ai^2 = -a, x_2{}^2 = (-\sqrt{a})^2 i^2 = -a, \ldots\ldots\ldots\ldots(5,7)$$

اوس د ايماجينار ګڼ يوون(واحد) ټوليز کوو

$$z = bi, b \in R, i^2 == -1, \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(5,8)$$

ايماجيناريوون(واحد)i =z يو ځانګړی ايماجينارګڼ b=1 دی

د ټوليزې څلوری (عمومي مربع) برابرون(مساوات) اوبی(حل) :

$$x^2 + px + q = 0, p, q \in R, \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(7,9)$$

په لاندې ډول د څلورې پوره کولو یا مربع تکمیلول له لارې

$$(x + p/2)^2 = x^2 + px + p^2 / 4$$

لاس ته راځی یالرو=>

$$x^2 + px + q = (x + p/2)^2 = +(q - p^2/4) \qquad (7,10)$$

$$(x + p/2)^2 = p^2/4 - q \qquad (7,11)$$

او که فورمال پسی وګڼل شي

$$(x + p/2)_{1,2} = \pm\sqrt{p^2/4 - q}$$

نو لرو

$$x_{12} = -\frac{p}{2} \pm \sqrt{p^2/4 - q}, \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(7,12)$$

د $p^2 = 4q$ لپاره رییل «ډبل» اوبی یا حل لاس ته راځي

$$x_1 = x_2 = -\frac{p}{2}$$

که $p^2 > 4q$ وي نو(7,12) دوه مختلف رییل اوبیوني یا حلونه منځ ته راوړي.

که $P^2 < 4q$ وي، نو رییل اوبی نه شته دی

د ایماجینار ګڼ په مرسته کیدی شي ولیکو

$$\sqrt{\frac{p^2}{4} - q} = \sqrt{[q - \frac{p^2}{4}](-1)} = \sqrt{q - \frac{p^2}{4}}.i$$

که اوس ځاي پر ځاي کړو

$$-\frac{p}{2} = a \in R, \sqrt{q - p^2/4} = b \in R$$

نو په لاندې بڼه دوه اوبيونې یا حلونه لاس ته راځي

$$x_{1,2} = a \pm bi; a, b \in R$$

د دې فورم یا بڼې ګڼونه کمپلکس ګڼونهKomplexe Zahlen (لاتين: پوره کوونکي - یا پوره کيدونکي-) بلل کيږي

$$z = a+bi\ ,\ i^2 = -1;\ a,b \in R \qquad (7,13)$$

د کمپلکس ګڼونوډيرئ په C سره په نخښه کوو

$$\bar{z} = a - bi, .................................. (7,14)$$

دا پورته (7,14) و(7.13) ته کنجوګيري کمپلکس ګڼ بلل کيږي٠ لنډ کنجوګيري کمپلکس ګڼ یا اوښتی ګڼ

$$|z| = \sqrt{a^2 + b^2}, .............................. (5,15)$$

د دې مطلقه یا ساده ارزښت

$$a = re(z) \Leftrightarrow b = Im(z) \qquad (7,16)$$

د دې رییل همدا رنګه ایماجینار برخه

دوه کمپلکسګڼونه برابر بلل کيږي، که دوي په رییل او ایماجینار برخه کې يو له بل سره برابر وي:

$$a_1 + b_1 i = a_2 + b_2 i \Leftrightarrow a_1 = a_2, b_1 = b_2$$

موږ تل په پام کې لرو، چې$i^2 = -1$ اینبول شوې

ګډوله یا کمپلکس عدد کیدی شي په سطحه یا هاره کې د لاندې شکل سره سم( د ګاوس د اعدادوسطحه). سړی د کمپلکسو اعدادو سره همغسې شمیرنه کوي، لکه د حقیقي اعدادو سره او په پام کې نیسي چې:$i^2 = -1$



Bild 5.1

موږ دې سیستم ته پروت ولاړ سیستم وایو یا کواوردیناتسیستم Koordinaten systm

پورته ځیره دې وکتل شي

پروتولاړ سیستم ته د (x,y) - سیستم هم وایي په پروتولاړ سیستم کې پروت څرخون( محور ) د x - محور ته د هوارې یاسطځي ریبلبرخه او ولاړ محور یا د y – محور ته يېایماجینار برخه وایي لکه ښنګه، انځور شوي دي۰ په دې توګه په پروتولاړ سیستم کې یو ټکی منځ ته ر اځي، چې کمپلکس ګڼ انځوروي۰(موږ دا اوس دا برخه نوره نه ځیړو، خو دا د وکتورونو په ډول انځوریږي او کارونی یا عملي يې هم همداسې دي، لکه د ورسره بلدو وکتورونو) یادونه : هغه ګران هیوادوال، چې نوي د شمیرپوهنی د دې برخې سره بلدیږي، د هغو لپاره دې په دا لومړي ځل ځني وییونه یا لغاتونه یاکلمې په پام کې نه راځی، لکه د وکتور کلمه، خو دا پورته یا لاندې ځیرو کې کتلی شو، چې د کمپلکس ګڼونو زیاتون او کمون ښنګه دی

۷ ۰ ۱ زیاتون او کمون:

لاندې ښیرو ته دې پام وي او ګورو، چې رییل برخه او ایماجینار برخه د Re(z) او Im(z) سره په نخښه شوي دي

$$z_1 \pm z_2 = (a_1 + b_1 i) \pm (a_2 + b_2 i) = (a_1 \pm a_2) + (b_1 \pm b_2), .......(7,17)$$

بیلګه ۷ ۰ ۱ ورکړ شي:

$$z_1 = 2 - 3i, z_2 = 3 + 2i$$
$$\Rightarrow z_1 + z_2 = 5 - i, z_1 - z_2 = -1 - 5i$$
$$\Rightarrow$$
$$|z_1| = \sqrt{2^2 + 3} = \sqrt{13}, |z_1| = \sqrt{13}$$
$$-z_1 = -2 + 3i, -z_2 = -3 - 2i$$

زیاتون یا جمعه ( او په همدې توګه کمون یا تفریق یعنې د( z2-) په زیاتون)کیدی شي د ښېرې ۵ ( په همدې توګه د ښېرې ۷ . ۳) د ګراف له لارې هم ښوول شي.



Bild 5.2 7.2 ښېره



Bild 5.3 7 ښېره

--------------------------------------------------------------------------------

یا لاندې:




په پورته او لاندې ځیرو کې د کملپکس ګڼونو د زیاتون او کمون انځور لیدلکیږي٠




**دکملپکس ګڼونو ارزښت**

د وکتورz اوږدوالی د کملپکس ګڼونو ارزښت بلل کیږي٠

دا د په |z| سره ښايو او د پیتاګوراس( فئثاغورث) د جملې

سره ښوول کیږي، د دې لپاره دې پورته اخرنی لیکه

هم وکتل شي٠ مخامخ ځیره موږ ته د کمپلکس ګڼ

د ارزښت انځور ښايي




$|z| = |a+bi| = \sqrt{a^2+b^2}$.

په درې ګوډي کې د اړخونو ځانښيونه يا تباسب له امله باور لري

$$||z_1|-|z_2|| \le |z_1+z_2| \le |z_1|+|z_2|, ..............(7,18)$$

برسيره پر دې باور لري:

$$\overline{z_1+z_2} = \overline{z_1} \pm \overline{z_2}$$

۷ . ۲ د کمپلکس ګڼونوځل:

د ورسره بلد نوک اينوولو له لارې لاس ته راځي

$$(a_1+b_1i)(a_2+b_2i) = a_1a_2 + a_1b_2i + b_1a_2i + b_1b_2i^2$$
$$= a_1a_2 + a_1b_2i + b_1a_2i + b_1b_2(-1)$$
$$\Rightarrow$$

نو بارورل ري

$$(a_1+b_1i)(a_2+b_2i) = (a_1a_2 - b_1b_2) + (a_1b_2 + a_2b_1)i \qquad (7,20)$$

ګران لوستونکی به زما په ستونځو پوه شي، چې لاتین توري په بدل ډول لیکل شوي، چې دا هم زما تخنیکي ستونځې دي، دا که په هرځایکې وي،دا به راته ګران د شمیرپوهنې مینه وال وبخښي٠ دا لاندې هم ساده ازمایل کیدی شي

$$\overline{z_1.z} = z_1.z_2 \quad , \quad |z_1 .z_2| = |z_1||z_2| \qquad (7,21)$$

بیلګه ٧ ٠ ٢

د $z.\bar{z} = (a+bi)(a-bi) = a^2+b^2+(-ab+ab)i = a^2+b^2$

او (١٥ ، ٧ ) له امله لاس ته راځي:

$$\Rightarrow \quad z.\bar{z} = |z|^2 \qquad (7,22)$$

٧ ٠ ٣ ویش

$$z_1 : z_2 = (a_1+b_1 i):(a_2+b_2 i) = \frac{z_1}{z_2} = \frac{a_1+b_1}{a_2+b_2}$$

$$\frac{z_1}{z_2} = \frac{z_1\bar{\bar{z}}_2}{z_1\bar{z}_2} = \frac{(a_1+b_1 i)(a_2-b_2 i)}{(a_2+b_2 i)(a_2-b_2 i)} = \frac{(a_1a_2+b_1b_2)+(a_2b_1-a_1b_2)i}{a_2^2+b_2^2}$$

$$z_1 : z_2 = \frac{z_1}{z_2} = \frac{a_1+b_1 i}{a_2+b_2 i} = \frac{a_1a_2+b_1b_2}{a_2^2+b_2^2} + \frac{a_2b_1-a_1b_2}{a_2^2+b_2^2} i \qquad (7,23)$$

---

په دې پسې لاس ته راځي

$$|\frac{Z_1}{Z_2}|=\frac{|Z_1|}{|Z_2|},\left(\overline{\frac{Z_1}{Z_2}}\right)=\frac{\overline{Z_1}}{\overline{Z_2}} \qquad (7,24)$$

بېلګه ۷ . ۳ :

د ( ۷ . ۲۴ ) د دوهمې برخې ښوونه:

$$\frac{\overline{Z_1}}{\overline{Z_2}}=\frac{\overline{Z}_1.Z_2}{\overline{Z}_2.Z_2}=\frac{(a_1-b_1i)(a_2+b_2i)}{(a_2-b_2i)(a_2+b_2i)}=$$

$$=\frac{(a_1a_2+b_1b_2)+(a_1b_2-a_2b_1)i}{a_2^2+b_2^2}=$$

$$=\frac{a_1a_2+b_1b_2}{a_2^2+b_2^2}-\frac{a_2b_1-a_1b_2}{a_2^2+b_2^2}i=\overline{\left(\frac{Z_1}{Z_2}\right)}$$

بېلګه ۷ ۰ ٤ :د Z1 او Z2 لپاره له سره سم لاس ته راځي:

$$Z_1:Z_2=\frac{Z_1}{Z_2}=\frac{2-3i}{3+2i}=\frac{(2-3i)(3-2i)}{(+2i)(3-2i)}=\frac{(6-6)-(4+9)i}{3^2+2^2}=\frac{13}{13}i=-i$$

۷ . ۴ . تمرینونه

۱ - مېلق یا همغه ارزښتونه او انځورونه

۱ . ۱ – لاندې په اریتمیتیکي یا شمیرنیزه توګه ورکړ شوي ورکړ شوي کمپلکس عددونه په ګاوس سېحه کې انځور کړئ! د دې عددونو مېلقه ارزښتونه وشمیرئ.

a) $z=1-i$ b) $z=\sqrt{2}+\sqrt{2}i$

c) $z=2(1-\sqrt{3}i)$ d) $z=-1-i$

۱ . ۲ – د ګاوس د عددونو سطحه کې د هغو لاندې مخلوط یا کمپلکس عددونو ځای ورکړئ، د کومو لپاره چې باور لري:

a) $|z|=\sqrt{2}$ b) $|z|<\sqrt{2}$ c) $|z|>\sqrt{2}$ d) $|z|=r$

۲ – جمعه او تفریق(زاتون او کمون)

۲ . ۱ – د شمیرنې او کاږنې یا رسم کونې له لارې پیدا کړئ

a) $(1+2i)+(2+i)$ b) $(-2+i)+1-2i)$

c) $(1-2i)-(1-2i)$ d) $(-1-2i)+(2-i)$

۲ . ۲ - د شمیرنې او کاږنې یا رسم کونې له لارې پیدا کړئ

a) $(22+5i)+(2+i)$ b) $(3+2i)-(5+2i)$

c) $(1+2i)-(1+2i)$ d) $i-(1-2i)$

۳ . ضرب(ځل) او وېش:

په لاندې کې a,b,c,d,x,y حقیقي ګڼونه دي.

۳ . ۲ – وشمیرئ

a) $(2+\sqrt{3}\,i).(3-\sqrt{2}i)$ b) $(3+2\sqrt{2}\,i).(3-2\sqrt{2}\,i)$

c) $(1+\sqrt{5}\,i).(1-\sqrt{5}\,i).(13-12i))$ d) $\sqrt{3+\sqrt{7}i}.\sqrt{3-\sqrt{7}i}$

۳ . ۲ – وشمیرئ

a) $(x+y\,i)(2x+yi)$ b) $(\sqrt{x}+\sqrt{y}\,i)(\sqrt{x}-\sqrt{y}\,i)$

c) $\left(\frac{2}{3}a-3bi\right)\cdot\left(\frac{4}{3}a+5bi\right)$ d) $(c-\sqrt{d}\,i)(-c-2\sqrt{d}\,i)$

۳ . ۳ – د لاندې ماتونو مخرج یا ماتلاندې حقیقي ورګرځوئ ( a ، b حقیقي دي)

3.3.1. a) $\frac{\sqrt{3}-\sqrt{2}\,i}{\sqrt{3}+\sqrt{2}\,i}$ b) $\frac{1-20\sqrt{5}\,i}{7-2\sqrt{5}\,i}$

c) $\frac{56+33i}{12-5i}$ d) $\frac{63+16i}{4+3i}$

3.3.2. a) $\frac{5i}{\sqrt{2}-\sqrt{3}\,i}$ b) $\frac{3-27\sqrt{5}\,i}{7-3\sqrt{5}\,i}$

c) $\frac{i-\sqrt{3}}{\sqrt{3}\,i-2}$ d) $\frac{i}{8-i}(i+1)$

3.3.3. a) $\frac{3a+4bi}{4a-3bi}+\frac{4a-3bi}{4a+3bi}$ b) $\frac{\sqrt{a}+\sqrt{b}\,i}{\sqrt{a}-\sqrt{b}\,i}-\frac{\sqrt{b}+\sqrt{a}\,i}{\sqrt{b}-\sqrt{a}\,i}$

c) $\frac{\sqrt{1+a}+\sqrt{1-a}\,i}{\sqrt{1+a}-\sqrt{1-a}\,i}-\frac{\sqrt{1-a}+\sqrt{1+a}\,i}{\sqrt{1-a}-\sqrt{1+a}\,i}$

d) $(5-i)\,(6-i)+\frac{5-i}{6-i}$

۴ . سره رایوځی شوې پوښتنې

ګډوله ګڼونه یا اعداد ورکړ شوي.

$z_1=\frac{1}{2}\sqrt{3}-\frac{i}{2}$ او $z_2=-\frac{1}{4}-\sqrt{3}\frac{i}{4}.$

۳ - د لوګاریتم بنسټ فرمولونو استعمال. په لاندې تمرینونوکې x وشمرئ.

$z_1=\frac{1}{2}\sqrt{3}-\frac{i}{2}$ und $z_2=-\frac{1}{4}-\sqrt{3}\frac{i}{4}.$

وشمیرئ:

4.1. a) $z_1 + z_2$ b) $z_1 - z_2$ c) $z_1 \cdot z_2$ d) $\frac{z_1}{z_2}$

4.2. a) $|z_1|$ b) $|z_2|$ c) $\bar{z}_1 \cdot \bar{z}_2$ d) $\frac{\bar{z}_1}{\bar{z}_2}$

4.3. a) $|z_1 + z_2|$ b) $|z_1 - z_2|$ c) $\bar{z}_1 + \bar{z}_2$ d) $\bar{z}_1 - \bar{z}_2$

4.4. a) $|z_1| \cdot |z_2|$ b) $\frac{|z_1|}{|z_2|}$ c) $|z_1 \cdot z_2|$ d) $\left|\frac{z_1}{z_2}\right|$

۴ . ۵ – د لاندې مربع مساواتو حلونه ورکړئ!

a) $x^2 + (1 + i)\,x - 2\,(1 - i) = 0$

b) $x^2 + (3 - 2i)\,x + 3\,(1 - i) = 0$

c) $x^2 - \frac{i}{2}\,\sqrt{2}\,x + 1 = 0$

d) $16\,x^2 + 8\,(i + 1)\,x + 2\,(i + \frac{9}{2}) = 0$

## ۸ - د ښوونې(ثبوت) متودونه

په شمیرپوهنه کې داسې مخ په وړاندې ځو، چې د ځینو نیونو یا فرضیو په فرمولولو سره، غوښتنو یا ښوونو او یا لکه تراوسه د ثبوتولو پرابلم ( د ګڼپوهنې جملې په څیر) منځ ته رااچوو، چې دا نیونې او غوښتنې وېناوې دي۰ په جملو کېد دې ماتماتیکې یا شمیرپوهنیزه تړنه بیا ایمپلیکیشن یا لاس ته راوړنه ده( مخ ته دې وکتل شي)یانې A => B دا غوښتنه د رښتیا ارزښت w غوښتنه B کې نغښتې او دا اوبی یا حل B له V او د دې تراوسه اوبی- یا حل شوو جملو لاس ته راځی۰ د دې لاس ته راوړنو لپاره بیلابیلې لارې شته ، چې په لاندې کې یې څېړو

### ۸ ۰ ۱ سیده یاسیخه (مستقیمه) ښوونه

په سیده ښوونه ( ثبوت) کې سړی له یوې وینا A څخه مخ ته ځي، چې رښتیاارزښت یې څرګند دی او په دې لاس ته راوړنې پسې د B وینا لاس ته راوړي۰

دا وینا B هم رښتیا ده، ځکه چې له یوې رښتیا پریمیسې Prämisse (نیونې یا فرضیې) څخه رښتیا کونکلوزیون Konklusion ( لاس ته راوړنه یا نوره هم ښه ښوونه یا ثبوت)( د اینمپلیکیشن ۱ او ۲ لیکه د رښتیاارزښت په جدول کې ) له یوې رښتیا پریمیسې څخه د نارښتیا کونکلوزیون لاس ته راوړنې نارښتیا دي ( ایمپلیکیشن رښتیا ارزښت ۲ ــم جدول)۰

بيلګه : سيده اوبيونه يا حل:

نيونه V : $x \geq 1$

غوښتنه B : $6x+3 \geq 3x + 6$

اوبی : وينا A ، چې رښتيا ارزښت w يې جوت دی، نيونه يې $x \geq 1$ ده۰ له 3 سره ځل له امله لاس ته راوړنې لرو چې په لاندې ډول دی: $3x \geq 3$ : د 3 زياتون له لارې لرو: $3x + 3 \geq 6$ د 3x زياتون له امله لاس ته راځي:

$6x + 3 \geq 3x+6$.

بيلګه:

د يوه ناتيک اوبيونې يا حل کارونه ( متود)

د ښوونې دی $\frac{a+b}{2} \geq \sqrt{a.b}$

د ښوونې وړ وينا څخه لاندې لاس ته راوړنې لرو:

$$(a+b)^2 \geq ab$$

$$a^2+b^2+2ab \geq 4ab$$

$$a^2 -2ab+b^2 \geq 0$$

$$(a-b)^2 \geq 0$$

لاس ته راوړل شوې ويناوې $(a-b)^2 \geq 0$ بې بنديزه رښتيا دي۰ مګر دا د ښوولو وينا يواځې د شرايطو $a \geq 0, b \geq 0$ لاندې باور لري۰ له دې امله که له رښتيا وينا څخه غوښتل شوې يا د ښوولو ويناو ته نه شي راتلی( سيده ښوونه) او په ناسداره يا غيرمستقيم ه ښوونه يا اوبيونه باندې استعمال شي نو ګټوره به وي، چې په لاندې توګه تر څېړنې لاندې ونيول شي۰

۸ ۰ ۲  ناسيده ښوونه يا - ثبوت:

په ناسيده ښوونه کې  له يوه نفي يا نيګيشن يا نه والي څخه مخ ته ځو، چې A « ناغوښتنه» او له دې يوه وينا B  لاس ته راوړل کيږي، کومه چې  نارښتيا ده۰ وينا  يعنې نفيې غوښتنه يا  ثبوت هم نارښتيا دئ، ځکه چې له يوې نارښتيا نيونې څخه يوه نارښتيا ښوونه يا ثبوت لاس ته راتلی شي(  د ايمپليکيشن څلورمه کرښه).

له يوې رښتيا نيونې څخه د يوې نارښتيا ثبوت لاس ته راوړنه نارښتيا ده۰ (د ثبوت  د

رښتيا جدول څخه) که د غوښتنو نفی نارښتيا وي، نو غوښتنه بيا په دې اوبيونې يا حل کې رښتيا ده۰

بيلګه : ناسيده ښوونه يا ثبوت

نيونه  V  : a , b دې رييل ګڼونه وي او وي دې:  $a \geq 0, \quad b \geq 0$

ښوونه  يا  غوښتنه  B :

$$\frac{a+b}{2} \geq \sqrt{ab}$$

اوبيونه : د غوښتنو نفيې ده   $\frac{a+b}{2} \prec \sqrt{a.b}$

د پورته نابرابرون له څلورئ يا مربع کولو  له امله لاس ته راوړنه لرو:

$$(a+b)^2/4 < a.b$$

دواړه لورې له څلورو سره  ضربوو، نو لاس ته راځی

$$(a+b)^2 < 4a.b$$

له څلورئ وتنې يامربعوتنې څخه لاس ته راځي:

$$a^2+b^2+2ab < 4ab$$

په دواړو لورو د 4ab کموني څخه لاس ته راځي

$$a^2-2ab+b^2 < 0$$

د نابرابرون کینه لور د څلورئ ۰ مربع په بڼه لیکل کیدی شي او هیڅکله له صفر څخه نه شي کوچنی کیدی۰ دا په دې مانا، چې $(a+b)^2 < 0$ نارښتیا دی یا غلط دی، نو له دې سره $(a+b) < ab$ نارښتیا دی یانې

$$\frac{a+b}{2} \geq \sqrt{ab}$$

رښتیا دئ ۰

۲ – غوښتنه B :د ۲ رېښه یا جذر $\sqrt{2}$ ایرشنل دئ

اوبیونه یا حل : د غوښتنې نفیې ده، چې : د ۲ رېښه $\sqrt{2}$ ریشنل ګڼ دئ ( د ریشنل ګڼونو لپاره دې برخه ۳ وکتل شي)، نو باید بیا دوه ټولریشنل ګڼونه q, p, د q≠0 سره شته وي، چې دا باوري شي:

$$\sqrt{2} = \frac{p}{q} \Leftrightarrow p^2 = 2q^2$$

له دې پورته برابرون سره $p^2$ یو جوړه( (جفت) ګڼ دئ۰ نو له دې امله p هم یو جوړه ګڼ دئ، ځکه چې یواځې د جوړه ګڼ مربع یا څلورئ جوړه کیدی شي $p=2p'$ له مربع یا څلورئ کولو او پر ځاي اینوولو لاس ته راځي:

$$P^2 = 4p'^2،$$

$$2q^2 = 4p'^2$$

$$q^2 = 2p'^2$$

له اخرنی برابرون لاس ته راځي، چې q هم یو څلوری یا مربع ګڼ دی٠ په دې پسې لرو p او q پر٢ ویشونی دی، یانې پرویشپردی نه دی٠ که پرویشپردي ټول ګڼونه p او q له $\sqrt{2}$

سره شته نه وي، نو دا ډول ټولګڼونه نه شي کیدی، چې شته یا موجود وي٠

## ٨ ٠ ٣ د پوره ایندکشن له لارې ښوونه

د پوره ایندکشن ثبوت یا حل د هغو غوښتنو لپاره کارول کیږي، چې د یوه ټاکلي ګڼ ( n0 صفر باید لږ د ن د پېښی لاندې ولیکل شي) څخه د ټولو پیدایښتي ګڼونو لپاره باوري کیدی شي٠ یانې دلته نوینه داده، چې یوه وینا د لپاره که باور ولري، نو دا بیا د ټولو پیدایښت ګڼونو لپاره باور ي کیدی شي٠

بیلګه ١ :

د ټولو n ≥ 0 لپاره ٢ په توان دn له صفر لوي یا له صفر بسره برابر دي یعنې باور لري: $2^n \geq 0$

بیلګه : د ټولو n ≥ 0 لپاره باور لري 1+3+5+… 2n+1)= n²

د پوره ایندکشن د ښوونې لپاره د « پوره ایندکشن پرینځیپ بنسټ» مخ ته پروت دی:

که یوه وینا دn= n0 یا(په لاندې، که ن،ج، ته پورته شو،نو صفر په پښه کې‌لیکل شوی ) $n = n_0$ لپاره باور ولري او که د دې وینا د یوه په خوښه پیدایښتي ګڼ n = k لپاره اور لرلو څخه د n = k+1 لپاره باوریوالی ترې لاس ته راشي، نو دا وینا د ټولو پیدایښتي ګڼونو $n \geq n_0$ لپاره ریښتونې ده ٠

په دې پسې په ترتیب د ایندکشن ښوونه په دوه پلونو یا قدمونو سرته رسیږي

۱ - د ایندکشن پیل

ښوول کیږي، چې دا وینا د $n \geq n_0$ لپاره باور لري

۲ – د ایندکشن پل

اوس باید یو ایمپلیکیشن یا لاس ته راوړنه وښوول شي۰ له دې امله د ایندکشن پل یا له برخه پلونو جوړ دئ

۲ الف: د ایندکشن نیونه :

نیول کیږي، چې وینا د $n = k \geq 0$ لپاره باور لي او دا نیونه په V فرمولبند کیږي

یادونه V د نیونې لپاره ځاي پرځاي کیږي یا راوړل کیږي۰

۲ ب – د ایندکشن غوښتنه:

غوښتل کیږي، چې دا وینا د $n = k+1$ لپاره باور لري او دا غوښتنه په B فرمولبندي کوو۰ دا په ګوته کوو، چې B دلته د غوښتنې پرځاي لیکو

۲ ج – د ایندکشن ښوونه :

ښوول کیږي، چې B له A څخه لاس ته راځي: A=>B

بیلګه ۱ :

۱ – د $n = 0$ لپاره باور لري $2^0 = 1 > 0$

۲ ۰ ۱ ۰ V ته :

$2^k > k$

و ۲ ۰ ۲ B ته

$2^{k+1} > k+1$

۲ ۰ ۳ له $B \Rightarrow V$ : له $2^k > k$ او $1 < 2$ څخه د زياتون له امله لاس ته راځي :

$2+2^k > k+1$

او له دې لاس ته راځي: $2.2^k > k+1, 2^{k+1} > k+1$

بيلګه ۲ :

۱ ۰ د $n = 1$ لپاره باور لري $1 = 1° = 1$

و ۲ ۰ ۱ V ته: $1+3+5++...+(2k-1) = k^2$

و ۲ ۰ ۲ B ته:

و ۲ ۰ ۳ $B \Rightarrow V$ ته: له نيونې څخه د زياتوون 2k+1 زياتونې او له دې د ښي خوا د يوه بينومځلورى(-مربع) په څير انځورونې څخه لاس ته راځي:

$1+3+5+...+(2k-1)+(2k+1=k^2+2k+1$

او له دې د ښی خوا انځورونې څخه د بينوم ځلورى(-مربع) لاس ته راځی :

$1+3+5+...+(2k-1)+(2k+1)= (2k+1)^2$

يادونه : د V او B پر ځاي کړی شو، چې نيونه او غوښتنه وليکو، يانې مورږ درې څه لرو، چې نيونه غوښتنه او ښوونه ده۰ په هغه ورسره بلد ډول يې ښوونه د يوه پارابلم حل دی، چې ما اوبی يا اوبيونه بللی( اوبي پښتو ده او ښه کره، همدې وي يا لغات ته مناسب خپل د پښتو نوم دی، چې ورسره بلد هم يو، لکه ملګوبی، خړوبی، چې موخه ترې همدا اوبی دی او په نورو ژبو کې هم همداسې دی)

دلته د شميرپوهنې سم اند درس ته د پای ټکی ږدو، کۀ نور څه مو ښه مخ ته راغله هغه به بيا د ترڼې په ډول ورسره مل کړو۰ ستاسو وړانديزونو ته هم سترګی په لار يم۰

## ۸ . ۴ تمرينونه

۱ – سيده وښايي

الف ) له $a + 1/a = b$ څخه لاس ته راځي $a^3 + 1/a^3 = b^3 - 3b$

ب ) د دوه تيرو کونجونو $\alpha$ ، $\beta$ لپاره صدق کوي

$$\sin(\alpha + \beta) < \sin\alpha + \sin\beta$$

۲ – ناسيده وښايي :

الف ) د ټولو x لپاره ، چې وي $0 < x < \infty$ ، صدق کوي

$$(3x - 4) / (2x + 4) > 1$$

ب ) $\sqrt{2}$ يو ايريشنل کڼ دی

۳ – د پوره اندکشن له لارې يې وښايئ

a) $1 + 2 + 3 + \ ...\ + n = \frac{(n+1)\,n}{2}.$

b) $1^2 + 2^2 + 3^2 + \ ...\ + n^2 = \frac{(2n+1)\,(n+1)\,n}{6}.$

c) $2^0 + 2^1 + 2^2 + \ ...\ + 2^n = 2^{n+1} - 1.$

## ۹ ۰ کرښیز- یا خطي-یا لاینیز مساوات د یوې متحولې سره

پیل بیلګه

یو بایسکل ځغلوونکی او یو پلی له یوه ځایه په همغه وخت خوزي یا حرکت کوي، کوم چې په ګراف کې کښل شوی دی( که د ګراف کښل راته ناشوني شول بخښنه غواړم۰ که بل چا دا کار وکولی شو نو دا به یې هم مرسته وي، خو پرې پوهیدل کومې ستونځې نه لري) بایسکل په ګړۍ کې ۱۵ کیلومتره ځغلي او پلی ۱۰ کیلو متره په ګړۍ کي ځغلي. دوي پس له یونیم ساعت سره یوځاي کیږي. هر یو ځومره لار وهي او یو له بل ځومره لرې دي؟



دا موږ دلته، لکه په ځنو کتابونو کی چی د فنکشن د نامه لاندې یادیږي، په همغه نامه نه یادوو خو هدف به همغه وي که دا د برابرون یا مساوات په نامه وبولو .
وخت ) په دقیقه ( په t ښایو لار ) کیلومتر( په s ښایو د لارانځورونی څخه په ګراف کی څرګندیږي چی بایسکلځغلوونکی له ۶۰ دقیقو وروسته ۱۵ کیلو متره ځغلیدلي یعني 15km /hاو پلی ۱۰ کیلو متره یعني 10km/h
غواړود هرڅه لمړی وښایو چی هر یو له یونیم ساعت وروسته څومره لار وهلي او بیا دویمي پوښتني ته ځواب ورکوو.
بایسکل ځغلوونکی به له دوه ساعته وروسته 2.15km = 30 km ځغلیدلی وي او پلی به 2.10km=20km ځغلیدلی وي بایسکل ځغلونکی به له tوخته وروسته t.15km
15.tkm=لار وهلي وي. دلته وختt خپلواك اوړیدونی یا نا پژندونکی او لار s بلواك اوړیدونی یا ناپیژندونکی یعني د t په واك کی دی. دا کلیمي به بیا د فنکشن او څیرونو په برخو کی پوره تر څیړني لاندې ونیول شي. د بایسکل ځغلوونکي وهلې لار، چی په r یې ښایو برابرون داسی لیکو:

$$S_r = 15.t; t \in Q_0^+$$

د بایسکل ځغلونکی وهلی لار، tچی د بایکلځغلولو وخت دی طبعآ زیاتیز یا مثبت دی ورته دپلي چی په lیې ښایو وهلي لار هم ټاکل کیږي،یعني د l وهلی لار:

$$S_l = 10.t; t \in Q_0^+$$

له دې سره مو وښوول چی دواړه له پیل ټکي له 1,5 ساعته یو له بل څومره لرې دي. وهل شوې لار :

د بایسکل ځغلوونکي $S_r = 15.1,5 = 22,5km$

د پلي $S_l = 10.1,5 = 15,0km$

ددې په تعقیب له 1,5 ساعته وروسته دواړه یو له بل 7,5 km لرې دي .

## ۹ . ۱ لاینیز- یا کرښیز مساوات :

د کرښیز مساوات فرمول د یوې اوښتونې یا مجهولې x سره داسی دی

$$Ax = a \qquad (9.1)$$

دلته A , a حقیقي اعداد دي. د ( ۱ . ۶ ) برابرون اوبیونه ( حل) دا مانا لري چی ټول هغه حقیقي اعداد وښوول شي چی که په پورته ( ۱ . ۹) برابرون یا مساوات کې ځای په ځای شي، د مساوات شرایط پوره کړي. د حقیقي اعداد و بنسټیز قانون ( ۳ – مجه

برخه دې وکتل شي) په بنسټ کیدی شي چی د حقیقي عددد مساوات دواړه خواوي په یوه عدد سره ځل یا ضرب کړو. بی له دې چی مساوت زخمي شي. داچی ویش په د $\frac{1}{A}; A \neq 0$ ځل سره برابر دی نو لیکل کیږي

$$x = \frac{a}{A}; A \neq 0; ....................(9,2)$$ .............

دا د ( ۱ . ۹) یواځنی ممکن حل دی۰که په څټ یا برعکس A = 0 وي، نو دلته دوه حالتونه یو د بل توپیروو

۱ – که $a \neq 0$ وي: دا مساوات بیا داسی دي $0.x = a; a \neq 0$

دا یو مخامخوالی یا تضاد یا نوره هم ښه په څتوالی تشکیلوي ، نو په دې حالت کی حقیقي عدد x شته نه دی چی دا( ۱ . ۹ ) مساوات پوره کړي.

۲ - که a = 0 وي، نو بیا برابرون (۱ . ۹ ) لاندې شکل نیسي

0.x = 0

دا برابرون بیا د ټولو ریلګڼونو xلپاره پوره (ډك ) دی. یا برابرون پوره کوي.

دا بیا داسی هم لیکل کیږي : ( په خوښه bel) = xپس دا لاندې باور لري:

برابرون ( ۱. ۹ . ) د $A \neq 0$ لپاره یواځنی ټاکلي اوبیونه ( ۹ .۲ ) لريد A = 0 او $a \neq 0$ لپاره اوبیونه نه لري د A = 0 او a = 0 لپاره هر ریلګڼ x اوبیونه یا حل دی.

په دې لاس ته راوړنوکی، د یوې اووښتونې یا مجهولی سره د ریبل برابرونونو د ګڼلو ټوله تیورې خوندي ده .

یو لاینیز برابرون ( مساوات ) ( یو برابرن، چی د برابرونونو په دواړو خواوکی د لاینیزو برابرونونو ترمونو زیاتون $a_i + x_i + b_i$ پرت وي) دا مخکني نورمالفورم (۹ . ۱ ) مو له مخه مخ ته نه دی پروت، پس سرې په دواړو خواو د لاینیزو ترمونو د هدف په لور زیاتون ( همداسی کمون ) له لارې همغه مخکني نورمالفورم ته بیرته راړوي، دا د II . 2 بنسټیز قانون له مخی یو ورته فورمبدلون یا بڼه بدلون دی )( د اوبي یا حل ډیری تغیر نه دی خوړلی ) د بیلګي په توګه لاندې مساوات ورکړ شوی

$$a_1x - b_1x + c_1 - d_1 = a_2x - b_2x + c_2 - d_2$$

پس کیدی شي چی په دواړو خوا $b_2x + d_1$ ور زیات کړو او $a_2x + c_1$

---

ترې کم کړو، نو لاس ته راځي

$$a_1x - b_1x - a_2x + b_2x = c_2 - d_2 - c_1 + d_1;......................(9.3)$$

دلته هغه د x لرونکی غړي د مساوات په کيڼ لور او ثابت د برابرون په ښي لورپراته دي. داسی ليکو

$$A = a_1 - b_1 - a_2 + b_2; a = c_2 - d_2 - c_1 + d_1$$

نو دا برابرون ( ۳ . ۹) د برابرون (۱ . ۹) سره (ته) کتمټ (ورته) دی، که په لاندې فورم يا بڼه يو مساوات ورکړ شوی وی

$$\frac{a_1}{a_2}x = \frac{b_1}{b_2}$$

( دا ټيك هلته موخه ور يا هدفمند دی چی $a \neq 0; b \neq 0$ وي) . نو برابرون د x په لور حل کيدلی شي ، که دا په a2 ځل شي او د a1 |=0 په حالت کی په a1 وويشل شي:

$$x = \frac{a_2b_1}{a_1b_2}$$

بيلګه ۹ . ۱ :

برابرون $\frac{a^2x - b^2}{a} - \frac{a(b-ax)}{b} + \frac{b^2}{a}$ هلته موخه ور دی چی $a \neq 0; b \neq 0$ وي. ددې لپاره چی د ماتلاندې څخه ځانونه خلاص کړو، نو پورته ورکړ شوي برابرون د ګډماتلاندي a.b سره ځل کوو:

$$b(a^2x - b^2) - a^2(b - ax) + b^2 = a^2b$$

$$a^2bx - b^3 - a^2b + a^2x + b^3 = a^2b$$

اوس برابرون ترتيبيږي او راټوليګی، xله نوکانو څخه راوځي

$$a^2bx + a^3x = a^2b + b^3 + a^2b - b^3$$

$$a^2(ax + b) = 2a^2b$$

د $a \neq 0$ له امله کيدی شي په $a^2$ وويشل شي (a+b)x=2b

دا د لاينيز برابرونونو بنستيزه بڼه ( فورم) ( ۱ . ۹) ده

که ( $a + b \neq 0, (a \neq -b)$ وي ، نو( x = 2b /(a + b

----------------------------------------------------------------

یوګونی یا یواځنی اوبیونه یا حل دی
که( a = -b ) a + b = 0 ، نو د $b \neq 0$ له امله اوبیون شته نه ده .
هغه حالت چی ناپاي زياتي اوبيوني يا حلونه منځ ته راځي( د x =په خوښه) ، د نیونی یا فرضيي له امله چی باید $b \neq 0$ وي، موجود نه دی.
پام:
په دې هکله زياتې بيلګی کیدی شي راوړل شي، چې ضريب يا ځله وونې په مختلفو توانونو وي۰ زه دلته يواځې دومره يادونه کوم، چې په مساواتو کې، چې اوښتونی يا متحولې ولري، همغهسی شميرل کيږي، لکه په ريیلعددونو کې۰
دلته هم بايد دې ته پام وي، چې ماتلاندې صفر نه شي۰ که چيرې اړيینې وې او يا ګرانو لوستونکو يې راوړل وغوښتل، نو زه به بيا دا کار سرته ورسوم او بيلګې به هم راوړم او که چيرې کوم د شميرپوهنې مينه وال په دې هکله د پوښتنو ځوابونه غوښتل، زه به وهڅيږم او دا کار به هم سر ته ورسوم، که لوي ځښتن غوښتل۰ زه دومره يادونه کوم، چې په دې هکله زما د شميرپوهنې بنستيز کتاب کې زياتې بيلګې راوړل شوي، خو نه پوهيږي، چې دا کتاب به چا ته ورسيږي او که نه

بیلګه 9 . ۲ :
برابرون $(x/a)-((a-x)/2bc)+(a-x)/3c = 1$ يواځي
د $a \neq 0, b \neq 0, c \neq 0$ $a \neq 0, b \neq 0, c \neq 0$ لپاره موخه ور دی.
ددې لپاره چی مات لاندې له منځه يوسو، نو مساوات د ا.م.ل. 6abc ا(صلي ماتلاندې) سره ځل کوو: $6bcx-3a(a-x)+2ab(a-x) = 6abc$
ورپسی نور، په لاندې ډول، د ځرګندو شميرلارو يا - قاعدو له لارې لاس ته راځي:

$$6bcx-3a^2+3ax+2a^2b-2abx=6abc$$

$$(6bc+3a-2ab)x=6abc+3a^2-2a^2b,$$

$$(6bc+3a-2ab)x=a(6bc+3a-2ab)$$

دا بيرته د لايني مساوات ( ۹ . ۱ ) بنسټېنه ده، او له دې امله صدق کوي:
د $6bc+3a-2ab \neq 0$ لپاره x=a د مخ ته پراته مساوات يواځنی حل دی.
د $6bc+3a-2ab = 0$ لپاره د $0x = 0$ له امله هر ريیل کې x اوبیونه ده.
نو لرو x=a د $6bc+3a-2ab \neq 0$ لپاره د $6bc+3a-2ab = 0$ لپاره x په خوښه
دلته د څیړل شوو برابرونونو، چی په ساده ډول یی لاینیزوالی یا لاینیزتوب پيژندل کيږي، په څنګ کی برابرون شته چی په اصل (پرینڅیپ) کی کرښیز یا لاینیز نه دي

---

مګر په لاينيز مساوات يا برابرونونو اړول کيدی شي. دلته ددې غوښتنو په څنګ کی چې د ناپيژندونکو ضريبونو a,b,c ..... لپاره شوي، زيات وخت په x هم شرطونه اېښول کيږي.
ددي لپاره لاندې کی درې ساده بيلګي راوړو:

بيلګه ۹ . ۳ :
برابرون $(8x - 9)(3x - 4) - (5x - 6)^2 = (4 + x)(3 - x) - 9$
د لومړي ځل لپاره څلوری برابرړن يا مربع مساوات دی، ځکه چې څلوری( مربع) غړي لري. د يو له بل څلولو يا ضربولو وروسته څلوری غړي له منځه ځي. يو لايني مساوات د يوې ځانګړي سره سره پاتي کيږي:

$$24x^2 - 32x - 27x + 36 - (25x^2 - 60x + 36) = 12 - 4x + 3x - x^2 - 9$$

$$-x^2 + x = 3 - x - x^2$$

$$2x = 3$$

$$x = 3 / 2$$

بيلګه ۹ . ۴ : برابرون $(2x - a) / (x - b) = 1$ يواځي هلته هدفمند دی که حل x دا شرط $x \neq b$ پوره کړي. نو بيا لرو: $2x - a = x - b \Rightarrow x = a - b$
د $x \neq b$ له امله بايد باوري وي $a - b \neq b$ له دې امله لرو $a \neq 2b$ پس ورکړ شوی مساوات د $a \neq 2b$ لپاره يواځنی ټاکلی حل $x = a - b$ لري او پرته له دې ( $a = 2b$) حل نه لري.
بيلګه ۹ . ۵ :
مساوات $(a / x) + (b / x) - (c / x) = 1$
يواځي هلته هدفمند دی چې $x \neq 0$ وي. ددې نيونو لاندې باور لري . $x = a + b - c$ دا نو د $x \neq 0$ له امله يواځي هلته حل دی، کله
چې $a + b \neq c$ وي. پس ورکړ شوي مساوات يواځي د $a + b \neq c$ لپاره يواځنی ټاکلی حل $x = a + b - c$ لري، په غير له دې ( $a + b = c$) حل يا اوبيونه نه لري

بيلګه ۹ . ۶ : د لاندې مساوات څيرنه:

$$\frac{b^3c^2x - \frac{1}{a^2}}{121500ab^4c^3} - \frac{a^2x - \frac{1}{b^3c^2}}{2880a^3bc} + \frac{abcx - \frac{1}{ab^2c}}{5400(abc)^2} = 0,$$

چی ټيك د $abc \neq 0$ لپاره يو هدف لري، بايد د اصلي مات لاندې پيدا كولو لپاره د مات لاندې ك.ګ.ځ. تكرار شي

$$12150ab^4c^3 = 2^2.3^5.5^3.a.b^4.c^3$$

$$2880a^3bc = 2^6.3^2.5.a^3.b.c$$

$$5400(abc)^2 = 2^3.3^3.5^2.a^2.b^2.c^2$$

$$................ = 2^6.3^5.5^3.a^3.b.c^3 = 64.243.125.a^3bc^3$$

دا پورته ګڼ اصلي ماتلاندې (ا.م.ل) دئ

كه برابرون د ا.م.ل. سره ځل شي، نو ماتونه له منځه ځي او لاس ته راځي:

$$16a^2(b^3c^2x - \frac{1}{a^2}) - 225b^3c^2(a^2x - \frac{1}{b^3c^2}) + 120c.(abcx - \frac{1}{ab^2c}) = 0$$

د نوكانو يو له بل ځلولو راټول، ترتيبونه او ويشنه د x تر څنګ ولاړو فاكتورونو يا ضريبونو ($A = 89a^2b^3c^2 \neq 0$) څخه د نيونو سره سم دا لاندې لاس ته راوړكيږي

$x = 1 / a^2b^3c^2$, $abc \neq 0$

د دې وظيفي لپاره د حل نور امكانات نه شته.

تر اوسه مو هغه ماتونه وڅيړل چې مات لاندې يي له ځلونو جوړ وو، غواړو چې اوس داسې ماتونه وڅيرو چي مات لاندې يي له زياتونونو جوړ وي، چې د نوكانو له لارې په ځلوونو ټوټه كيدلي يا تجزيه كيدلی شي .

بيلګه ٩ . ٧ :

برابرون

$$\frac{a^2(2bx-1)}{a^4b^2x^2-b^2} + \frac{b}{a^2b+b} = \frac{a^2bx}{a^2bx-b} + \frac{b^2(2ax-3)}{a^4x^2x^2-b^2} - 1$$

ټيك د دې نيونو سره صدق كوي $ab \neq 0$ , $|x| \neq 1 / a^2$ . :

اصلي مات لاندې) ا م ل ( په لاندې ډول پيداکوو

$a^4b^2x^2 - b^2 = b^2.(a^4x^2 -1)$

$= b^2.(a^2x+1)(a^2x-1)$

$a^2bx + b = b.(a^2x+1)$

$a^2bx - b = b. (a^2x-1)$

--------------------------------------------------

$b^2.(a^2x+1).(a^2x-1) = b^2(a4x^2 - 1 =$

اصلي ماتلاندی)ا م ل

د اصلي مات لاندې مساواتو له نوکانو څخه راوتلو) چي يو يا څو غړی د نوکانو دباندې او نور په نوکانو کی بنديږي( ، لنډونو او ځلوونو له لارې لاس ته راځي

$.....a^2(2bx-1)+b^2(a^2x-1) = a^2b^2x(a^2x+1)+b^2(2ax-3)-b^2(a^4x^2-1)$

$2a^2bx - a^2 + a^2b^2x - b^2 = a^4b^2x^2 + a^2b^2x + 2ab^2x - 3b^2 - a^4b^2x^2 - b^2$

$.............2a^2bx - 2ab^2x = a^2 - b^2$

$.................2ab(a-b)x = (a+b)(a-b)$

$..................................x = \frac{a+b}{2ab}$

د $b \neq a$ او $ab \neq 0$ لپاره( دا د نیونو له لارې تل پوره دی )که $a = b$ وي، نو x د $0.x = 0$له امله په خوښه ارزښتونه نیولی شي، بی له هغو چی په بنسټيزو نیونو کی له نیونو د باندې ساتل شوي وي) يعني په مساوات کی ځاي ورته نه وي(. په دې حالت کی د xمطلقه ارزښت د کېنونو $a = b$ د په څېټ ارزښت سره نه شي مساوي کيدی .د x لپاره نيول شوې نیونی د حل ورکولو کی باید په پام کی نیول شوي وي دا په دې مانا چي باید تل پوره وي:

$\pm 1 / a^2 \neq \frac{a+b}{2ab}$

بیلګه ۹ . ۸ :

دوه ګاډې تمځایونه Aاو B يو له بل km30 لرې دي. د A څخه يو بارګاډی په ساعت کی د دیرش کيلومتره 30km/h په يوه ثابت سرعت یا چټکتيا باندې د B په لور

خوزیږي. د Bڅخه یو تیز ګاډی D د 90km/h ثابت سرعت سره دA په لور حرکت کوي. که دواړه ګاډي په همغه وخت کي حرکت وکړي ، کله به یو بل سره مخامخ شي؟دلته درې فزیکي لویې یو رول لري : لار، وخت او سرعت. دا به په سومبولونو t , s او vسره وښول شي. ددې شي ځانګړنې لپاره ځیره ځېره وکاږۍ



ځېره ۱۰۴

پوښتنه » چیرته « د دواړو ګاډو د یوځایوالی ټکی C ته متوجه ده. دا کیدی شي د A څخه و C ته لریوالي(د بار کاډي لار s1 ) یا د Bلریوالي وC څخه( د تیزګاډي D لار s2) سره وشمیرل شي. پوښتنه »کله« د ګاډو یوځایوالي وخت t ته متوجه ده. دا هدفمند دی کی د وخت لپاره د وخت کمون له روانیدو تر یوځایکیدو وټاکو. دلته درې اوړېدونې یا مجهولی مخ ته لرو s1 , s2 او t .
د پورته ورکړشو شي نیونی سره مناسب لاندې اړیکی باور لري:

$$v_1 = s_1 / t \quad , v_2 = s_2 / t \quad , \quad s_1 = + s_2 = s$$

د باورې ارزښتونو مارونې یا استعمال سره لاس ته راځي

$$s_1 = 30\ t \ , s_2 = 90\ t \ , s_1 + s2 = 30$$

(دلته د اندازی یونونه(واحدونه ) پرېښوول کیږي. او پریکړه کوو چی لار په کیلو متر او وخت په ساعت ښایو )!
دا درې مجهولی s1 , s2 او t دی د دې برابرونونو یا مساواتو سره چی حل به یی په همداسی په برخه ۱۱ کی ورکړشوی وي، مګر دا دومره ساده دې چي د یوې له پیژندلو سملاسي نورې هم شمیرل کیدی شي. کیدی شي چی دا مساوات په یوې مجهولی مساواتو بیرته واړول شي. ددې مجهولی x په ځای کیدی شي s1 , s2 او t وټاکل شي .

که ولیکو s1 = x ، نو د اخري برابرون څخه لاس ته راځي s2 = 30 - x. دا په لمړنیو دوه مساواتو کی ځاي په ځاي کوو او دواړه د t په لور حلووو:

$$t = s1 / 30 = s2 / 90 = x / 30 = (30 -x) / 90$$

نو لرو: $x / 30 = (30-x) / 90$

---

لاینیز ټاکنبرابرون یا ټاکنبرابرون د x لپاره دی، چی ساده حل کیدی شي:

$30x = 30 - x$ , $4x = 30$ $x = 7{,}5$

نو لرو

$s_1 = 7{,}5$ km , $s_2 = 22{,}5$ km , $t = (7{,}5 / 30)$h= 1h/4 = 15 min

که ولیکو $s2 = x$ ، نو شمیرنه لاندې لار غوره کوي یا بهیر نیسي:

$s_1 = 30 - x$ , $t = s_1 / 30 = s_2 / 90 = (30 - x)/ 90$

$3(30 - x) = x$

$90 = 4x$

$x= 22{,}5$

$s_2 = 22{,}5$km , $s_1 = 7{,}5$ km , $t = (22{,}4/90)$h= 1h/4=15 min

که بالاخره وخت $t = x$ د اووښتونې یا ناپیژندونی په څیر وټاکو، نو بار لري یا صدق کوي: $s1 + s2 = 30x + 90\ x = 30$

$20x = 30$

$x= 30 / 120 = 1/ 4$ , $t = (1 /4)$h = 15 min

$s1 = 30t = 30 /4$ km=7,5km

$s2 = 90\ t = 22{,}5$ km

دواړه ګاډي له ټکی A څخه د 0,25 h= 15 min حرکت وروسته په 7 , 5 km لریوالی یو بل سره مخامخ کیږي

بیلګه ۹ . ۵ – مساوات $(a/x)+(b/x)-(c/x)=1$

یواځي هلته هدفمند دی چی $x \neq 0$ وي. ددې نیونو لاندې باور لري $x = a + b - c$ . دا نو د $x \neq 0$ له امله یواځې هلته حل دی، کله چې $a + b \neq c$ وي. پس ورکړ شوي مساوات یواځې د $a + b \neq c$ لپاره یواځنی ټاکلی حل $x = a + b - c$ لري، په غیر له دې $(a+b=c)$ حل نه لري.

بیلګه۹ . ۶ – د لاندې مساواتو څیړنه

$$\frac{b^3c^2x - \frac{1}{a^2}}{121500ab^4c^3} - \frac{a^2x - \frac{1}{b^3c^2}}{2880a^3bc} + \frac{abcx - \frac{1}{ab^2c}}{5400(abc)^2} = 0,$$

---

چې تیك د $abc \neq 0$ لپاره یو هدف لري، باید د اصلي مات لاندې پیدا کولو لپاره د مات لاندې ك.گ.خ. تکرار شي.

$121500ab^4c^3 = 2^2 . 3^5 .5^3 .a . b^4 .c^3$

$2880a^3bc = 2^6 .3^2 .5.a^3.b . c$

$5400\ a^2b^2c^2 = 2^3 .3^3.5^2.a^2b^2c^2$

---

اصلي ماتلاندې لنډ «ا م ل» $= 2^6.3^5.5^3 .a^3b.c^3 = 64.243.124.a^3bc^3$

که مساوات د ا.م.ل. سره ځل شي، نو ماتونه له منځه ځي او لاس ته راځي

$$16a^2 \cdot \left(b^3c^2x - \frac{1}{a^2}\right) - 225b^3c^2 \cdot \left(a^2x - \frac{1}{b^3c^2}\right) + 120ab^2c \cdot \left(abcx - \frac{1}{ab^2c}\right) = 0.$$

د نوکانو یو له بل څخلولو راټول، ترتیبونه او ویشنه د x تر څنګ ولاړو فاکتورونویا ضریبونو ( $A = 89a^2b^3c^2 \neq 0$ ) څخه د نیونو سره سم دا لاندې لاس ته راوړکیږي

$$x = 1 / a^2b^3c^2 \quad , \quad abc \neq 0$$

د دې وظیفي لپاره د حل نور امکانات نه شته.

تر اوسه مو هغه ماتونه وڅیړل چې مات لاندې یې له ځلونو جوړ وو، غواړو چې اوس داسې ماتونه وڅیړو چې مات لاندې یې له زیاتونونو جوړ وي، چې د نوکانو له لارې په ځلونو توټه کیدلي یا تجزیه کیدلی شي.

بیلگه ۹ . ۷ :

$$\frac{a^2(2bx-1)}{a^4b^2x^2-b^2} + \frac{b}{a^2bx+b} = \frac{a^2bx}{a^2bx-b} + \frac{b^2(2ax-3)}{a^4b^2x^2-b^2} - 1$$

تیك د دې نیونو سره صدق کوي: $|x| \neq 1 / a^2 \quad , \quad ab \neq 0$.

اصلي مات لاندې( ا م ل ) په لاندې ډول پیداکوو:

---

$$a^4b^2x^2 - b^2 = b^2.(a^4x^2 - 1)$$
$$= b^2.(a^2x+1)(a^2x-1)$$
$$a^2bx + b = b.(a^2x+1)$$
$$a^2bx - b = b. \quad (a^2x-1)$$

---

اصلي ماتلاندی(ا م ل) $= b^2.(a^2x+1).(a^2x-1) = b^2(a^4x^2 - 1)$

د اصلي مات لاندې مساواتو له نوکانو څخه راوتلو ( چې یو یا څو غړی د نوکانو دباندې او نور په نوکانو کی بندیږي ) ، لنډونو او خلوونو له لارې لاس ته راځي:

$$\begin{aligned} a^2(2bx-1)+b^2(a^2x-1) &= a^2b^2x(a^2x+1)+b^2(2ax-3)-b^2(a^4x^2-1) \\ 2a^2bx-a^2+a^2b^2x-b^2 &= a^4b^2x^2+a^2b^2x+2ab^2x-3b^2-a^4b^2x^2+b^2 \\ 2a^2bx-2ab^2x &= a^2-b^2 \\ 2ab(a-b)x &= (a+b)(a-b) \\ x &= \frac{a+b}{2ab} \end{aligned}$$

د $b \neq a$ او $ab \neq 0$ لپاره ( دا د نیونو له لارې تل پوره دی)

که $a = b$ وي، نو $x$ د $0.x = 0$ له امله په خوښه ارزښتونه نیولی شي، بې له هغو چې په بنستیزو نیونو کې له نیونو د باندې ساتل شوي وي( یعني په مساوات کی ځاي ورته نه وي). په دې حالت کی د $x$ مطلقه ارزښت د کنونو $a = b$ د په څټ ارزښت سره نه شي مساوي کیدی.

د $x$ لپاره نیول شوې نیونې د حل ورکولو کې باید په پام کې نیول شوي وي؛دا په دې مانا چې باید تل پوره وي:

$$\pm 1 / a^2 \neq (a+b) / 2ab$$

**بیلګه ۶ . ۸ :** دوه ګاډي تمځایونه A او B یو له بل 30 km لرې دي. د A څخه یو بارګاډی په ساعت کې د دیرش کیلومتره 30 km/h په یوه ثابت سرعت یا چټکی باندې د B په لور حرکت کوي. دB څخه یو تیز ګاډی D د 90km / h ثابت سرعت سره د A په لور حرکت کوي. که دواړه ګاډي په همغه وخت کي حرکت وکړي ، کله به یو بل سره مخامخ شي؟

دلته درې فزیکي لویي یو رول لري : لار، وخت او سرعت. دا به په سومبولونو s , t اوv سره وښول شي. ددې شي ځانتیوني لپاره څیره ۶ . ۱ ورکړ شوې.



څېره ۶ . ۱

پوښتنه « چیرته » د دواړو ګاډو د یوځایوالی ټکی C ته متوجه ده. دا کیدی شي د A څخه و C ته لریوالي(د بار ګاډي لار $s_1$ ) یا د B لریوالي و C څخه ( د تیزګاډي D لار $s_2$ ) سره وشمیرل شي.

پوښتنه «کله» د ګاډو یوځایوالي وخت t ته متوجه ده. دا هدفمند دی کی د وخت لپاره د وخت کمون له روانیدو تر یوځایکیدو وټاکو.

دلته درې مجهولی مخ ته لرو $s_2$ , $s_1$ او t . د پورته ورکړشو شي نیونی سره مناسب لاندې اړیکی باور لري:

$$v_1 = s_1 / t \quad , v_2 = s_2 / t \quad , \quad s_1 = + s_2 = s$$

د باوري ارزښتونو استعمال سره لاس ته راځي

$$s_1 = 30\,t \ , \ s_2 = 90\,t \ , \ s_1 + s_2 = 30$$

( دلته د اندازی یونونه پرېښوول کیږي. او پریکړه کوو چی لار په کیلو متر او وخت په ساعت ښایو!)

---

دا دري مجهولی $s_2$ , $s_1$ او $t$ دی د دري مساواتو سره چی حل به یی په ۶ الف او یا همداسی په برخه ۱۱ کی ورکړشوی وي، مګر دا دومره ساده دي چي د یوي له پیژندلو سملاسي نوري هم شمیرل کیدی شي. کیدی شي چی دا مساوات په یوي مجهولی مساواتو بیرته واړول شي. ددي مجهولی $x$ په ځای کیدی شي $s_2$ , $s_1$ او $t$ وټاکل شي. که ولیکو $s_1 = x$ ، نو د اخري مساوات څخه لاس ته راځي $s_2 = 30 - x$. دا په لمړنیو دوه مساواتو کی ځاي په ځاي کوو او دواړه د $t$ په لور حلووو:

$$t = s_1 / 30 = s_2 / 90 = x / 30 = (30 - x) / 90$$

نو لرو

$$x / 30 = (30 - x) / 90$$

لاینی ټاکنمساوات د $x$ لپاره دي، چی ساده حل کیدی شي:

$$30x = 30 - x\,,\ 4x = 30$$

$$x = 7{,}5$$

$$s_1 = 7{,}5\ \text{km},\quad s_2 = 22{,}5\ \text{km},\quad t = \frac{7{,}5}{30}\text{h} = \frac{1}{4}\text{h} = 15\,\text{min}.$$

نو باور لري:

که $s2=x$ کیږدو،نو شمیرنه په لانې ډول ځغلي یا لاندې لار غوره کوي:

$$s_1 = 30 - x,\quad t = \frac{s_1}{30} = \frac{s_2}{90} = \frac{30 - x}{30} = \frac{x}{90}\,,$$

$$3\,(30 - x) = x,$$
$$90 = 4x,$$
$$x = 22{,}5,$$
$$s_2 = 22{,}5\ \text{km},\ s_1 = 7{,}5\ \text{km},\quad t = \frac{22{,}5}{90}\ \text{h} = \frac{1}{4}\ \text{h} = 15\,\text{min}.$$

که بالاخره وخت د نامعلومې په څیر وټاکل شي، یعنې $x=t$ ، نو باور لري:

$$s_1 + s_2 = 30x + 90x = 30,$$
$$20\,x = 30,$$
$$x = \frac{30}{120} = \frac{1}{4},\quad t = \frac{1}{4}\ \text{h} = 15\ \text{min}.$$
$$s_1 = 30\,t = \frac{30}{4}\ \text{km} = 7{,}5\ \text{km},$$
$$s_2 = 90\,t = 22{,}5\ \text{km}.$$

دواړه ګاډي له ټکي A څخه د 0,25h=15min خوزښت(حرکت) وروسته په 17,5kmکې یو بل سره مخامخ کیږي.

۹ . ۲ تمرینونه

۱ . ناکرښیز یا نالاینیز مساوات د یوې مجهولې سره

لاندې مساوات حل کړئ aاوb نتیجه یې د ازمایئ! د مجهولو ضریبونو سره ارزښتونه راوباسئ; چې a او b یې نه شي غوره کولی یا نیولی.

دا ورکړئ چې مساوات د کومو a او b لپاره یواځنی حل لري، حل نه لري او یا ناپای ډېر حلونه لري.

همداسې تلنه طا رویه د نورو مجهولو ضریبونوسره هم وکړئ، چې په نورو برخو کې منځ ته راځي.

۱ . ۱ ـبې له کسرونو یا ماتونو مساوات حل کړئ.

1.1.1. a) $8\left(\frac{1}{2}x-1\right)-2(x-1)=0$

b) $(3-x)(x+4)-9=(3x-4)(8x-9)-(5x-6)^2$

c) $2a(x+3)=(3+x)(5+2a)$

d) $3a-(7b+11a)-(3x-12b-9c)=(3x-8a)+5b-(3c-6x)$

1.1.2. a) $(a-x)(x+c)=2c(a-x)-(b-x)(c-x)$

b) $a(x+1)(ax+b)+b(a+bx)(1-x)=x^2(a-b)(a+b)$

c) $(x+a)(a-x)-b(b-a)=(x+a)(b-x)$

d) $a^2(x-a)+ab^2=b^2(x+b)-a^2b$

۱ . ۲ ـ کسري مساوات په مخرج کې د ټاکلو ضریبونو او فاکتورونو سره .

1.2.1. a) $\frac{3x-16}{3}+\frac{2x-10}{5}=3-\frac{x+1}{15}$ b) $4-\frac{10-3x}{5}=3-\frac{10-7x}{10}+\frac{x}{2}$

c) $\frac{2x+1}{2}+\frac{3x+1}{4}+\frac{5x+1}{8}=1-\frac{7x+1}{8}$ d) $\frac{4x+1}{3}+\frac{6x-1}{2}=5+5\cdot\frac{8x-10}{9}$

1.2.2. a) $\frac{4x-3}{20}-\frac{1}{12}(4x-5)=1-\frac{3}{5}(2x+11)$

b) $3(6\frac{1}{2}+x)-\frac{7}{3}(2x-\frac{19}{2})-\frac{8}{3}x+\frac{5}{3}=0$

c) $\frac{7x-16}{3}-\frac{4}{5}(x+1)+6=\frac{3x}{2}$ d) $\frac{3x}{4}-\frac{4}{3}(x-4)=3$

---

1.2.3. a) $\frac{3x-7}{5}-\frac{7-4x}{7}=\frac{5x-11}{10}-\frac{19-10x}{14}$

b) $\frac{17+4x}{10}-\frac{7+x}{5}=\frac{7x+13}{25}-\frac{5+x}{20}$

c) $\frac{2x-11}{15}-\frac{x}{5}+\frac{59}{40}=\frac{8x-59}{30}-\frac{16x-145}{24}$

d) $\frac{4x+4}{5}-\frac{5x-4}{55}=\frac{2x+9}{4}-\frac{12x-3}{44}$

1.2.4. a) $\frac{5x+17}{3}-\left(\frac{3x+8}{2}-3\right)=\frac{3x+12}{2}-\left(\frac{x+4}{6}+3\right)$

b) $2-\left(\frac{3x+8}{4}-\frac{2x+2}{3}\right)=1-\left(\frac{7x+20}{8}-\frac{2x-7}{3}\right)$

c) $\frac{4-x}{2}-\left(\frac{8-x}{3}-\frac{x+2}{4}\right)+\left(\frac{8-x}{6}-\frac{3(2+x)}{8}\right)+x=1$

d) $\frac{10-14x}{8x}-\left(\frac{6}{5}+\frac{4}{2x}\right)=\frac{5}{8x}-\left(\frac{12}{5}+\frac{14x+1}{10x}\right)$

۱ . ۳ – کسري – یا ماتمساوات، چې په مخرج کې یې نا ټاکلي ضریبونه او فاکتورونه ورکړشوې وي.

1.3.1. a) $\frac{ax-1}{bcx}+\frac{bx-1}{acx}+\frac{cx-1}{abx}=0$

b) $\frac{ax-b}{bcx}+\frac{bx-c}{acx}+\frac{cx-a}{abx}=0$

c) $\frac{3(x-b)}{a}-\frac{2(x-a)}{b}-1=0$

d) $\frac{a-b^2}{x}-\frac{c-b^2}{x}-b=0$

1.3.2. a) $\frac{bx-a}{a}+b=bx-1$

b) $\frac{x-a}{a}-a=\frac{x-b}{b}-b$

c) $\frac{a+b}{x}-a=ab-\frac{a-b}{x}$

d) $\frac{ax^2-bx+1}{a}=\frac{bx^2-ax+1}{b}$

1.3.3. a) $\frac{bx-a^2}{a}+\frac{ax-b^2}{b}=\frac{b-ab}{a}+\frac{a-ab}{b}$

b) $\frac{20a-x}{5a}+\frac{6b-cx}{2b}=10-\frac{9c-ax}{3c}$

c) $\frac{a^3}{b}(x-1)-\frac{b+c}{b}(1-2x)=b^2(1-x)+\frac{b+c}{b}$

d) $\frac{x(b-a)}{ab}+\frac{b(c-x)}{ac}=\frac{x+b}{a}-\left(\frac{b}{c}+\frac{x}{b}\right)$

۱ . ۴ - کسري – یا ماتمساوات، چې په مخرج کې یې نا ټاکلي ضریبونه او فاکتورونه ورکړشوې وي.

---

1.4.1. a) $\frac{5}{x+2}+\frac{3}{2(x+2)}=\frac{1}{2}-\frac{7}{2(x+2)}$ b) $\frac{12x+5}{16x-15}-\frac{16x+1}{15}=\frac{3-2x}{5}-\frac{2x-1}{3}$

c) $\frac{10-2x}{3}+\frac{13+2x}{7}=\frac{14x+26}{2x+21}-\frac{17+8x}{21}$

d) $\frac{2x^{n}+7x^{n-1}}{9}+\frac{7x^{n}-44x^{n-1}}{5x-14}=\frac{4x^{n}+27x^{n-1}}{18}$

1.4.2. a) $\frac{8x+7}{9x^2-4}=\frac{16}{15x-10}$ b) $\frac{24-5x}{6-2x}-5=\frac{34-14x}{9-3x}$

c) $\frac{x+4}{12x+4}-\frac{x-4}{3x+1}=5$ d) $\frac{10x-11}{12x+18}=\frac{3}{2}-\frac{4x+1}{6x-9}$

e) $\frac{x}{x-2}-\frac{x-2}{3x-6}=\frac{1}{6}$ f) $\frac{8-x}{5-10x}=2-\frac{5}{3-6x}$

g) $\frac{12x}{10x+5}+\frac{6x-10}{2x+1}-\frac{2x+25}{12x+6}+\frac{10x-1}{8x+4}=2$

h) $\frac{3x-2}{5x+10}-10=\frac{2x+1}{3x+6}+\frac{2(1-4x)}{x+2}$ i) $\frac{6x-1}{4x-6}+\frac{10x-7}{6x-9}=11-\frac{14x+1}{8x-12}$

j) $\frac{3x}{2x-\frac{1}{2}}-\frac{16x^2}{3(4x-1)}=\frac{4(1-x)}{3}-\frac{4}{12x-3}$

1.4.3. a) $\frac{x-2}{x+2}-\frac{x+4}{x-2}=2\frac{x-38}{x^2-4}$ b) $\frac{12}{x+4}-\frac{x+4}{x-4}+\frac{x^2}{x^2-16}=0$

c) $\frac{5x^2-120}{10-x}+\frac{3x^2+80x}{10+x}=\frac{2x^3+160}{100-x^2}$

d) $\frac{15x+2}{5x-2}+\frac{25x-2}{5x+2}=\frac{200x^2-25x+18}{25x^2-4}$

e) $\frac{16x^2-20x+4}{4x^2-16}=\frac{2x-1}{2x-4}+\frac{3(2x+1)}{2(x+2)}$

f) $\frac{7x^2+8}{2(x^2-1)}=\frac{2(x+1)}{x-1}+\frac{3x-4}{2x+2}$

g) $\frac{16x^2-6x}{2x+1}-\frac{6x}{1-2x}=\frac{32x^3-16x^2+4x+16}{4x^2-1}$

۱ . ۴ . ۴ –

---

$$a)\ \frac{2x-5}{x-5}+\frac{3x-5}{x-9}=\frac{5x^2-39x+30}{x^2-14x+45}$$

$$b)\ \frac{2x-9}{x-12}+\frac{x-6}{x-24}=\frac{3x^2-87x-36}{x^2-36x+288}$$

$$c)\ \frac{11x+6}{x^2-3x-54}=\frac{3x-14}{2x-18}-\frac{3(x+2)}{2x+12}$$

$$d)\ \frac{7x-15}{3x-6}+\frac{8x-21}{3x-3}+\frac{10x+21}{3x^2-9x+6}=5$$

$$e)\ \frac{1}{3x+21}+\frac{1}{3(x-5)}-\frac{x+6}{4(x^2+2x-35)}=0$$

$$f)\ \frac{136x^2-4x-266}{48x^2-32x+5}=\frac{14x-19}{4x-1}-\frac{8x+25}{12x-5}$$

$$g)\ \frac{8x-3}{6x-4}+\frac{6x-4}{10x-6}=\frac{116x^2+10x-34}{60x^2-76x+24}$$

۱ . ۴. ۵ -

$$a)\ \frac{5x-12}{2}=\frac{5\cdot\left(\frac{1}{2}x^2+3\right)}{x+1}-\frac{7x-10}{2x-10}\qquad b)\ \frac{28}{45-7x}=\frac{5}{x-9}-\frac{9}{x-5}\ ;$$

$$c)\ \frac{x+6}{x-2}+\frac{3x-8}{x-4}=\frac{6(x+9)}{x+6}\qquad d)\ \frac{x-13}{x+3}+\frac{8x+45}{x+5}=\frac{9x+7}{x+2}$$

۱ . ۵ – کسري مساوات، چې په مخرج یا مات لاندې کې یې ناټکلي ضریبونه او فکتورونه ورکړ شوي وي.

۱ . ۵ . ۱ –

$$a)\ \frac{2a+x}{2a-x}=\frac{a+b}{a-b}\qquad b)\ \frac{a-b}{2c-x}=\frac{a+b}{2c+x}$$

$$c)\ \frac{a}{a-2x}-\frac{b}{b-2x}=0\qquad d)\ \frac{x-\sqrt{a}}{x-\sqrt{b}}-\frac{x-\sqrt{a}}{x+\sqrt{b}}=0$$

۱ . ۵ . ۲ –

a) $\frac{a}{x+b}-1=1+\frac{b}{x+b}$ b) $a-\frac{ax}{x-1}=\frac{1}{a}-\frac{x}{ax-1}$

c) $a+b+\frac{x}{a+b}=a-b+\frac{x}{a-b}$ d) $\frac{1}{a+b}+\frac{a+b}{x}=\frac{1}{a-b}+\frac{a-b}{x}$

e) $\frac{x}{ab}+ab=\frac{1}{a+b}+(a+b)x$ f) $\frac{ax}{b}+\frac{bx}{a}+\frac{2ab}{a+b}=\frac{(a+b)^2x}{ab}$

g) $\frac{a+1}{b}x+\frac{b+1}{a}x+\frac{2ab}{a+b}=a+b+1$

1.5.3. a) $\frac{2(6x^2-11a^2)}{4x^2-9a^2}=5-\frac{4x+a}{2x+3a}$ b) $\frac{a}{1-x}-\frac{b}{x+1}=\frac{(a-b)(ab+1)}{1-x^2}$

c) $\frac{2a}{2-x}-\frac{2b}{x+2}=\frac{4(a^2b+ab^2+a-b)}{4-x^2}$

d) $\frac{b-x}{a+x}+\frac{1-x}{a-x}=\frac{a(1-2x)}{a^2-x^2}$ e) $\frac{ax+b}{ab-b^2}-\frac{a-bx}{ab+b^2}=\frac{2(ax+b)}{a^2-b^2}$

f) $\frac{2a+ab^2x}{a+ab^2x}-\frac{a^2(3-2bx)}{a^2-a^2b^4x^2}=\frac{b^2(2ax-1)}{a^2-a^2b^4x^2}-\frac{ab^2x}{a-ab^2x}$

۶,۱ – کسرمساوات یا ماتبرابرون له دوه کسرونو سره

a) $\frac{\frac{2}{3}x-\frac{2}{3}}{\frac{2}{3}-x}-\frac{2}{3}=\frac{2}{3}-\frac{\frac{2}{3}x+\frac{2}{3}}{\frac{2}{3}-x}$ b) $\frac{\frac{3}{2}-\frac{1}{x}}{\frac{3}{2}+\frac{1}{x}}-\frac{\frac{2}{3}-\frac{1}{x}}{\frac{2}{3}+\frac{1}{x}}=\frac{\frac{3}{2}-\frac{2}{3}}{\frac{2}{3}\cdot\frac{1}{x}+1}$

c) $\frac{a-\frac{1}{x}}{a+\frac{1}{x}}-\frac{1}{x}=\frac{x-\frac{1}{a}}{x+\frac{1}{a}}-\frac{1}{a}$ d) $\frac{\frac{1}{a}-\frac{1}{x}}{\frac{1}{a}+\frac{1}{x}}=\frac{a-\frac{1}{x}}{a+\frac{1}{x}}$

### ۱ . ۷ . شي تمرینونه

۱ . ۷ . ۱ – که د یوه ګڼ څلور څله او ۱۴ زیاتون ۴۰ وي ، نو هغه ګڼ کوم دی؟

۱ ۷ . ۲ – که د یوه ګڼ څلورڅله او ۴ زیاتون ددې ګڼ او ۱۴ زیاتون سره برابر وي ، نو هغه ګڼ کوم دی ؟

۱ . ۷ . ۳ – د یوه ګڼ څلورمه برخه او پنځه څله ۴۲ ګڼ ورکوي ، نو هغه ګڼ کوم دی؟

---

۱ . ۷ . ۴ – که د يوه ګڼ څلوربرابره څخه ۲ کم شي او په يوه ګڼ وويشل شي چې ۴ ترې کم شوی او ۱۱ لاس ته ترې راشي، نو دا ګڼ به کوم وي؟

۱ . ۷ . ۵ – د يوه ګڼ پنځه ځله او د ۳ زياتو دوه ځله لوي دی. لکه د د ې ګڼ درې ځله او ۱ کمون. دا ګڼ کوم دی؟

۱ . ۷ . ۶ – د يوه ګڼ څلورځله او ۱۴ کمون نيم دومره لوي دی لکه ددې ګڼ دوه ځل او ۸ . دا ګڼ څه نوميږي؟

۱ . ۷ . ۷ – د يوه ګڼ شپږ ځله او د ۵ کمون يا توپير چې ددې ګڼ په څلور ځله او ۵ زياتون وويشل شي، ۱ ور کوي. دا ګڼ څه نوميږي؟

۱ . ۷ . ۸ – د يوه مات ماتباندې په ۵ له ماتلاندې کوچنی دی. که ماتباندې په ۲۳ او مات لاندې په ۸ لوي شي، نو د ورکړشوي مات په څېر ارزښت لاس ته ترې راځي. دا ګڼ څه نوميږي.

۱ . ۷ . ۹ – ۲۵ داسې په دوه ګڼونو بيل کړی يا تجزيه يا ټوټه کړی، چې د مربع توپير يې ۱۲۵ شي.

۱ . ۷ . ۱۰ – د دوه ګڼونو توپير يا کمون ۶ او مربع يې ۱۸۰ دی . ګڼونه څه نوميږي؟

۱ . ۷ . ۱۱ – دوه ګڼونه داسې تناسب کې دي، يا يو بل ته داسې ځانونه نيسی . که دوم په لمړی وويشل شي، نو ۲ لاس ته راځي او پاتې يې ۷ دي. دواړه ګڼونه کوم دي؟

۱ . ۷ . ۱۲ – د دوه ځاينيونکي ګڼ پروت زياتون ۱۲ دی. که له دې ګڼ ۱۸ کم شي، نو يو دوه ځاينيونکی ګڼ لاس ته راځي، د همغه ځايګڼونو سره مګر په څېر ترتيب سره.

۱ . ۷ . ۱۳ – يو زدکړی غواړي د يوه ګڼ څخه مربع ريښه د يو په بل کې بندولو پرينځيپ يا اصول له لارې پيدا کړي. دی لمړی يو ګڼ د ريښې په څير

ټاکي، چې مربع يې په ۲۷ کوچنی دی. بيا يوه ريښنه ټاکي ، کومه چې دوه له هغه لوي دی چې لمړی ټاکل شوی. ددې ريښې مربع په ۳۳ لوي دی ، هغه ګڼ کوم دی چې مربع ريښه يې غواړو پيدا کړو ؟

۱ . ۷ . ۱۴ – يو د سپورت ملګرو ټولنه له څلورو ډلو جوړه ده. لمړی ډله ۳۷ دملګرو غړي لري، په داسی حال کی چې نورو ډلی 1 / 4 , 1 / 5 , 1 / 2 په همدې ډول غړي په بر کی نيسي. د غړو شمير څومره دی او د هرې ډلی څومره دي

۱ . ۷ . ۱۵ – يو نفر په درې ورځو کی مجلی په داسی شمير خرڅوي: په لمړی ورځ 1 / 9، دومه ورځ 1 / 6 او په دريمه ورځ 1 / 4 د مجودو لوټوکه .

دی اوس له هغومجلو د نيمايي دوه کمي د ځان سره لري. هغه څومره مجلی د خرڅلاو لپاره لرودې؟

۱ . ۷ . ۱۶ – يوه ميلمه د يوه زدکوونکی ښځه د هغه د عمر پوښتنه وکړه. زدکوونکي په ټوکه ځواب ورکړ« ځما پلار چی درې مياشتی پخوا يی خپله ۵۵ کلنی ولمانځله، ځما د عمر څلورواره ځخه 1 / 4 زيات زوړ دی.» زدکوونکی څومره عمر لري؟

۱ . ۷ . ۱۷ – د يوه زدکوونکي پلار څلورنيم ځله زوړ دی لکه د هغه ځوي. دواړه ۲۷ کاله د هغه د يو اوياکلن نيکه ځخه ځوان دي، پلار او ځوي څومره زاړه دي؟

۱ . ۷ . ۱۸ – په يوه معما کی يو زدکوونکی د ې بل ته وايي: « که زه لما سره بټوه کی پيسو سره ۵،۲ افغانی ور زياتي کړم ، زياتون يی له ۵ سره ځل يا ضرب کړم او له دې ځل ځخه ۱۲ کمی کړم او دا لاس ته راغلی کمون يا توپير په 11 وويشم نو نتيجه يی ۸ افغانی ده. » هغه زدکوونکی په خپله بټوه کی څومره پيسی لري؟

---

۱ . ۷ . ۱۹ – په يو په بل پسې تړلو مقاومتونو کی لمړی او دوهم يو ډول لوي دي،
دريم دوه ځله او څلورم دريځله دومره لوي دي لکه لمړی دوه ياد شوي
مقامتونه، ټول مقاومت ۱۰۵۰ ( اوميګا ) ، په دې پروت شپانونک
۱۱۰ ولټه دی. اوس الف ) يوګونی مقاومتونه څومره لوي دي، ب
برققوه، برخه مقاومتونه ؟

۱ . ۲۰.۷ – د دوه غبرګ چالان عمومي مقاومت ( ماته متأسفانه په افغانسان کی د
فزيك مروج نومونه دې معلوم، خو فکر کوم چې په هدف به پوه شو ) دی
a) $1000\Omega$ , b) $2000\Omega$
يو مقاومت $4000\Omega$ دی، هغه بل څومره لوي دی؟

۱ . ۷ . ۲۱ . د دريې غبرك قاومتونو څخه يې دوم دوه واره دومره لوي دی لکه لمړی
او دا دريم يې درېواره دومره لوي دی لکه دوم ، هر مقاومت څومره لوي
دی، که عمومي مقاومت a) $12k\Omega$, b) $300\Omega$ وي؟

. ۲۱ . د دريې غبرګو مقاومتونو څخه يې دوم دوه واره دومره لوي دی لکه لمړی
او دا دريم يې درېواره دومره لوي دی لکه دوم ، هر مقاومت څومره لوي
دی، که عمومي مقاومت الف ) $12k\Omega$
ب ) $300\Omega$ وي؟

. ۲۲ په اوبو کي يو د لرګي منډه بايد څومره لوي وي، چې د لمبيدو استعداد
يې ۷۵۰ نيوټونه وي او د لرګي خاص وزن يا کلکوالی ( د فرمول څخه
معلوميږي چې دا څه شی دی ) $4\frac{N}{dm^3}$ وي؟

---

۷ . ۲۳ د سونګموادو ټانك د دوم ماشین لپاره ۴۰ لیتره ګډوډ د سونګ مواد لري.
څومره تیل او څومره بتزین په ټانك کی موجوددي که ګډونه یې وي؟

۷ . ۲۴ د ښار د ښکلا لپاره د ښارمنځ د سرك په اوږدوالي ۸۵ ونی کینول کیږي.
دا چی د مخه خرکړ شوی او تل همغه واټن په یوه متر کوچنی شي ، نو په
سرك بیا ۲۰ ونی زیاتی کینښول کیدی شي. د دې هرې ونې واټن وبلی ته
څومره لویي دی؟

۷ . ۲۵ د بایسکلځغلونوکو ډله له سر څخه ۵۰ متره اوږدوالی لري. هغه ۴۵
کیلومتره په ساعت کی سرعت لري، چی په یوه پله چی اوږدوالی یی
متره دی ، څومره وخت ته ضرورت لري، چی له پله پورې لاړ شي.

۷ . ۲۶ واورومنډه کي ، دا وروستنه وړونکی د پروسږکلني وړونکی څخه یوه نیمه
دقیقه وروسته په ځغاسته پیل کوي. د څو کیلو متره وروسته دی کړی
چی لمړني ځغلیدونکي څخه مخ ته شي، که د ده منځنی سرعت ۵ متره
ثانیه کی وي او د لمړي ۸ ، ۴ متره په ثانیه کی وي ؟

۷ . ۲۷ د تامنځي د دز سره د سپورت میله کي ۲۰۰ متره ځغاستی د منډې ډله په
ځغاسته پیل کوي. ځغلیدونکی د پیل کرښي څخه لس متره شا ته ولاړدي.
برخه نیوونکی په منډه پیل کوي ، چی د تومانچی د ډز کرد وګوري دو
وخت توپیر څومره دی، که غږ رسیدنه په نظر کی ونه نیول شي او د غږ
سرعت ۳۴۰ متره په ثانیه کی وي؟

# ۱۰ کومبیناتوریك - د بینوم جمله

کومبیناتریک څخه په شمیرپوهنه کې د دې لپاره کار خلي، چې یو ګڼ ، پل ځاي بدلو
څومره والښاي او که څو ګنونهخپل ځاي بدل کړې دا څنګه لیکل کیږي۰ د ځای بدلون
شمیرنه ده
او د هغې ډولونه۰
په ۱۰ ۱۰ ۱ او ۱۰ ۲۰ برخو کې به د شمیرپوهنی مرستندوي مواد د بینوم
جملی(۳.۱۰)
برخه( او کومبیناتوریك ( ۱۰ . ۴ برخه) د فاکولتیت کلیمي او بینومیالکوایفیڅینت
(بینوم ځلوني) پیل شي .

## ۱۰ . ۱ فاکولتیت Die Fakultät, factorial

پیژند ۱۰ . ۱ :
د n!سومبول (ویل کیږی n « فاکولتیت « ) لاندې سړی له1 تر n پورې ګڼونو ضرب
پوهیږي، یعنی $n! = 1.2....(n-2).(n-1).n$ برسیره پر دې تعریفوو: $0! = 1$

د فاکولتیت له پیژند څخه څرګندیږي، چی ( $(n+1)! = n!.(n+1)$ لرو.

---

یادونه:
په افغاني ادبیاتو کی تر هغي چی ماته معلومات شته د فاکولتیت په ځاي فاکتوریال لیکل شوی. ما په دې کتاب کی دا د الماني کلیمه یا پښتو ، ځله ووني،، زیات کاره ولی، هیله ده چی تاسو به یی په خپله خوښه وټاکی. په دې کی کومه سهوه منځ ته نه شي راتلی۰

بیلګی :

الف $n!$ : د $n = 5$ لپاره په دې ډول دی: $5! = 1 . 2 . 3 . 4 . 5 = 120$

ب : په دې ډول دی : $0!.2!.4! = 1.(1.2).(1.2.3.4) = 48$

پ: په دې ډول دی: $5!/3! = 1.2.3.4.5 / 1.2.3 = 4.5 = 20$

ت : په دې ډول دی

$$(n+2)!/(n-1)! = 1.2.3....(n-1)(n).(n+1).(n+2)/1.2.3...(n-1)$$
$$= n.(n+1).(n+2)$$

ټ: داسی دی

$$2.n! = 2.(1.2....n),$$
$$(2.n)! = 1.2....n.(n+1)....2n.$$

۱۰ . ۲ د بینوم ځلووني یا ضریبونه

پیژند: ۱۰ . ۲

د سیمبول $\binom{n}{k}$ ( وییل کیږي n « پر » k لاندې د دوه ځله ونو ویش پوهیدل کیږي چی هر یو k ځله ووني یا ضریبونه یا فاکتورونه لري :

$$\binom{n}{k} = \frac{n}{1} \cdot \frac{n-1}{2} \cdot \ldots \cdot \frac{n-k+1}{k} = \frac{n \cdot (n-1) \cdot \ldots \cdot (n-k+1)}{k!} = \prod_{i=1}^{k} \frac{n+1-i}{i}$$

برسیره پر دې دا هم په کلکه کره کیدلی شي:

$$\binom{0}{0} = 1; \quad \binom{n}{n} = \binom{n}{0} = 1; \quad \binom{n+1}{k+1} = \binom{n}{k} + \binom{n}{k+1};$$

---

$$\binom{n}{1} = n$$

د k ګڼ یو پیدایښتي یا طبعي ګڼ دئ او د ماتلاندې او مات باندې ګڼونو ګڼون یا تعداد ښایي،په مات لاندې کي د لومړیو k پیدایښت یا طببعي ګڼونو فاکتورونه دي. دn ګڼ رییل دی او د مات پورته لومړنی فاکتور دئ. دوم فاکتور1 - n ، دریم n-2 تر k –م فاکتور n-k+1 پورې . دا $\binom{n}{k}$ سومبول د اویلر( leo nard Euler له ۱۷۰۷ - ۱۷۸۳سویسي ګڼپوه، فزیکپوه او استرولوګ) لخوا د لومړې ځل لپاره پیل شو، له دې امله ورته د اویلر سومبول وایي پرتله یا مقایسه برخه ۱۰ . ۳ (. که څوك دیوه بینوم پوتنځ یا توان شمیري ) ۱۰ . ۳ برخه(، نو سیمبول $\binom{n}{k}$ لاس ته راځي چی د یوا-

ځنیو زیاتونونو ځلونه دي، او له دې امله ورته بینوم ضریب یا بینوم ځله ووني ویل کیږي.

بیلګی :

$$\binom{5}{3} = \frac{5!}{3! \cdot 2!} = \frac{5 \cdot 4 \cdot 3!}{2! \cdot 3!} = \frac{5 \cdot 4}{2!} = \frac{20}{2} = 10$$

$$\binom{49}{6} = 13.983.816 \text{ ،} \binom{3}{5} = 0$$

$$\binom{2}{1/3}$$

تعریف نه دی ، ځکه چی 1 / 3 پیدأیښتي یا طبعي ګڼ نه دئ.

د بینوم ضریبونو یا ځلونوخویونه:

---

۱ - د $n<k$ ، $n,k \in N$ لپاره باور لري $\binom{n}{k} = 0$
که n یو طبعي ګڼ وي او لهk کوچنی وي، نو صفر په ماتباندې کی یوځله وونی

یا ضیرب دی
۲ - د $n > k$ ، $n,k \in N$ لپاره باور لري

$$\binom{n}{k} = \binom{n}{n-k} = \frac{n!}{k!(n-k)!}$$

اوبیونه (حل ): سرې د !(n-k) سره د مات $\binom{n}{k}$ پراخوالي له امله لاس ته راوړي

$$\binom{n}{k} = \frac{n}{1} \cdot \frac{n-1}{2} \cdot \ldots \cdot \frac{n-k+1}{k} = \frac{n \cdot (n-1) \cdot \ldots \cdot (n-k+1)}{k!} = \prod_{i=1}^{k} \frac{n+1-i}{i}$$

دا پورته برابرون له $\frac{(n-k)!}{(n-k)!}$ سره ځلوو، نو لاس ته راځي

$$\binom{n}{k} = \frac{n!}{k! \cdot (n-k)!}$$

له دې نور لاس ته راځي، که د k په ځاي n - k ولیکل شي

$$\binom{n}{n-k} = \frac{n!}{(n-k)!(n-n+k)!} = \frac{n!}{(n-k)!k!}$$

۳ - باور لري

$$\binom{n}{k} + \binom{n}{k+1} = \binom{n+1}{k+1}$$

حل (اوبی) : د کښې اړخ زیاتون څخه دا لاندې لاس ته راوړل کیدی شي، که د بینوم ضریبونه یا ځلووني د ماتو په څیر ولیکل شي ، ماتونه ور زیات کړي او د زیاتونون ګډ فاکتورونه چې په ماتباندې کی دی په نوکانو کی ونیسي اوپاتی ساده کړي :

---

$$\binom{n}{k}+\binom{n}{k+1}=\frac{n(n-1)...(n-k+1)}{k!}+\frac{n(n-k)...(n-k+1)(n-k)}{(k+1)!}=$$
$$=\frac{n(n-1)...(n-k+1)+n(n-k)...(n-k+1)(n-k)}{(k+1)!}=$$

$$=\frac{n(n-1)...(n-k+1)[k+1+n-k]}{(k+1)!}=$$
$$=\frac{n(n-1)...(n-k+1)(n+1)}{(k+1)!}$$

كه په پورته ۱ افاده يا وبينه كې د مات پورته اخرنى فاكتور د لومړي ځله ووني په ښير وليكل شي، لاندې بينوميال يا بينوم ځلونى ( ضريب) تعريفوي:

$$\binom{n+1}{k+1}$$

۱۰ . ۳ د بينوم جمله

د بينوم لاندې سرى د دوه توكو ( ګڼونو) زياتون پو هيږي. يعني: x+y
د بيونم جمله موږ ته ښايي چى څنګه د يو بينوم

$$(x+y)^n$$

پوتنځ، چى پيدايښتي ګڼ n يى ايكسپوننت يا جكګڼ يا لنډ جګ وي، د زياتون په ښير پر مخ بيول كيږي. كه د x + y بينوم پوتنځ د n = 0,1,2,3,4,5,6 اكسپوننت لپاره شميرو، نو لاندې نتيجه لاس ته راوړو :
پاسكال دريګوډى

$$(x+y)^0=..................1$$
$$(x+y)=..................x+y$$
$$(x+y)^2=..............x^2+2xy+y^2$$
$$(x+y)^3=............x^3+3x^2x+3xy^2+y^3$$
$$(x+y)^4=.........x^4+4xy+6x^2y^2+4xy^3+y^4$$
$$(x+y)^5=....x^5+5x^4y+10x^3y^2+10x^2y^3+5xy^4+y^5$$
$$(x+y)^6=x^6+6x^5y+15x^4y^2+20x^3y^3+15x^2y^4+6xy^5+y^6$$

---

په دې د زیاتونونو پرمخبیولوکی یو قانونیت لیدل کیږي. د زیاتونو ګڼون(شمیر، تعداد) د بینوم د اکسپوننت څخه په یو لوي دئ . ټول زیاتونی د x او y پوتنځ ځل لري، په داسی ډول چی د x اوy پوتنځ زیاتون په n برابرېږي او په دې ډول د x پوتنځ په کمیدلو) د y پوتنځ په زیاتیدلو دx په اکسپوننت په ترتیب پرلپسی

$n , n-1, ....1 , 0$

د yاکسپوننت په ترتیب 0,1 n-1,n..,دي. د بینوم پوتنځ کوایفځینتونه داسی په نامه پاسکال Blaise Pascal( ۱۶۲۳ - ۱۶۶۲ فرانسوي شمرنپوه( ګڼوندریګوډی جوړوي .

$$
\begin{array}{ccccccccccccccc}
&&&&&&&1&&&&&&&\\
&&&&&&1&&1&&&&&&\\
&&&&&1&&2&&1&&&&&\\
&&&&1&&3&&3&&1&&&&\\
&&&1&&4&&6&&4&&1&&&\\
&&1&&5&&10&&10&&5&&1&&\\
&1&&6&&15&&20&&15&&6&&1&\\
1&&7&&21&&35&&35&&21&&7&&1
\end{array}
$$

په دې کی هر ګڼ د دواړو پورته کیڼ-ښي پرتوګڼونوزیاتون دئ، چی بي له کړاو د نورو اکسپوننتویا په جګو ,n = 7,8... .. لپاره پرمخ بیول کیدی شي. د ډیرو لویو اکسپوننتو n لپاره بیا هم دالار له کړاو ډکه ده لیونارد اویلرLeonhard Euler د کومبیناتوریك فکرونو کی د کوایفیځینتونو یووني یا یوونوالي یا بهتره یوونوالیز ستروکتورونه یا جوړښتونه وپیژندل. په n -م n ( د بینوم جګ یا اکسپوننت ( لیکه اوK- م ځای، n ,.... , 1 , 0 = k کی ولاړ ضریب دفورم څخه دئ) له کومه امله چی په ۱۰ . ۲ برخه کی د اویلر سومبول په نوم داسی بلل شوي د بینوم ضریب په
ځیر رامنځ ته شو)که د پاسکال ګڼونو دریګوډی د اویلر سومبول استعمال په ځیرولیکل شي نو لاس ته راځي۰

-------------------------------------------------------------------------------------

$$\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\binom{0}{0}$$

$$\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\binom{1}{0}\binom{1}{1}$$

$$\ldots\ldots\ldots\ldots\binom{2}{0}\binom{2}{1}\binom{2}{1}$$

$$\ldots\ldots\ldots\binom{3}{0}\binom{3}{1}\binom{3}{2}\binom{3}{3}$$

$$\ldots\ldots\binom{4}{0}\binom{4}{1}\binom{4}{2}\binom{4}{3}\binom{4}{4}$$

$$\ldots\binom{5}{0}\binom{5}{1}\binom{5}{2}\binom{5}{3}\binom{5}{4}\binom{5}{5}$$

$$\binom{6}{0}\binom{6}{1}\binom{6}{2}\binom{6}{3}\binom{6}{4}\binom{6}{5}\binom{6}{6}$$

داويلر سومبول کی د فاکتور پرځاي ، چې ګڼونه دی ، سومبول $\binom{n}{k}$ ليکل کيږي.

يادونه : ما کله $a,b$ او کله بيا $x,y$ ليکلي، دا په يو ډول ليکنه ښکاريږي،
خو زه کله کله داسې ستونځې لرم .
په ۱۰ . ۲ برخه کی د بينوميالکوايفيځينت لپاره ښوول شوو خويونو ۲ په بنسټ د پاسکال
دريګوډي منځنی محور ته سيومتري پراته کوايفيځينته سره مساوي دي. داچی هر کو-
ايفيځينت ورباندې پورته کوايفيځينتونو زياتون سره مساوي دی په ۳ کی وښوول شو)
د تمرين وظيفه ۱۰ . ۴ دې هم ورسره پر تله ) مقايسه( شي ) د اويلر سيمبول په
استعمال
د يوه بينوم $(a+b)^n$ د پوتنځ د زياتون پرمختګ د يوه طبيعي ګڼ n لپاره په لاندې ډول
ليکلو ته اجازه راکوي

---

جمله ۱۰ . ۱ ( د بینوم جمله)

$$(a+b)^n = \binom{n}{0}a^n + \binom{n}{1}a^{n-1}b + \binom{n}{2}a^{n-2}b^2 + \ldots + \binom{n}{n-1}ab^{n-1} + \binom{n}{n}b^n$$

$$= \sum_{i=0}^{n}\binom{n}{i}a^{n-i}b^i$$

اوبنونه ( حل): د پوره ایندکشن له لارې:

د ایندوکشن پیل : ( n = 0 )

$$(a+b)^{k+1} = \binom{k+1}{0}a^{k+1} + \binom{k+1}{1}a^k b + \binom{k+1}{2}a^{k-1}b^2 + \ldots + \binom{k+1}{k}ab^n + \binom{k+1}{k+1}b^{k+1}$$

$$(a+b)^0 = \binom{0}{0}a^0 = 1$$

د ایندکشن نیونه : ( n = k )

$$(a+b)^k = \binom{k}{0}a^k + \binom{k}{1}a^{k-1}b + \binom{k}{2}a^{k-2}b^2 + \ldots + \binom{k}{k-1}ab^{n-1} + \binom{k}{k}b^k$$

د اندکشن غوښتنه: (n = k + 1 )

$$(a+b)^{k+1} = \binom{k+1}{0}a^{k+1} + \binom{k+1}{1}a^k b + \binom{k+1}{2}a^{k-1}b^2 + \ldots + \binom{k+1}{k}ab^n$$

$$+ \binom{k+1}{k+1}b^{k+1}$$

دایندکشن ښوونه:

$$(a+b)^{k+1} = (a+b)^k (a+b)$$

$$= \binom{k}{0}a^{k+1} + \binom{k}{1}a^k b + \binom{k}{2}a^{k-1}b^2 + \ldots + \binom{k}{k}ab^k$$

$$+ \binom{k}{0}a^{k+1}b + \binom{k}{1}a^{k-1}b^2 + \binom{k}{2}a^{k-2}b^3 + \ldots + \binom{k}{k-1}ab^k + + \binom{k}{k}b^{k+1}$$

---
که یو د بل سره (یو د بل لاندې په څنګ یا کږې پرتی) برابر پوتنځ یا توان څلونه د اویلر فرمول یا سومبول د زیاتونخویونو د استعمال له لارې سره راټول (یوځای) شي

$$C_{W_6}^{(4)} = \binom{6+4-1}{4} = 126$$

$$\binom{k}{1}+\binom{k}{0}=\binom{k+1}{1},\binom{k}{2}+\binom{k}{1}=\binom{k+1}{2},\dots,\binom{k}{k}+\binom{k}{k-1}=\binom{k+1}{k}$$

لومړي او اخر زیاتون ضریبونه ولیکل شي نو غوښتل شوې اړیکی لاس ته راځي

$$\binom{k}{0}=\binom{k+1}{0},\binom{k}{k}=\binom{k+1}{k+1}$$

د (a-b)=a+(-b) له امله د بینوم له جملی د یوه n -م پوتنځ دکمون څخه لاس ته راځي

$$(a-b)^n = \binom{n}{0}a^n - \binom{n}{1}a^{n-1}b + \binom{n}{2}a^{n-2}b^2 - \binom{n}{3}a^{n-3}b^3 + \dots \pm \binom{n}{n}b^n$$

$$= \sum_{i=0}^{n}\binom{n}{i}a^{n-i}(-b)^i$$

بیلګي:

$$(x+y)^3 = \binom{3}{0}x^3 + \binom{3}{1}x^2y + \binom{3}{2}xy^2 + \binom{3}{3}y^3 = x^3 + 3x^2y + 3xy^2 + y^3$$

$$(x-y)^3 = \binom{3}{0}x^3 + \binom{3}{1}x^2(-y) + \binom{3}{2}x(-y)^2 + \binom{3}{3}(-y)^3 = x^3 - 3x^2y + 3xy^2 - y^3$$

## ۱۰ . ۴ کومبیناتوريك:

کومبیناتوريك د یوې ډیرۍ د پای غړو یوځای درولو یا راوړلو ترتیب قوانینو سره سر او کارلري. کیدی شي د ټولو غړو یا یوې برخي یوځاییولو په څیر راوړل شي، په یوځاییولو کی کیدی شي د غړو ترتیب یو رول ولوبوي او یا هم نه، او همدارنګه په راںوځاییولو کی

کیدی شي د غړو تکرار راشی او یا هم نه. له دې امله د یوځاییولو یا ټولګی دریو ډولونه توپیروو( Komplexion هم ورته وایي )، په نامه پرموتیشن، وارییشن، کمبینیشن ( Permutation, Variation, Kmobination) کوم چې په لاندې برخو کی یو په بل پسی څیړل کیږي او په اخرنی جدول کی به لیدیدونکی څرګند شي یا لیدوړو ښوول شي

۱۰ . ۰ ٤ . ۱۱ **پرموتیشن** Permutare
( لاتین: ..سره بدلول، دلته دا اصلاً ځاي بدلون دی. لنډ: بدلون)

پیژند ۱۰ . ۳ :
د n غړو یو پرموتیشن ( ځاي بدلون )بې له تکرار داسی »یوځاي درول« دي، په کوم کی
چي n غړي په یوه د زړه پوري ترتیب کی څنګ په څنګ ولاړ وي. د n غړو مختلفه ترتیبونه
تل د مختلفو پرموتیشنونو یا ځاییدلونونو په مانا ده
بیلګی:

۱ - د دوه غړو پرموتیشن

الف : 1 2 دی 12 21

ب : a , m دی a m m a

۲ - د دری غړو پرموتیشنونه
الف : ۱ ، ۲ ، ۳ دي:

۱۲۳ ۲۱۳ ۳۱۲

۱۳۲ ۲۳۱ ۳۲۱

ب : a,m,s دی:
ams mas sam

asm msa sma

---

۳ - د څلور غړو پرموتيشنونه

الف : 1,2,3,4 دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| 1234 | 2134 | 3124 | 4123 |
| 1243 | 2143 | 3142 | 4132 |
| 1324 | 2314 | 3214 | 4213 |
| 1342 | 2341 | 3241 | 4231 |
| 1423 | 2413 | 3412 | 4312 |
| 1432 | 2431 | 3421 | 4321 |

دا پورته پرموتيشنونه له پورته وکښته لور ته ليکسيکايي ترتيب دي، دې ته به د کرانو لوستونکو پام وي، وروسته هم همداسی دي، که دا توري وي او که ګڼونه ۰ په ګڼونو کی پيدايښتي ده، چې د پښتو ليکسيکايي ترتيب پچه [ام کی نيول شوی۰له ښي لور کښته بيا بيرته ګين لور خوزښت دی۰

ب : a,m,s,u دي:له کښ کښته لور ته بيا بيرته پورته

| | | | |
|---|---|---|---|
| amsu | masu | samu | uams |
| amus | maus | saum | uasm |
| asmu | msau | smau | umas |
| asum | msua | smua | umsa |
| aums | muas | suam | usam |
| ausm | musa | suma | usma |

---

ب ( ا ت ج ک دي:دلته طبعاً له ښي وکيڼ لورته ترتیبیږي(

| | | | |
|---|---|---|---|
| اتجک | تاجک | جاتک | کاتج |
| اتکج | تاکج | جاکت | کاجت |
| اجتک | تجاک | جتاک | کتاج |
| اجکت | تجکا | جتکا | کتجا |
| اکتج | تکاج | جکات | کجات |
| اکجت | تکجا | جکتا | کجتا |

د ټولو پرموتیشنونود لیکلو لپاره مرستندوی مواد، د بیلګی په ډول له څلورو غړو څخه د ۲۴ پرموتیشنونو، لیکسیکني ترتیب، دا په دي مانا چی د لیکسکا لغاتو ترتیب ته »کتٻ متٻ« (ورته) دی، چی د غړو پیدایښتي لړی مخته پرته وي ( په تورو، په ګنونوکنطبعی یو په بل پسي). دبیلګي په توګه د غړو a , m , s , u ۲۴ پرموتیشنونه په لکسیکا ترتیب ورکړ شوي. د دې غړو) یا تورو( جوړ شوي پرموتیشنونه ) لغاتونه( maus همدا رنګه saum په دې ترتیب کی ۸ -ام همدا ډول په ۱۴ -ام ځاي کی ولاړ دي. همدا ډول په ب ( کی د څلورو تورو ا ، ت ، ج ، ک پرموتیشن ورکړ شوی چی ۸ -۱م ځا ي کی يي تاکج ولاړ او په ۱۵ – م ځای کی يي جتاک ولاړ دی.



---
د پورته دريِ غونډارو لپاره نظم يا ترتيب ۲ ۰ ۳ = ٦ دی٠

که لیکو ، چې 1.2.3.4.5.6نو ددې پرځاي لیکو :720 = !6

جمله ۱۰ . ۲ :

د پرموتیشنونو Pn ګڼون ( شمیر یا تعداد) ، د n یوله بل مختلفو غړو، په لاندې

ډول دی : $P_n = n!$

اوښونه : د پوره ایندکشن له لارې :

داپندکشن پیل : $(n = 1):\quad P_1 = 1! = 1$

د ایدکشن نیونه : $(n = k):\quad P_k = k!$

د ایندکشن غوښتنه : $(n = k+1):\quad P_{k+1} = (k+1)!$

د ایندکشن ښوونه : k غړو ته په !k پرموتیشنونو کی د ځل په څیر یو( k+1 ) -ام غړی راځي. دا ( k+1 ) - ام غړی کیدی شي له لومړې تر ( k+1 ) - ام ځاي پورې ودریږي، داسی چی د ( k+1 ) -ام غړي ورنیولو د هر k غړو پرموتیشن k+1 پرموتیشنونه د k+1 غړو پرموتیشنونه شي. له دې امله باور لري

$$P_{k+1} = P_k\,(k+1) = k!(k+1) = (k+1)!$$

بیلګه :

په څومره مختلفو لړیو پرلپسی ( دا مرضوع په ۱۸ برخه کې کتلی شئ) کی لس زدکوونکی په یوه لیست کی خپل نومونه لیکلی شي ؟

اوبی یا حل : $P_{10} = 10! = 3628800$ •

------------------------------------------------------------------------------

پيژند ۱۰ . ۴ :

هر د k غړو ترتيبونه، د کومو څخه چې i-ام غړی ni - ځله رامنځ ته کيږي،

د $i = 1, 2, ..., k$ لپاره، نو پرموتيشن د تکرار) د تکرارسره پرموتيشن( سره نوميږي . د غړو شمير په پرموتيشن کی بيا داسی دی $n = n_1 + n_2 + ... + n_k$

بيلګی :

۱ - د دوه غړو $a, b$ پرموتيشن په کوم کی چی غړی a يو ځل او غړی b دوه ځله رامنځ ته کيږي،

$(k = 2; n_1 = 1; n_2 = 2; n = n_1 + n_2 = 1 + 2 = 3)$

په دې ډول دی: abb bab bba

۲ - د غړو $a, b$ پرموتيشن، په کوم کی چی a دوه ځله، غړی b درې ځله رامنځ ته کيږي $(k = 2; n_1 = 2; n_2 = 3; n = n_1 + n_2 = 2 + 3 = 5)$ په لاندې ډول دی

abbba abbab ababb aabbb
babba babab baabb
bbbaaa bbaba bbaab

جمله ۱۰ . ۳ : د k غړو د پرموتيشن ګڼون يا تعداد $P_n^{(n_1, n_2, ..., n_k)}$ ، له کومو چی i-ام غړی ni -ځله رامنځ ته کيږي ، په لاندې ډ ول دی:

$$P_n^{(n_1, n_2, ..., n_k)} = \frac{n!}{n_1!.n_2!....n_k!}$$

حلونه يا اوبيونه: که په پرموتيشن کی $n = n1 + n2 + ... + nk$ (دلته دې ګڼونه دn اينډکس کې ومنل شي) غړو يو له بل توپير لرودی ( مختلف وي ) ، نو $n!$ پرموتيشنونه

به موجود وی، که i - ام غړی ni -ځله رامنځ ته شي، داچی د ni غړو لپاره ni!
پرموتیشنونه موجود دي، نو ni پرموتیشنونه د یوه پرموتیشن په څیر رایو ځاي کیږي،

دا په دې مانا چی د!n شمیر په $n_i!$ باید وویشل شي (i = 1 . ..., k)

بیلګی :

۱ - د k = 2 مختلفو غړو پرموتیشن، په کوم کی چی لومړی ( $n_1$-1 )- ځله او دویم ( $n_1$-2 )- ځله رامنځ ته کیږي، دی:

$$P_3^{(1,2)} = \frac{(1+2)!}{1!2!} = \frac{3!}{1!.2!} = 3$$

۲ - د k = 2 مختلفو غړو پرموتیشن، په کومو کی چی لومړی (n1=2) -ځله او دویم ( n2 = 3 ) -ځله رامنځ ته شي، دی

$$P_5^{(2,3)} = \frac{5!}{2!.3!} = 10$$

۱۰ . ۴ . ۲ واریيشن اوښتنه یا بدلیدنه Variation :

تعریف ۱۰ . ۵:

د n غړو واریشن (بدلیدنه یا اووښتنه Variation ) لاتین( بدلونه اووښتنه تغیرونه یا بیا تغیرونه) و k -ام ټولګي ته( وهرې k ټوټی ته، $n \le k$ ) هر له k غړو یوځانکول ( یوځاي درول، یوځاي لیکل) دی، کوم چی د n غړو د لړۍ پرلپسی په نظر کی نیولو سره جوړیږي..

بیلګي:

۱ - د درې غړوa,b,c واریيشن و دویم ټولګي ته دي :

ab ba ca
ac bc cb

۲ - د څلورو غړو d , a , b , c واريېشنونه و ۲ - م ټولګي ته دي:

ab ba ca da
ac bc cb db
ad bd cd dc

د څلورو غړو d , a , b , c واريېشنونه و ۳ - ۱م ټولګي ته دې

dab cab bac abc

dac cad bad abd

dba cba bca acb

dbc cbd bcd acd

dca cda bda adb

dcb cdb bdc adc

۳ - د پنځه غړو 1 , 2 , 3 ,4, 5 واريېشنونه و ۲ - ۱م ټولګي ته دي

51 41 31 21 12

52 42 32 23 13

53 43 34 24 14

54 45 35 25 15

---

د n غړو واريشنونه و n -ام تپولګي ته د n غړو پرموتيشن سره يو شی يا براابر کيږي

جمله ۱۰ ۰ ٤ :

د n غړو و k -ام تپولګي ته د واريشنونو ګڼون (تعداد) $V_k^{(k)}$ دی :

$$V_k^{(k)} = n(n-1).(n-k+1) = \frac{n!}{(n-k)!}$$

اوبږونه : د مکلمل (پوره يا بشپړ ايندکشن له لارې ) ايندکشن په k اړه لري، n ځاي په ځاي دی يا ځاي په ځاي کلك ولاړ دی

ايندکشن پيل :( k = 1 )

$$V_n^{(1)} = n!/(n-1)! = n$$

تيك ( صحيح) دی ، ځکه چی له n غړوکيدی چی له يوه غړی جوړ واريشنونه جوړکړی شي.

ايندکشن نيونه : ( k = k0 ) :

$$V_n^{(k_0)} = n!/(n-k_0)!$$

ايندکشن غوښتنه(ثبوت: ):( k0 +1 = k )

$$V_n^{(k_0+1)} = n!/(n-k_0-1)!$$

دايندکشن ښوونه : د k0 - م درجی هر واريیشن لپاره، په دې واريیشن کی نه رامنځ ته کيدونکو پاتی n - k0 غړو شمير دی .که په ترتيب يو له دې n - k0 غړو د دې k -م تپولګی واريشنونو $V_n^{(k)}$

------------------------------------- ----------------------------------------

په اخرکی ځاي په ځاي شي، نو له دې یو دk+1 ټولګي n - k0 واریشنونه لاس ته راځي، او که دا کار په ټولو واریشنونو $v_n^{(k)}$ وشي، نولاندې واریيشنونه لاس ته راځي:

$$\frac{n!}{(n-k_0)!}(n-k_0) = \frac{n!}{(n-k_0-1)!}$$

(که چیرې یود n - k0 غړو ورزيات په یو بل ځای کیښوولی وی، نو یودk+1 ټولګي واریيشن به یی لاس ته راوړی وی، کوم چی همدا اوس موجود دی. دا سړی په بیلګه ۲ ( n = 4, k = 2 , k =3 ( باندې لیدوړ کولی شي)

بیلګي:

۱ - د درې غړو واریيشنونو شمیر و دوم ټولګي ته دی : $v_3^{(2)} = \frac{3!}{(3-2)!} = 6$

۲ - د څلور غړو واریيشنونو شمیر و دوم ټولکی ته دی: $v_4^{(2)} = \frac{4!}{(4-2)!} = 12$

د څلور غړو واریيشنونو شمیر ودریم ټولګي ته دی: $v_4^{(3)} = \frac{4!}{(4-3)!} = 24$

۳ - د پنځه غړو واریيشنونو شمیر ودوم ټولګي ته دی: $v_5^{(2)} = \frac{5!}{(5-2)!} = 20$

پیژند ۱۰ . ۶ :

د n غړو واریيشنونه و k - ام ټولګي ته په کوم کی چی یوګونی غړي تر k-ځله تکرار وي نو واریيشنونه د تکرار سره نومیږي یا بلل کیږي.

بیلګی: ۱ - د درې غړو a , b , c واریيشنونه و دوم ټولګي د تکرار سره دي:

---

aa ba ca

ab bb cb

ac ba cc

۲ - څلور غړو a , d , c , b د دويم ټولګی واريشنونه د تکرار سره دي:aa ba ca da

ab bb cb db

ac bc cc dc

ad bd cd dd

۳ - د درې غړو 1 , 2 , 3 د دريم ټولګي واريشنونه دي( دا لاندې ولاړ ترتيب له كيڼ وښي لور ته دی، خو په لاندې كې په څټ شوی)

111 211 311
112 212 312
113 213 313

121 221 321

122 222 322

123 223 323

131 231 331

132 232 332

133 233 333

---

جمله ۱۰ . ۵ : د n غړو د k -ام ټولګي د واریيشنونو شمیر $V_{W_n}^{(k)}$

د تکرار سره دی: $V_{W_n}^{(k)} = n^k$ $C_6^{(4)}.C_{43}^{(2)} = \binom{6}{4}\binom{43}{2} = 13545$

حل)اوبی): په k د پوره ایندکشن له لارې:

د ایندکشن پیل ( k = 1 ) :

د $V_{W_n}^{(1)} = n^1$ لپاره صحیح دی، ځکه چی له n غړو څخه n واریيشنونه،چی هر یوله یوه غړي جوړ دی، جوړیږي.

د ایندکشن نیونه ( k0 = k ) : $V_{W_n}^{(k_0)} = n^{k_0}$

د ایندکشن غوښتنه ( k0+ 1 = k ): $V_{W_n}^{(k_0+1)} = n^{k_0+1}$

د ایندکشن ښوونه : د ( k0 + 1 ) -ام درجی واریيشنونه د nk واریيشنونو چی k0 – امه درجه واریيشنونو څخه لاس ته راځي، په کوم کی چی له دوي هر یو په ترتیب د n غړو اخر ته یو ور واچوي یا ورزیات ( علاوه ) کړي ( یادونه دې، چی په واریشنونو بی له تکرار شوې ، وکتل شي) .

له دې امله د دې شمیر $n^{k_0}.n = n^{k+1}$ واریيشنونه دی.

بیلګي :

۱ - د درې غړو و دوم ټولګي ته د واریيشنونوشمیر له تکرار سره دی

$V_{W_3}^{(2)} = 3^2 = 9$

۲ - د څلور غړو و دوم ټولګی ته د واریيشنونو شمیر له تکرار سره دی

$V_{W_4}^{(2)} = 4^2 = 16$

---

۳ - د درې غړو و دريم ټولګي ته ض واريیشنونو شمير له تکرار سره دی

$$V_{w3}^{(3)} = 3^2 = 27$$

۴ - د مورس نخښه ( Morsezeichen ) له دوه غړو ، ټکی او لنډې کربښی يوځای کيږي.

د يوه ، دوه درې او څلورو غړو جوړه نخښو شمير دی

$$V_{w2}^{(1)} + V_{w2}^{(2)} + V_{w2}^{(3)} + V_{w2}^{(4)} = 2 + 2^2 + 2^3 + 2^4 = 30$$

## ۱۰ . ۴ . ۳ كمبينيشن ( Kombination (لاتين: يو بل سره تړل)

تعريف ۱۰ . ۷ :

د n غړو و k-ام ټولګي ته ( n > k ) يو كمبنيشن هغه دی چی هر يو له k غړو يوځاي دروولو څخه ، کوم چی له n غړو، بی د غړو له نظم په پام کی نيولو سره، جوړوي.

كمبينيشن له واريیشن منځ ته راځي، که چيری نظم په پام کی ونه نيول شي.

بيلګي:

۱ - د درې غړو a , b , c و دوم ټولګي ته كمبينيشن په لاندې ډول دی:

ac bc

ac ......

۲ - د څلور غړو d , a , b , c و دوم ټولګي ته كمبينيشن په لاندې ډل دی

ab bc cd

...... ac bd

ad ............

---

د دې ځلو غړو ودريم ټولګي ته کمبينيشنونه په لاندې ډول دي:

bcd abc

acd

۳ - د پنځه غړو 1 , 2 , 3, 4 , 5 و دريم ټولګي ته کمبينيشنونه په لاندې ډول دي( لاندى هم بايد له کينې لاندې لورته په ښى لور ليکل شوي وى)

345 234 123

235 124

245 125

134

135

145

جمله ۱۰ . ۶ : د n غړو و k -م ټولګي ته د کمبينيشنونو شمير دی $C_n^{(k)}$

$$C_n^{(k)} = \binom{n}{k}$$

اوبى (حل): د n غړو و k-ام ټولګي ته د اوريېشنونو شمير دی:

$$V_n^{(k)} = \frac{n!}{n-k}$$

کمبينيشنونه له واريېشنونو په دې توپيريږي، چې ترتيب په نظر کى نه نيول کيږي، دا بيا دا مانا لري چى ټول د k غړو k! پرموتيشنونه په يو کمبينيشن کى يوه ته يوځاي کيږي. له دې امله لرو :

$$C_n^{(k)} = \frac{V_n^{(k)}}{k!} = \frac{n!}{(n-k)!.k!} = \binom{n}{k}$$

بيلگی :

۱ - و دوم ټولگي ته د درې غړو كمبينشنونو شميريا ګڼون دئ

$$C_3^{(2)} = \binom{3}{2} = 3$$

۲ - و څلورم ټولگي ته د څلور غړو كمبينيشنونو شمير دئ‌د څلورو غړو و دريم ټولگي ته د كمبينيشنونو شمير دئ

$$C_4^{(2)} = \binom{4}{2} = 6$$

۳ - د پنځه غړو ودريم ټولگي ته د كمبينيشنونو شمير دئ

$$C_4^{(3)} = \binom{4}{3} = 4$$

۴ - په لاتري ( ۶ له ۴۹ څخه ) د امكاناتو لپاره شمير دئ

الف ( يو شپږ $C_{49}^{(6)} = \binom{49}{6} = 13983816$

ب : يو څلور $C_6^{(4)}.C_{43}^{(2)} = \binom{6}{4}\binom{43}{2} = 13545$

۶ تيپ عددونه د يوه ۴ عددونوګروپ څخه بوځاي كيږي، چی له ايستل شوو شپږ عددونو ( ۴ تيک يا صحيح) او دوه عددونه( ۲ پاتی عددونه) دي .

پيژند ۱۰ . ۸ :

د n غړو و k-ام ټولګي ته کمبينيشن، په کوم چی يواځني غړي k - ځله تکراروي، کمبينيشنونه د تکرار سره نوميږي.

بيلګي:

۱ - د درې غړوa , b , c و دويم ټولګي ته د تکرار سره کمبينشنونه دي.

aa ................

ab ...... bb

ac bc cc

۲ - د څلور غړو d , a , b , c و دويم ټولګي ته د تکرار سره کمبينيشنونه دي

aa ........................

ab ................ bb

ac ......... bc cc

ad bd cd dd

۳- د درې غړو 1 , 2 , 3 و دريم ټولګي ته د تکرار سره کمبينيشنونه دي( لاندې ليکنه بايد له کينې لور پيل وی، خو دلته له ښی لور پيل شوی وکينې لور ته )

111 221 331

112 222 332

113 223 333

123

---

جمله ۱۰ . ۷ : د $n$ غړو و $k$ - ام ټولګي ته د تکرار سره د کمبینیشنونو شمیر یا ګڼون دی:

$$C_{W_n}^{(k)} = \binom{n+k-1}{k}$$

دلته دې له ښوونی( چی په $k$د پوره ایندکشن له لار ې صورت نیسی ) تیر شو.

بېلګې: ۱ - د درې غړو و دویم ټولګې ته د تکرار سره کمبېنیشنونه ګڼون یا شمېر دی

$$C_{W_3}^{(2)} = \binom{3+2-1}{2} = 6$$

۲ - دڅلورو غړو و دویم ټولګې ته د تکرار سره کمبېنیشنونه ګڼون یا شمېر دی

$$C_{W_4}^{(2)} = \binom{4+2-1}{2} = 10$$

۳ - د درې غړو و دریم ټولګې ته د تکرار سره کمبېنیشنونه ګڼون یا شمېر دی

$$C_{W_3}^{(3)} = \binom{3+3-1}{3} = 10$$

۴ - د څلورو مکعبونو ، چې اړخونه یې د یوه تر شپږ نخښه وي . (نخښه شپږ اړخیز) ممکن مختلف اچول ، په دې مانا چې کومې سترګې سره لویږي لاندې دي.

$$C_{W_6}^{(4)} = \binom{6+4-1}{4} = 126$$

### ۱۰ . ۴ . ۴ د برموتييشن،واريیشن،کمبينيشن ټولګه

| داا | د په پا يوې برخې راټولونه م کی نيولو شوو غړو | | د ټولو په پام کی نيول شوو غړو راټولونه يا ټولګه |
|---|---|---|---|
| | له نظم تيريدنه | نظم په پام کی نيونه | |
| | کمبينيشن | واريیشن | پرموتيشن |
| د<br>ټول غړي يوله بل<br>توپير لري | د n غړو کمبينيشن و k-ام ټولګي ته شمير يا ګڼون<br>$C_n^{(k)} = \binom{n}{k}$ | د n غړو واريیشن و k-ام ټولګي ته شمير يا ګڼون<br>$V_n^{(k)} = \frac{n!}{(n-k)!}$ | دn غړو پرموتيشن شمير يا ګڼون<br>$P_n = n!$ |
| له تکرار سره | د n غړو دکمبينيشن شمير وk -ام ټولګي د تکرار سره<br>$C_{W_n}^{(k)} = \binom{n+k-1}{k}$ | د n غړوواريیشن شمير د تکرار سره<br>$V_{W_n}^{(k)} = n^k$ | د k غړو پرموتيشن د ni غړو سره په k -م ګروپ کی<br>$P_n^{(n_1,n_2,\ldots n_k)} =$<br>$= \frac{n!}{n_1!.n_2!....n_k!}$ |

# ۱۰ . ۵ تمرینونه

۱ – لاندې فاکولتی وشمیری

الف ) $7!$ ، ب ) $3!.5!$ ، پ ) $6! / 4!.I0!$

۲ – لاندې ویشونه ساده کړی

a ) $(n+1)! / (n-2)!$ b) $(2n)! / n!$ c ) $n! / 2n!$

۳ – لاندې افادې وشمیری!

a) $\binom{6}{4}$ b) $\binom{1,5}{3}$ c) $\binom{-1}{6}$ d) $\binom{4}{1}$ e) $\binom{4}{0}$

f) $\binom{8}{8}$ g) $\binom{5}{4}\cdot 4!$ h) $\binom{7}{6}\cdot 3!$ i) $\binom{6}{7}\cdot 3!$ j) $\frac{\binom{7}{6}}{3!}$

۴ – لاندې زیاتونونه وشمیری!

a) $\binom{2}{1}+\binom{2}{2}$ b) $\binom{3}{1}+\binom{3}{2}$ c) $\binom{3}{2}+\binom{3}{3}$

d) $\binom{4}{1}+\binom{4}{2}$ e) $\binom{4}{2}+\binom{4}{3}$ f) $\binom{4}{3}+\binom{4}{4}$

۵ – لاندې افادې د بینوم د فرمول کارونی(استعمال ) په بنسټ وګټی!

a ) $(x+y)^7$ b ) $(a-6)^6$ c ) $(5a+4y)^3$

d ) $(x/2 - y/3)^4$ e ) $(2\ \ a+3\ \ b)^2$ f ) $(x^2+y^2)^3$

۶ – لاندې افادې ساده کړی!

a) $(-1+a)^2 - (1-a)^2$ b) $(a^2+b^2)^2 - (a^2-b^2)^2$

c ) $(\ \ ab - 1)(-a-\ \ ab) + ab$

۷ – د بینوم په یو ځل بی بیل ( تجزیه ) کړی!

a ) $25a^2 + 10\,ab + b^2$ b) $(49a^2 - 42a + 9$

c ) $169a^2 - 130\,ab + 25b^2$ d ) $2x+2.\ \ 6xy + 3y$

---

۸ – الف ) د غړو ۱ ، ۲ ، ۳ ، ۴ پرموتیشنونه په لکسیکوگرافي نظم ولیکی!
ب ) د a,e,f,h,n پرموتیشنونو په څو ځایونو کی« fahne » او«hafen » ولاړ دي؟ دا الماني کلیمي دي چی دپښتو اړونه یی « بیرغ» او« بندر» دي.

۹ – الف ) په څو ځایترتیب یا تنظیم کیدی شي ، شپږ کسه ځاي ونیسی؟
ب ) څومره پنځهٔ ځیفري ګڼونه د پنځه ځیفرونو4, 3, 2, 1, 0 سره کیدی شي ولیکل شي، که هغه ګڼونه چی په صفر پیل کیږي ونه لیکل شي ؟
پ ) د غړوa,b,c,d,f څومره پرموتیشنونه په c ، په de ، په cdef پیل کیږي؟

۱۰ – الف ) د غړو a , b , c ټول پرموتیشنونه ولیکی، په کومو کي چي a او b هره یوځل، غړی c دوه ځله رامنځ ته کیږي.
ب ) د دې پرموتیشنونو ګڼون یا شمیر وګڼی!

۱۱ – څومره تنظیم شوي جوړې د الفبا د۲۶ (لاتین توري ) تورو څخه جوړیدلی شي ؟

۱۲ – د څلورم ټولګي څومره مختلف واریيشنونه د
الف ) بې له تکرار
ب ) له تکرار سره د غړو 8 , 6 , 4, 2 , 0 موجود دي؟
۱۳ – یوه سوری کارت له ۸۰ سوریدرځونو چي هریو لس سوري لري، جوړ دی. څومره د سوریو یوځایلیکل ممکن دي، که هر درځ ټیك یو ځل سوری شي؟
۱۴ – له شپږ غړو جوړ کمبینیشن ګڼون و څلورم ټولګي ته او پنځم ټولګي ته څومره لوي دي،
الف ) بې له تکرار
ب ) له تکرار سره؟
۱۵ – یادونه : دا د کارتو لوبولپاره تمرین نه دی لیکل شوی

---

۱۶ – څومره مختلفي ازمايني ممكن دي كه په يوه توليد كي له هر ۲۰ يوه وازمايل شي؟

۱۷ – په موټرو ترافيك نخښي په لاندې توګه يوځاى شوي : يوه د ځاى نښونه ډله د نخښي الف بي پسي څلور ګروپ يا ډله راځي، چي له څيفرونو ۰ تر ۹ څخه جوړ وي. د يوې كره ټاكلي الف بي پيژندنښي يا ترافيكي نخښي ممكن دي؟

۱۸ – د مختلفو اندازو او د خامموادو جوړ نلونه ، د رنګوني له لارې يو له بل توپيريدى شي ، كه څلور رنګ نښوني ولرو؟

۱۹ – د منډې يوه ميچ په اخركي شپږ پاتي منډې وهونكي برخه اخلي. د منډو څومره امكانات موجود دي؟

۲۰ – په څومره ډوله

الف ) اته مختلفي مرغلرې،

ب ) درې سرې، څلور شني، يوه زرغونه مرغلره

ترتيبيدلي شي؟

۲۱ – څومره تلفونونه كيدى شي وتړل شي كي يواځي پنځه ځايزه نمره موجود وي؟
څومره تلفون تړل ممكن دي كه تلفون نمرې شپږځايزې وي او په 0 پيلكيدنه يي اجازه ونه لري؟

۲۲ – د درې شپږسترګيو ( يا –اړخيزو ) سره ( څيره مكعب دى اومخونه له يوې تر شپږ سترګو باندې په نخښه دي، ماته يي د پښتو نوم نه راځي او االماني يي Würfel دى ) څومره مختلفي اچوني ممكن دي، چي ټولې شپږسترګي مختلفې سترګې ګڼون وښايي؟
څومره مختلفې اچونې له درې شپږسترګيو سره ممكن دي؟

# ۱۱ کرښیز-، خطي – یا لاینیز الجبر

یادونه : د لته دې هم د هرڅه له مخه بیا دې ته ګوته نیول شوي وي ، چی څه به تکرار وي، خو هغه لاتین متل دی، چی » تکرار د زدکړې مور ده .«
لاندې مخ ته پرته اصلي برخه د m برابرونونو ځوابونو ته چی n اووښتوني یا مجهولی یا ناپیژندونکی لري، وقف ده، چیرته چی m د برابرونونو ګڼون یا تعداد n د ناپیژندونکو یا مجهولو ګڼون (تعداد) سره برابر او همدا ډول لوي او یا کوچنی کیدی شي
په ۱۱ . ۱ برخه کی د دوه ناپیژندونکو یا مجهولو سره د برابرونونو سیستمونه تر څیړنی لاندې نیول کیږي، چی د ښوونځي شمیرپوهنی تکرار دی، مګر دلته د برابرونونو سیستمونه د ناټاکلوځلونو یا ضریبونو یا فاکتورونو سره هم راوړل کیږي، چی د حالتونو توپیریدنه یي اړیینه ده.
دا راوړنی به په ۱۱ . ۲ برخه کی دری ناپیژندونکو یا نامعلومو او په ۱۱ . ۳ برخه کی په خوښه زیاتوناپیژندونکو ته وغزیږي، په ټولو برخو کی پل په پل د دیترمینانت کلیمه او د ګاوس الګوریتم د کار ډګر ته را اچول کیږي .
په ۱۱ . ۴ برخه د هوموجینو برابرونونو سیستم ځانګړي ځوابونه په بر کی نیسي.
یادونه : ولې لاینیز برابرونونه او نه کریز یا بندکرښیز یا خطی؟

---

موږ د برابرونونو له څیرې پوهیږو، چۀ دا یوه کرښه ورکوي، چې لاتین یا کۀ غواړئ انګریزي یې لاین نوموليى۰ د کرښو اوبندکرښو نومونه هم شته، خو د دې لپاره، چې د نورو درسي منځپانګی سره یې توپیر وي،نو موږ هم ورته له دې امله لاینیز وایو۰

## ۱۱ . ۱ . لاینیز برابرون د دوه ناپیژندونکو سره

داسی یو مساوات د دوه ناپیژندونکو سرهکیدي چی په لاندې ډول انځور شي

$$ax + by = c \qquad (11.1)$$

دلته کیدی شي چی ناپیژندونکی لویي $x$ او $y$ په خوښه رییل ګڼونه وي چی یو له بل سره په ورکړ شوي بڼه تړلي. یا په بل عبارت : $x$ او $y$ واریابلی(اووښتونکی یا لنډ: اووښتوني ) دي، برابرون ( ۱۱ . ۱) لاینیز فنکشن(بلواك) برابرون په ګوته کوي چی د هغي څیره په $y,x$ کواوردینات کی ناپای کرښه ده( ۱۶ - امه برخه دی وکتل شي )

ځانګړی حالت : $a = 0$ یا $b = 0$ په ځانګړې توګه کرښه انځوروي یا په ګوته کوي چی د $y$ - محوراو همداسی د $x$ - محور سره غبرګه د ه .

که دا ( ۱ . ۱۱ ) برابرون د دواړو نایژندونکو یا مجوهولو $x$ او$y$ لپاره ټاکنمساوات یا ټاکنبرابرون ونیول شي، نو دا پوښتنه رامنځ ته کیږي، چی ددې مسیٔلی د حل (اوبی) لاندې به څه پوهیدل غوښتونکی وي.

د ( ۱۱. ۱ ) برابرون اوبیونه په څرګند ډول د ټولو ارزښتجوړو $( x ,y )$ ډیری ده، چی( ۱۱.۱ ) برابرون پوره کوي. که اصلي حالت $a , b |= 0$ ته پام وکړو نو برابرون (۱ . ۱۱ ) د $y$ په لور داسی ځوابوو.

$$y = - (a/b)\, x + c/b \qquad (11.2)$$

کیدی شي چی $x$ په خوښه وټاکل شي او$y$ له ( ۲ . ۱۱ ) برابرون څخه لاس ته راولو. ګورو چی ناپای ډیرې اوبیوني یا حلونه لاس ته راځی یعني د اوبیوني ډیری یا اوبیډیری $L$ په لاندې ډول ده

$$L = \{ ( x, y ) \mid y = - ( a/b )\, x + c/b \} \quad (11.3)$$

داسې لوستل کیږي: $L$ د ټولو $(x,y)$ جوړو ډیری ده ،داسې چې..... (ورپسې هغه برابرون)۰

ددې لپاره لنډ لیکل کیږي: د ( ۱۱ . ۱ ) برابرون اوبی یا حل $y = -(a/b)x+c/b$ ،د خوښی $x$ ۰

طبعاً کيدی شي چي برابرون د x په لور هم اوبی شي. دلته y په خوښه نيسو، نو د لته د برابرون ( ۱ . ۱۱ ) ځواب داسی دی , x = -(b/a)y + c/b په خوښهy ۰

دا چي په لاندې کی مورږ د درېو يا ډيرو ناپيژندونکو يا نامعلومو برابرونونو سره سر او کار لرو، نو موخه ور بولو که ناپيژندونکې د x, y , z .... سره په نخښه نه کړو بلکه د $x_1, x_2, x_3, .....$ سره .

ددې په نخښونو سره کيدی شي چی په څرګند ډول وښايو:

لاندې برابرون د دوه ناپيژندونکو $x_1, x_2$ سره

$$a_1x_1 + a_2x_2 = b, .............(11,4)$$

د a |= 0 لپاره

$\infty^i$

ځوابونه لري

$\infty^i$

په دې مانا چی i = 1 , 2, 3۰۰۰ ناپيژندونکو يا نامعلومی لپاره په خوښه r ازښتونه کيښوول کيدی شي.

$$x_1 = -\frac{a_2}{a_1}x_2 + \frac{b}{a_1}, ...........(11,5)$$

$x_2$ په خوښه

د

$a_2 \neq 0$

لپاره

$\infty$

ځوابونه

$$x_2 = -\frac{a}{a_2}x_1 + \frac{b}{a_2}; ................(11,6)$$

$x_1$

په خوښه

د a1 =a2 = b = 0 (0.x1+ 0.x2= b = 0 (لپاره ناپای ډير ځوابونه

د په خوښه

$$x_1, x_2, ..........................(11,7)$$

---

د
$a_1 = 0; a_2 = 0; b \neq 0$
لپاره
$0.x_1 + 0.x_2 = b \neq 0$

په ځتوالی يا تضاد يا مخامخوالی دی، له دې امله ځواب نه شته.
نوټ : دلته
$\infty^i$
دا مانا لري چی د ناپيژندونې يا مجهولی
$x_i$
لپاره i = 1,2.. په خوښه ناپای ارزښتونه نيول کيدی شي.

۱۱ . ۱ . ۲ – دوه لاينيز برابرونونه د دوه ناپيژندونکو سره
د دوه برابرونونو سيستم د دوه ناپيژندونکو سره لاندې عمومي شکل لري

$$I............a_{11}x_1a_{12}x_2 = a_1$$
$$II..........a_{21}x_1 + a_{22}x_2 = a_2;..................(11,8)$$

دا تاکلي برابرونونه کيدی شي چی په اووښتونو يا واريابلو x 1 اوx2کی د بلواکبرابرون يا فنکشنمساوات په ځير ونيول شي او په x1 , x2 - کواورديناتسيستم کی د کربښو په ډول انځور شي. که کربښي يو بل غوځي کړي نو دا د مساواتو په سيستم ( ۸ . ۱۱ ) کی د کربښو يوګونی( بهتره : يوګونی، يواځنی د بل ځه لپاره کارول شوی ) اوبيونه ده يا حل دی.
که دواړه کربښي يو په بل پريوځي نو دا په دې مانا دي چې II همغه مساوات لکه I انځوروي. دلته دا بسياکوي، چی د ۱۱ . ۱ . ۱ . له مخي ټيك يا فقط مساوات I يا مساوات II حل شي. دلته ناپاي ډير
$\infty^1$
ځوابونه موجود دي.
داسي هم کيدی شي چی فورمال
$\infty^2$
رامنځ ته شي، که ټول
$a_{ik} \wedge a_i$

د صفر سره برابر ي. موږ دلته دا حالت نه څیړو. دا څیړو چی، که دا برابرون اوبیونه ونه لري. دا حالت هغه وخت رامنځ ته کیږي، چي کرښه I اوکرښه II غبرګي ځغلي مګر یو په بل نه وي پرتی.

په دوه برابرونونو کي، د دوه ناپیژندونکو یا اووښتونو سره، کیدي شي لاندې حالتونه را منځ ته شي

۱ - یو یواځني ټاکلی ځواب مو مخ ته پروت دئ (اصلي حالت )

۲ - کوم ځواب مو و مخ ته نه دئ پروت (سیستم مخامخوالی یا تضاد لري )

۳ - ناپای ډیر ځوابونه موجود دی II ( برابرون برابر په I مساوات او یا د هغه څو برابره دی )

۴ - ناپاي ډیر ځوابونه موجود دي.
( ټول $a_{ik} = 0$ او ټول $a_i = 0$ دي )

د دوه برابرونونو له مخی چی دوه ناپیژندونکی لري، کیدی شي په اسانتیا وپیژندل شي، چی د برابرونونو کوم حالت مو مخ ته پروت دئ.
په سیستمونو کی چي درې یا زیاتي واریابلی یا اووښتونې لري ورته حالتونه په ساده ډول نه شو پیژندلی چي کوم حالت تر مخ لرو. دلته باید فورمال پرمخ لاړ شو، دا چی څنګه دا کار سرته رسولی شو غواړو چی د پوښتنو په فورمال ځواب پیل وکړو او د برابرونونو پوښتنو ته ځواب پیدا کړو. دلته باید دري بنسټیز د مساواتسیستم د ځواب کاردودونه)متودونه( تکرار شي:

۱ . د برابر یا مساوي ځاي په ځاي کولو متود:
دواړه برابرونونه د یوې نامعلومی په لور اوبی کیږي(د بیلګي په توګه د x دوه په لور(، دواړه برابرې لیکي او په دې ډول یو برابرون د یوې نامعلومي سره منځ ته راځي٠

۲ - یو د بل پر ځاي کینولو متود:
برابرون یا مساوات د یوې ناپیژندونکې ( د بیلګي په توګهx دوه) په لور ځواب کیږي او دا لاس ته راوړنه په بل برابرون کی ځاي په ځاي کیږي، په دې ډول د یوې ناپیژندونې برابرون منځ ته راځي ( د بیلګي په توګه دx یو)

---

۳ - د زیاتون کارونه (جمع کولو عملیه):

سړی یو ټاکلی څو برابره ( کیدی شي چی کمیز یا منفي هم وي) د II برابرون د I برابرون یوه ټاکلي څو برابره سره زیاتوي، داسی چي یوه ناپیژندونی بیا مخ ته نه راځی یا له منځه ولاړه شي. د نیتجي سره بیا دا بله ناپیژندوني څیړي. دا د داوړو نامعلومو( ناپیژندونو) لپاره کیداي شي . دا متود دبرابرونونو د سیستم لپاره بنسټیز دی چی د دیترمینانتو ( die Determinanten) له لارې د برابرونونو ځواب لاس ته راوړو .
دا متود په درې ځانګړو برابرونسیستمونو باندې باید وکارول شي، ټول ځلورځلوني( ځله ووني یا ضریبونه) بایدله صفر توپیر ولري یعني $a_{ik} \neq 0$ که چیرې یو $a_{ik} = 0$ د بیلګي په توګه $a_{21} = 0$ نو بیا به مساواتو په لاندې ډول د درېګوډي جوړښت لرودی:

$$I.............a_{11}x_1 + a_{12}x_2 = a_1;......a_{11} \neq 0$$
$$II....................a_{22}x_2 = a_2,.......a_{22} \neq 0;..........(11,9)$$

دلته نو
$a_{21} = 0$

بیا له II سیده راویستل کیدی شو او د نتیجي څخه یي چی په I کی کښیښودل شوې وی $x_1$ هم معلومیدی شو. دلته دا په ګوته کوو چی د ګاوس الګوریتم په استعمال بیا برابرون د درېګوډي شکل باندې اړول کیږي .دا درې څرګند حالتونه په لاندې ډول دي :

سیستم ۱

I 2x1 + 3x2 = 4

II x1 - 2x2 = -5

دا سیستم یواځنی یوځواب لر II برابرون د I برابرون سره اړیکی نه لري

سیستم ۲

2x1 + 3x2 = 4

II 4x1 + 6x2 = 8

په اسانۍ ګورو چی دلته II برابرون په ۲ ځل شوی I برابرون دێ . دواړه برابرونونه همغه کرښه وښايي او په دې ډول د مساواتو اوبیونې ناپای دی.

--------------------------------------------------------------------------------

سيستم ۳:

I $2x1 + 3x2 = 4$

II $4x1 + 6x2 = 10$

دلته بي ډيله ځرګنده ده چې برابرونونه يو د بل تضاد يا يو د بل په څټ دي .د Iبرابرون دوه برابره په لاندې ډول دی:

$4x1 + 6x2 = 8$

په دې توګه ناممکن ده چې II هم باوري وي، نو له دې امله دا سيستم ۳ اوبيونه نه لري.

بيلګه ۱۱ . ۱ :

سيستم۱ دې په پورته درې ورکړ شوو متودونو ځواب شي .

الف: مساوي اينوولوکارونه يا عمليه

$$I':.....x_1 = 2-(3/2)x_2;.......;II':.....x_1 = 2x_2 - 5$$

$$2-(3/2)x_2 = x_2 - 5$$

$$-(7/2)x_2 = -7$$

$$x_2 = 2;\Rightarrow$$

$$x_1 = 2-(3/2).2$$

$$x_1 = -1$$

ب) د بل په ځاي کينولوکاروونه ( عمليه) : II د x1 په لور ځواب کيږي او بيا په I کی ځاي په ځاي کيږي٠

$$II'::.........x_1 = 2x_2 - 5$$

$$2(2x_2 - 5) + 3x_2 = 4$$

$$4x_2 - 10 + 3x_2 = 4$$

$$7x_2 = 14$$

$$x_2 = 2 \Rightarrow x_1 = 2.2 - 5 \Rightarrow x_1 = -1$$

پ ) د زياتونکاروونه: $x_1$ له منځه ځي، که ( -2 ) ځله د II برابرون و I ته زيات شي.

$$I:................2x_1+3x_2=4$$
$$(-2)II:........-2x_1+4x_2=10$$
$$I-2II:....................7x_2=14$$
$$..................................x_2=2$$



کیدی شي، ود بیلګي په توګه، له II څخه x1 وشمیرل شي:
$$x_1=2x_2-5=4-5=-1$$

د زیاتون کاروونی په کلکه یا تل استعمال څخه کیدی شي
x2
له منځه یو وړل شي، په دې شکل چی د II درې برابره د I دوه ځله ته ورزیات کړی شي.

$$2.I:............4x_1+6x_2=8$$
$$3.II:............3x_1-6x_2=-15$$
$$-------------------$$
$$2.I+3.II:........7x_1.........=-7$$
$$........................x_1.............=-1$$

یادونه : په پورته کې یا نورو کومو ځایونو کې ، چې ټکی چیرته اینسول کیږي، پوهیږو، چې چیرته ټکی د ځاي غزونې او چیرته د ځل لپاره ځاي په ځاي شوي دي

بیلګه ۱۱ . ۲ :
سیسم ۲ دې په پورته درې متودو ځواب شي:

الف ( مساوي اینوولو:
I' : x1 = 2 -(3/2).x2
II': x1 = 2 -(3/2)x2
2- (3/2)x2 = 2 - /3/2)x
0.x2 = 0

دلته

$x2$

په خوښه. دا په دي مانا چی

$x2$

هر ارزښت نیوی شي ۰ له $I'$ څخه ناپای ډیر ځوابونه لاس ته راځي

$x1 = 2 - (3/2)x2$ او $x2$ په خوښه.



ب ) د بل په ځاي اینوولومتود: $I' \quad x1 = 2-(3/2)x2$ ,

په $II$ کی اینول کیږي

$$II' \quad 4.(2-(3/2)x2) + 6x2 = 8$$
$$8-6x2+6x2 = 8$$
$$0.x2 = 0 \quad x2$$

په خوښه له $II'$ لاس ته راځي

$I' : x1 = 2 - 3/2\ x2$ $x2$ په خوښه

پ) د زیاتون متود یا لار یا طریقه:

$$2.I \quad 4x1 + 6x2 = 8$$
$$II \quad 4x1 + 6x2 = 8$$

---

$$II - 2.I : \; 0x1 + 0x2 = 0$$

که یواځی دا مساوات په نظر کي ونیول شي ، نو $x1$ او $x2$په خوښه ټاکل کیدی شي، دا چی د $x1$ او $x2$ ترمنځ په $I$ یا $II$ کی ورکړ شوي اړیکي دي ، نو یواځي یوه ناپیژندونکو په خوښه ټاکل کیدی شي . ځواب داسی دی:

$x1 = 2-(3/2)x2$

$x2$په خوښه

په همدې ډول:

$x2 = 4/3 -(2/3)x1$ ,

دلته $x1$ په خوښه ټاکل کیږي

بیلګه ۱۱ . ۳ :

سیستم ۳ دې په پورته درې ورکړشوومتودونو ځواب شي.

الف ( مساوي ځاي په ځاي کولو متود:

$$I': \quad x1 = 2 -(3/2)x2$$
$$II': \quad x1 = 5/2 -(3/2)x2$$
$$2-(3/2)x2 = 5/2 -(3/2)x2$$
$$0.x2 = 1/ 2$$



دا یو په ځښوالی یا تضاد دی، ځکه چی هیڅ یو ریيل ګڼ x2 نه شته چی دا مساوات پوره کړي، نو له دې امله کوم ځواب نه شته یا وجود نه لري.

ب ) د بل په ځاي لیکلو عملیه: $I': \quad x1 = 2 - (3/2)x2$ ,

په II کی دی په ځای شي

$$II': 4.(2-(3/2)x2)+6x2 = 10$$
$$8 - 6x2 + 6x2 = 10$$
$$0.x2 = 2$$

دا مخامخوالی یا په ځښوالی یا تضاد دی ، پس ځواب نه شته.

پ ) د زیاتون متود:

$$2 . I \qquad 4x + 6x = 8$$
$$II \qquad 4x + 6x = 10$$

---

$$2.I - II \qquad 0.x + 0.x = -2$$

په ځښوالی یا تضا د دی ، ځواب وجود نه لري

د لاندې بیلګو سره غواړو د منځ ته راتللو پیښتنو ځوابونو لپاره اړوند لارښوونه ګوته لك کړو.

بیلګه ۱۱ ۰ ٤ : په لاندې فورم یا بڼه برابرونسیستم ورکړ شوی:

$$I \qquad x /(a+b) +y/(a-b)$$
$$II \qquad x /(a-b) +y/(a+b)$$

دا ټیك هلته موخه ور یا هدفمند دی چی a =| b او a- =| b وي، یعنی |b| =| |a| وي .

کیدی شي چی دا سیستم د پورتنیو متودونو څخه په یوه متود تړلی ځواب کړي، د یوه د مخه ورکړ شوي فورم یا بڼې اوړون له لارې هم ځواب کیدی شي.
لمړی د جمعی متود څخه کار اخلو:
د I ځل له $1/(a+b)$ او II ځل له $-1/(a-b)$ څخه وروسته دا لرو:

$$x/(a+b)^2+y/(a^2-b^2)=1/(a+b)$$

$$-x/(a-b)^2-y/(a^2-b^2)=-1/(a-b)$$

له دې سره د y دواړه ځله وونې یاضریبونه یو د بل مخامخ (یا په بل عبارت یو د بل په څټ ) نخښی لري او له دې امله د زیاتون په حالت کی له منځه ځي، نو په دې توګه مو یو برابرون د یوې ناپیژندونکی سره مخ ته پروت دی:



$$\frac{x}{(a+b)^2}-\frac{x}{(a-b)^2}=\frac{1}{a+b}-\frac{1}{a-b}$$

$$\frac{(a-b)^2-(a+b)^2}{(a+b)^2(a-b)^2}x=\frac{a-b-(a+b)}{a^2-b^2}$$

$$\frac{a^2-2ab+b^2-a^2-2ab-b^2}{(a^2-b^2)^2}x=\frac{a-b-a-b}{a^2-b^2}$$

$$-\frac{4ab}{a^2-b^2}x=-2b$$

$$2abx=b(a^2-b^2)....(*)$$

$$x=\frac{a^2-b^2}{2a};ab\neq 0$$

که I له $1/(a+b)$ او IIله $-1/(a-b)$ سره ځل شي کیدی شي: چی y په ورته ډول وشمیرل شي:

$$\frac{x}{a^2-b^2}-\frac{y}{(a-b)^2}=\frac{1}{a-b}$$

$$-\frac{x^2}{a^2-b^2}-\frac{y}{(a+b)^2}=\frac{1}{a-b}-\frac{1}{a+b}$$

$$\frac{(a+b)^2-(a-b)^2}{(a-b)^2(a+b)^2}y=\frac{a-b-(a+b)}{a^2-b^2}$$

$$\frac{a^2+2ab+b^2-a^2+2ab-b^2}{(a^2-b^2)^2}y=\frac{a+b-a+b}{a^2-b^2}$$

$$-\frac{4ab}{a^2-b^2}y=2b$$

$$2aby=b(a^2-b^2)....(*)$$

$$y=\frac{a^2-b^2}{2a};ab\neq 0$$



دلته مو ځانګړی حالت مخ ته پروت دی، چی دواړه ناپیژندونکی مساوي دي، کومی چی ځمونږ د څیړنی لپاره بي مفهومه دی.

دا د x , y لپاره شمیرل شوي ارزښتونه په هغه حالت کی باوري دی چی ab |= 0 وي.

نو څیړو چی کوم حالت توپیر د ab = 0 لپاره منځ ته راځي. . دلته مساوات ) * ( تر څیړنی لاندې نیسو او درې حالته توپیروو:

.1 a = 0 , b |= 0

مساوات )*( داسی دي

0.x = -2b3, 0 . y = -2b3

په دې حالت کی برابرون سیستم ځواب نه لري.) تضاد مخ ته پروت دی

. 2 a |= 0 , b = 0

برابرون( *)( په دې حالت کی داسی دی.

0 . x = 0 ; 0 . y = 0

دلته مخامخوالی یا په څتوالی یا تضاد نه شته ( له I او هم له II لاس ته راځي

x/a+y/a=1 <=> x+y=a

که y خپلواك وټاکل شي، نو لرو x=a-y دلته y په خوښه ټاکل کیدی شي.

په بل حالت کی لرو $y = a - x$ , دلته x په خوښه دی
3 . $a=b=0$
دا حالت د نیونی له مخی بند ، ناشونی یا ناممکن دی.

بیلګه ۱۱ . ۵:

$$\frac{11}{2x-3y}+\frac{18}{3x-2y}=13$$

$$\frac{27}{3x-2y}-\frac{2}{2x-3y}=1$$

که دا سیستم د $(3x-2y)(2x-3y)$ سره ځلوني په بنسټ فورم بدل کړي، نو لرو:

$$69x-76y=78x^2-169xy+78y^2$$

$$48x-77y=6x^2-13xy+6y^2$$

او کتل کیږي چی په دې ډول لاینیز برابرونتسیستم د x او y لپاره منځ ته نه راځي . دا چی په دې هر یو سیستم کی دوه ماتلاندې سره برابر دي نو کیدی شي چی نوې ناپیژندونکی u , v و لیکو. دا وشمیرو او بیا له دې وروسته لويي x , y راپیدا کړو . موږ ځاي پر ځاي کو



$u=1/(2x-3y)$ ,$v=1/(3x-2y)$
او لاس ته راوړو:

$$11u+18v=13 \iff 11u+18v=13$$

$$27v-2u=1 \qquad -2u+27v=1$$

موږ د زیاتون یا جمعی متود کاروو

$$33u+54v=39$$

$$4u-54v=-2$$

---

$$37u=37$$

$$u=1 \Rightarrow v=1/9$$

له دې سره کیدی شي x او y وشمیرل شي:

$$1=1/(2x-3y) \iff 2x-3y=1$$

$$1/9=1/(3x-2y) \iff 3x-2y=9$$

له دې څخه غوښتونکی ځواب $x = 5$ , $y = 3$ لاس ته راځي.

## ۱۱ . ۱ . ۳ دويمه درجه ديترميناتې او د کرامر قاعده

که په ټوليزسيستم(11.8 ) باندې د زياتون متود استعمال شي، نودx2د له منځه وړلو په لار لاس ته راځي

$$I' = a_{22}.I - a_{12}.II$$

$$(a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21})x_1 = (a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21})$$

پورته برابرون دی) ۱۱،۱۰ ( وي

اود x1 د له منځه وړلو:

$$II' = a_{11}.II - _{21}.I:$$

$$(a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21})x_2 = (a_{11}a_2 - a_1a_{21})$$

دا پورته برابرون دې (۱۱،۱۱) وي

که 0 =| (a11a22 -a12a21) وي، نو له دې يواځنی ټاکلی ځواب لاس ته راځي

$$x_1 = \frac{a_1a_{22} - a_{12}a_2}{a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21}}; x_2 = \frac{a_{11}a_2 - a_1a_{21}}{a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21}}, \ldots\ldots\ldots(11,12)$$

که د ارزښتونه په ( 11 . 8 ) کی ځای په ځای شي نو تصديقيږي، چی( 11 . 12 ) په ريښتيني د ( 11, 8 ) ځواب دی. له ( 11 . 10 ) تر ( 11 . 12 ) سړی په واقعيت يا ربښتونی کی د ديترمينانت کليمی په لور لاروی کوي( لارښودوي.)



پيژند ۱۱ . ۱: د يو منظم سيستم دوه ځله دوه رييلو ګڼونو $a_{ik}, (i, k = 1, 2)$د د ۲ -امه درجه ديترمينانت لاندې ، لاندينی ګڼ پوهيږو:

$$D = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} \\ a_{21} & a_{22} \end{pmatrix} = a_{11}a_{22} - a_{12}a_{21}; \ldots\ldots\ldots\ldots(11,13)$$

د اصلي دوه کونجتړي يا دياګونال (قطر) د توکوځل، ترې کم( منفی ) د ځنګ يا فرعی دوه کوجنتړي(قطر) د توکو ځل( يا ) د اصلي دوه کونجتړې يا قطر د توکو ځل ځخه د ځنګ يا فرعي دوه کونجتړې د توکو ځل کميږي يا منفی کيږي)

يادونه : دا اوس او وروسته ديترمينانت بڼه د ماتريکس په څيره ليکل شوی، په ديترمينانت کې کرښی سمې دي، خو کومه ناسمپوهنه په کې نه راځي.

په ( 11 . 13 ) کی د xi ځله ووني يا ضريبونه داسی ليکل شوي لکه په ( 11 . 8 ) سيستم کی . د ( 11.13 ) ديترمينانت له دې امله د ( 11 8 ) (له ماڅخه دانوکانو کې دننه ګڼونه کله کله بدليږي، دې ته دې د ګرانو لوستونکو پام وي، دا شميرپوهنيزه ناسمي منځ ته نه راولي) سيستم د ځلونو ( ضريبونو) ديترمينانت بلل کيږي.

که په ( 11. 13 ) کی لومړی ( درز، ستن يا مټه يا ولاړه ليکه يا-کيله) د ديترمينانت ولاړه ليکه( په ځای ) چی د xi ځله ووني يا ضريبونه دی د ( 11 . 8 ) برابرونسيستم

ښي اړخ (مطلقه توکی) توکي a1 , a2 وليکل شي نو( په x1 اړونده) لاندې ديترمينانت لاس ته راځي:

$$D_1 = \begin{pmatrix} a_1 & a_{12} \\ a_{21} & a_{22} \end{pmatrix} = a_1 a_{22} - a_{12} a_2$$

د پورته برابرون ګڼه يا نمره دې) ۱۱،۱٤ ( وي‌په همدې ډول که د ) 11 . 13 ( ديترمينانت دوهم درز بدل کړی شي، نو د x2 پورې اړوند لاندې ديترمينانت لاس ته راځي

$$D_2 = \begin{pmatrix} a_{11} & a_1 \\ a_{21} & a_2 \end{pmatrix} = a_{11} a_2 - a_1 a_{21}; \ldots\ldots\ldots\ldots (11,15)$$

که له ( 11 . 10 ) تر( 11 . 12 ) پورې له ( 11 . 13 ) تر ( 11 . 15 ) پرتله يامقايسه شي نو لاس ته راځي

جمله ۱۱ . ۱ (د کرامر قاعده):
که د ځله وونو يا ضريبونو ديترمينانت لپاره په ( 11. 13 ) کی



$$D = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} \\ a_{21} & a_{22} \end{pmatrix} \neq 0; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots (11,16)$$

باوري وي نو د مساواتو سيستم ( 11 . 8 ) يوائځنی ټاکلی ځواب لري

$$x1 = D1/D \quad ; x2 = D2/D \qquad /11,17)$$

په داسی حال چی D1 او D2 د ( 11 . 14 ) او ( 11 . 15 ) له مخی شميرل کيږي.
د ( 11 . 10 ) او ( 11 . 11 ) له امله لرو

جمله ۱۱ . ۲ :
که په ( ۱۱ . ۱۳ ) کی د ځلونو ديترمينانت D لپاره باوري وي

$$0 = D \qquad (11,18)$$

او د کم له کمه يوې ډيترمينانتD1 يا D2 لپاره په ( 14, 11 ) يا ( 11 , 15 ) باوري وي

$$D1| = 0 \lor D2 | = 0 \qquad (11,19)$$

نو ( 11 . 8 ) سيستم ځواب نه لري، ځکه چي برابرون يی يو د بل سره مخامخ دي ( تضاد کی دي)

جمله۱۱ . ۳ :
باوري دي

$$D=D1=D2=0 \quad (11.20)$$

نو يو له برابرونونو I يا II زياتي دی ) دواړه برابرونونه يو بل ته اړ دی يا د بل په واك کی دي( او د ۱۱ . ۱ . ۱ . ۱ . برخی متود استعماليدلی شي يا کار ترې اخستل کيدی شي.
د ښوونبيلګو په څير دې اوس د ۱۱ . ۱ تر ۱۱ . ۳ پورې بيلګي ( ۱۱ . ۱ . ۲ برخه ) کارول شوي سيستمونه ۱ ، ۲ او۳ ګران لستونکي په ديترنمنانتو ځواب کړي، که چيرې ما دا کار سرت ونه رساوه۰.
بيلګه ۱۱ . ۶ : د سيستم لپاره باور لري

$$D=\begin{vmatrix}2 & 3\\ 1 & -2\end{vmatrix}=-4-3=-7\neq 0$$

پس يوائځنی ټاکلی ځواب لري. پسی باور لري

$$D_1=\begin{vmatrix}4 & 3\\ -5 & -2\end{vmatrix}=-8+15=7\neq 0; D_2=\begin{vmatrix}2 & 4\\ 1 & -5\end{vmatrix}=-10-4=-14$$



له دې امله باوري دی

x1=D1/D=7/-7 , x2=D2/D=-14/-7= 2 ,

بيلګه۱۱ . ۷ :

د سيستم ۲ لپاره باور لري

$$D=\begin{vmatrix}2 & 3\\ 4 & 6\end{vmatrix}=12-12=0$$

او ورپسی

$$D_1=\begin{vmatrix}4 & 3\\ 8 & 6\end{vmatrix}=24-24=0; D_2=\begin{vmatrix}2 & 4\\ 4 & 8\end{vmatrix}=16-16=0$$

له دې امله ناپاي ډير ځوابونه موجود دي) بيلګه۱۱ . ۲ دې وکتل شي.)

بيلګه ۱۱ . ۸ :   د سيستم ۳ لپاره باور لري

$$D = \begin{vmatrix} 2 & 3 \\ 4 & 6 \end{vmatrix} = 12 - 12 = 0$$

D =   2       3   =12 -12 = 0

او ورپسی

$$D_1 = \begin{vmatrix} 2 & 3 \\ 10 & 6 \end{vmatrix} = 24 - 30 \neq 0$$

همدلت روښانه ده، چې  ځواب نه شته(د  0=| 4 = D2له شميرلوکيدی شي، چې تيرشو)

بيلګه ۱۱ . ۹ :

موږ بالاخره غواړو چي په بيلګه ۱۱ . ۴  کی ورکړ شوی مساواتسيستم ته د ديترمينانت له لارې ځواب  ورکړواو ددې لپاره لومړی   D , D1  او  D2 شميرو:

$$D=\begin{vmatrix} \frac{1}{a+b} & \frac{1}{a-b} \\ \frac{1}{a-b} & \frac{1}{a+b} \end{vmatrix} = \frac{1}{(a+b)^2} - \frac{1}{(a-b)^2} = \frac{(a-b)^2-(a+b)^2}{(a+b)^2(a-b)^2}$$

$$\ldots\ldots\ldots\ldots = \frac{a^2-2ab+{}^2-a^2-2ab-b^2}{(a^2-b^2)^2} = -\frac{4ab}{(a^2-b^2)^2};$$

$$D_1 = \begin{vmatrix} 1 & \frac{1}{a-b} \\ 1 & \frac{1}{a+b} \end{vmatrix} = \frac{1}{a+b} - \frac{1}{a-b} = \frac{a-b-(a+b)}{(a+b)(a-b)} = -\frac{2b}{a^2-b^2};$$

$$D_2 = \begin{vmatrix} \frac{1}{a+b} & 1 \\ \frac{1}{a-b} & 1 \end{vmatrix} = \frac{1}{a+b} - \frac{1}{a-b} = \frac{a-b-(a+b)}{(a+b)(a-b)} = -\frac{2b}{a^2-b^2}$$

لومړی حالت $ab \mid= 0$ :

دلته دیترمینانت $D \mid= 0$ او دا د برابرونسیستم یواځنی ټاکلی ځواب دی

$$x = \frac{D_1}{D} = \left(-\frac{2b}{a^2-b^2}\right) : \left(-\frac{4ab}{(a^2-b^2)^2}\right) = \frac{2b}{a^2-b^2} \cdot \frac{(a^2-b^2)^2}{4ab} = \frac{a^2-b^2}{2a}$$

$$y = \frac{D_2}{D} = \frac{a^2-b^2}{2a}$$ (د $D1 = D2$ له امله )

دوم ۱ حالت $a=0, b\mid=0$ : دلته $D = 0$ مګر

$D1 = D2 \mid= 0$

او د مساواتسیستم ځواب نه لري

دوم ۲

دلته $D = D1 = D2 = 0$

او ناپای ډیر ځوابونه موجود دي چې په بیلګه ۱۱ . ۴ کي ښوول شوي .

دوم ۳ حالت $a = b = 0$ :



---

دلته مساواتسیستم هدفمند نه دی ( په صفر ویش مخ ته پروت دی) مشوره کیږي چې

لاندی د برابرونونو سیستم دې د لاندې بریالي فورم بدلولو وروسته دبيلا بيلو لارو ځواب شي او د ځواب متودونه دې يو د بل سره پرتله يا مقايسه شي.

$$(a-b)x+(a+b)y=a^2-b^2$$
$$(a+b)x+(a-b)y=a^2-b^2$$

### ١١ . ١ . ٤ د ګاوس الګوریتم

په ١١ . ١ . ٢ . برخه کې څيړل شوو متودو ټيك په نظر نيولو سره ( برابرو ليکلو- په ځاي - او د زياتون عمليه ) ، کره پوهيدلی شو چی ددې په مرسته ټوليز د برابرونسيستم ( 11 . 8 )

$$a_{11}x_1+a_{12}x_2=a_1$$
$$a_{21}x_1+a_{22}x_2=a_2$$

په يوه دربېګوډيز جوړ سيتسم

$$a_{11}x_1+a_{12}x_2=a_1$$
$$\ldots\ldots\ldots a_{22}x_2=a_2$$

بدلولي شو، کوم چی بيا خورا ساده ځواب کيدی شي

١ . که a22 |= 0 وي، نو لاس ته راځي:

الف) $x2=a2/a22$

ب ) برسيره پر دې که $a_{11} \neq 0$ وي، نو لاس ته راځي:

$$x1=(a1/a11)-(a12/a11)x2=(a1/a11)-(a12/a11).(a2/a22)$$

٢ . که a22 = 0 او a2 |= 0 وي نو ځواب موجود نه دی يا نه شته

٣ . که a22 =0 او a2 = 0 وي، نو ٢- م برابرون بی هوده دی (د ضرورت وړ نه دی)، او سړی بيا ا. برابرون د ١١ . ١ . ١ برخی متود په مرسته ځوابولی شي.

د ( 11 . 8 ) سيستم د ځواب پرابلم په دې ډول کميږي، چی دا سيستم په دريګوډی بڼه يا – څيره واړوي . هغه الګوريتم چی دا په هر حالت کی ځواب کولی شي، د ګاوس الګوريتم دی. يا ( 11 . 8 ) سيستم دريګوډی څيره لري او يا ټول aik د صفر سره برابر نه دي.

په لاندې کی ( 11 . 8 ) سیستم په روځنی - یا مروج ډول او هم شیماتیکي ډول لیکل کیږي.

| | | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | a11x1+a12x2= a1 | a11 | a12 | a1 |
| II | a21x1+a22x2= a2 | a21 | a22 | a2 |

(دلته RS د مساواتو د ښي خوا (ښ خ ) یا ښی لور یا ښی اړخ مانا ورکوي)، که I په ځای پریښودل شي اود II برابرون a11 / a21 - ځله له I برابرون څخه کم شي ، نولرو

| | | $x_1$ | $x_2$ | Rs |
|---|---|---|---|---|
| I | $a_{11}x_1+a_{12}x_2 = a_1$ | $a_{11}$ | $a_{12}$ | $a_1$ |
| II' | $0.x_1+(a_{12}-a_{11}.a_{22}/a_{21})x_2=a_1-a_{11}.a_2/a_{21}$ | 0 | $a_1- a_{11}.a_{22}/a_{21}$ | $a_1-a_{11}.a_2/ a_{21}$ |

که II' لنډ په دی فورم ولیکل شي

نو ټول سیستم لاندې شکل غوره کوي :

| | | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | a11x1+a12x2= a1 | a11 | a12 | a1 |
| II' | b22x2 = b2 | | b22 | b2 |

اوس بیرته باید زیات حالتونه یو له بل توپیر شي:

-که b22 |= 0 وي ، نو x2 له II' او x1 له I لاس ته راځي.
-که b22 = 0 , b2 |=0 وي، نو ځواب وجود نه لري.
-که b22 = b2 = 0 وي، نو ناپای زیات ځوابونه موجود دي، چی له I
او ۱۱ . ۱ . ۱ برخی ته ورته را څرګندیدی شي (معلومیدلی شي.)

سیستمونه ۱ ، ۲ ، ۳ د ګاوس په الګوریتم ښوول کیږي

بیلګه ۱۱ . ۱۰ :

دا سیستم داسی لیکل  او شیماتیك کیږی:

| | | $x_1$ | $x_2$ | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | $2x_1 + 3x_2 = 4$ | 2 | 3 | 4 |
| II | $x_1 - 2x_2 = -5$ | 1 | -2 | -5 |

که غوښتونکی دریګوډیخیره غواړو لاس ته راولو نو Iهمداسی پریږدو او له II څخه دI یو یو په دوه ځله کموو :

| | | $x_1$ | $x_2$ | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | $2x_1 + 3x_2 = 4$ | 2 | 3 | 4 |
| II' | $0.x_1 - (7/2)x_2 = -5$ | 0 | -7/2 | -5 |

له  II'  لاس ته راځي  $x2 = 2$

او له  I  څخه لاس ته راځي. $x1 = 2 -(3/2)\ x2 = -1$

بیلګه ۱۱ . ۱۱:

دلته  سیستمونه ۲ او ۳ یواځي په شیماتیکي ډول (جدول په شکل (څیړو. دلته  د لمړی لیکی دوه ځله د دوهمی لیکی کمیږي

سیستم ۳

| | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 4 | 6 | 10 |
| II'=II-2.I | 0 | 0 | 2 |

سیستم۲

| | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 4 | 6 | 8 |
| II'=II-2.I | 0 | 0 | 0 |

په سیستم ۲ کی ګورو چی لمړی  برابرون  د دوم  برابرون په مخامخ څه نوی نه لري ( 0 = 0   تضاد  یا مخامخوالی نه شته). له دې امله یو  برابرون  (د بیلګي په توګه I ) موجود دی چی د ۱۱ . ۱ . ۱ برخي او یا ۱۱ . ۲  په څیر ځواب کیږي. په  سیستم ۳ کی تضاد همدا اوس لیدل کیږي" 0 = 2 " ، نو له دې امله ځواب نه شته.

بیلگه ۱۱ . ۱۲ :

سیستم I دې په څلور ډوله یا واریانتو د ګاوس الګوریتم په مرسته وڅېړل شي

دوم واریانت                                   اول واریانت

| | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 1 | -2 | -5 |
| II'=II+(2/3).I | 7/3 | 0 | -7/3 |
| 1. | 2 | 1 | -1 |

| | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 1 | -2 | -5 |
| II'=II-(1/2).I | 0 | -7/2 | -7 |
| 2. | -1 | 2. | 2 |

څلورم وایانت                                   دریم واریانت

| | x1 | x2 | Rs |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 1 | -2 | -5 |
| I=I-2.II | 0 | 7 | 114 |
| 1. | 2 | 1. | -1 |

| | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 2 | 3 | 4 |
| II | 1 | -2 | -5 |
| I'= I+(3/2).II | 7/2 | 0 | -7/2 |
| 2. | 2 | 2. | -1 |

دا دلته د یو ګڼ په چوکات یا څلورګوډیز  کی نیول دا مانا لري چی د هغی د پاسه ناپیژندونکي د مساوات څخه شمیرل کیږي، کومه چی په هغه لیکه کی پرته ده چی چوکاټ شوي، دا په یواځني ډول دا مانا لري  :

واریانت ۱:

ا )   له  I  څخه دې  x1  و شمیرل شي

ب ) له 'II څخه دې  x2 وشمیرل شي

پ )  په  1 کی  x2  له  'II شمیرل کیږي:

$x2= -7 / (-7/ 2) =2$

ت )  په  2  کی   x1 له I  شمیرل کیږي:

$x = (1/ 2)(4 - 3.2 ) = -1$

واریانت ۲ :

ا )  له I څخه  دې  x2 وشمیرل شي

---

ب ) له II' څخه دې x1 وشمیرل شي
پ ( له II' لرو: 1- = x1
ت ) له I څخه لرو: x2 = 2
واریانت (امکان ) ۳
ا) له II څخه دې x2 وشمیرل شي
ب ) له I' څخه دې x1 وشمیرل شي
پ ) له I' لرو 1- = x1
ت ( له II لرو x2 = 2
واریانت ( امکان) ۴
ا ) له II دې x1 و شمیرل شي
ب ) له I' څخه دې x2 وشمیرل شي
پ ( له I' لر x2 = 14 / 7 = 2
ت ) له II لرو:
x1 = -5+2.2 = -1

ټولی څلور واریانتی یا امکانت برابر ارزښتونه لری، خو دا چی په څلورمه واریانت کی په ټولګټونو شمیرنه کیږي، »مخته وونه« یا مخوونه( برتري ) یا نوره هم ښه وړاندې توب ورکول کیږي.

## ۱۱ . ۱ . ۵ له دوه وو زیات برابرونونه د دوه ناپیژندونکو سرهره

که څوك له دوه زیات برابرونونه د دوه اوښتونو یا ناپیژندونکو سره ځواب کوي، په ټولیزه (عمومي) توګه باید په نخښه شي چی لومړي دوه برابرونونه x1, x2 ځوابونه لري. که دا ځوابونه په نورو برابرونونو کی ځای په ځای شي تضاد ته رسیږو. د دوه ناپیژندونکو سره له دوه زیات مساوات په ټولیزه توګه حل نه لري. یواځي په ځانګړی حالت کی دا سیستم ځواب لرودی شي. موږ دا پروسه اول په عمومي ښوونلارې څیړو او بیا د ګاوس الګوریتم له لارې.

بیلګه ۱۱ . ۱۳: لاندني دوه سیستمونه ورکړ شوي دي

a ) I  x1 + 2x2 = 3   b) I  x1 + 2x2 = 3
II  2x1 - x2 = 1   II  2x1 - x2 = 1
III  3x1 + x2 = 2   III  3x1 + x2= 4

له I او II څخه د څرګندو یا معلومومتودونو له لارې په دواړو سیستمونو کی لاندې، په لومړی ځل یواځنی پیژندل شوی، ځواب لاس ته راځي۰

---
له ) a او )b ښخه لرو1 = x1 + 2x2 که دا ارزښتونه په IIIکی ځاي په ځاي شي نو لرو:

په ( a ) کې :4 = 1.1+3.1 |= 2, په ( b ) کی : 4 = 1.1 + 3.1

نو سیستم ( a ) ځواب نه لري او سیستم ( $\hat{b}$ ) یواځني ټاکلی ځواب لري

یعني $x1=x2=1$

بیلګه ۱۱ . ۱۴ :

په بیلګه ۱۱ . ۱۳ کي ورکړ شوي مساوت اوس د ګاوس د الګوریتم له لارې ځواب کوو.

| a) | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 1 | 2 | 3 |
| II | 2 | -1 | 1 |
| III | 3 | 1 | 3 |
| II'=II-2.I | 0 | -5 | -5 |
| III'=II-3.I | 0 | -5 | -7 |
| III''=III'-II' | 0 | 0 | -2 |

| b) | x1 | x2 | RS |
|---|---|---|---|
| I | 1 | 2 | 3 |
| II | 2 | -1 | 1 |
| III | 3 | 1 | 4 |
| II'=II-2.I | 0 | -5 | -5 |
| III=III-3.I | 0 | -5 | -5 |
| III=III'-II' | 0 | 0 | 0 |

په a ) کی تضاد پیژندلکیږي ( III':0.x1+0.x2=-2) ځواب نه شته یا وجود نه لري .

په b ) کی تضاد مخ ته نه دی پروت .(III':0.x1+0.x2=0 ) لهII' ښخه لرو:

x2 = 1 او له I ښخه لاس ته راځی : x1=3-2.1=1

۱۱ . ۲ لاینیزبرابرونتسیستم د درې ناپیژندونکو سره

۱۱. ۱ ۰ ۲ ۰ یو برابرون د دري ناپیژندونکو سره

مو ږ یو مساوات د دري ناپیژندونکو سره تر ښیرني لاندې نیسو:

$$a11x1 + a12x2+ a13x3 = a1 \quad (11 . 21)$$

دوه مختلف حالتونه ۱ او ۲ او نورمال فورم ۳ ممکن دي

$$I . \quad a11=a12=a13=0 \qquad (11 . 22)$$

دلته x1 , x2 او x3 یو له بل پوره خپلواك ټاکل کیدی شي. ویل کیږي چی ناپاي ډیر ځوابونه مخ ته پراته دي ( x1 په خوښه، x2په خوښه او x3په خوښه)

$$2. \quad a11=a12= a13= 0 ,a1|=0 \quad (11 . 23)$$

دلته تضاد مخ ته پروت دی
$0x1+0.x2+0.x3 = a1 \neq 0$
اوبیونه نه شته.
۳- د کم له کمه یوه ځلجوړې i , k لپار دې $aik \neq 0$ وي. ( بې د ټولیز وبندیزونو یا عمومیت د محدود والی دې $a11 \neq 0$ وي (. کیدی شي چی x2 او x3 په خوښه وټاکل شي ( ناپاي ډیر ځوابونه)، او لاس ته راځي
$x1=(1/a11)(a1-a12x2-a13x3)$ په خوښهx1 او x3 (11,24)

## ۱۱ . ۲ . ۲ دوه برابرونونه د درې ناپیژندونکو سره

لاندې د دوه برابرونسیستمونه د درې اوښتونو یا ناپیژندونکو سره

$a11x1+a12x2+a13x3=a1$ (11,25)

$a21x1+a22x2+a23x3= a2$ (11,25)

موږ دا را ویستلي حالتونه ، چیرته چی د ټولو i, kلپاره0 =aik ، په پام کی نه نیسو. دا حالت هم په پام کي نه نیسو چی دوم برابرون د لومړي په ځیر وي ( ناپاي ډیر ځوابونه. او یا دوهم برابرون د لمړي سره په مخامخوالي یا څتوالي یا تضاد کی وي ( ځواب نه وي) . دا ټول حالتونه اسان پیژندونکي دي. موږ په یوه بیلګه کی دا اصلي حالت څیړو چی یو ناپیژندونکي یا نامعلوم ( د بیلګي په توګه x3) په خوښه ټاکل کیږي او دا نورې دوه ناپیژندونکی یا اووښتونې ( x1 او x2) یواځنی لاس ته راځي، او یا یواځنی ورکول کیدی شي ( ناپاي ډیر ځوابونه).

بیلګه ۱۱ . ۱۵:

| | | x1 | x2 | x3 | RS |
|---|---|---|---|---|---|
| I | x1+x2+x3=3 | 1 | 1 | 1 | 3 |
| II | x1+2x2+3x3=6 | 1 | 2 | 3 | 6 |
| II'=II-I | 0.x1+x2+2x3=3 | 0 | 1 | 2 | 3 |

له II' لاس ته راځي
$x2 = 3 -2x3$
له I څخه لاس ته راځي
$x1=3-x2-x3=3-(3-2x3)-x3, x1= x3$

---

او له دې لاس ته راځي

$x_1=x_3, x_2 = 3 - 2x_3$ $x_3$ په خوښه.

## ۱۱ . ۲ . ۳ دریمه درجه دیترمینانت او د کرامر قاعده

اوس درې برابرونونه یا معادلې یا مساوات د درې ناپیژندونکو سره څیړو

$$\text{I} \qquad a_{11}x_1+a_{12}x_2+a_{13}x_3= a_1 \qquad (11 . 26)$$

$$\text{II} \qquad a_{21}x_1+a_{22}x_2+a_{23}x_3= a_2 \qquad (11,26)$$

$$\text{III} \qquad a_{31}x_1+a_{32}x_2+a_{33}x_3= a_3 \qquad (11,26)$$

له دې سیستم څخه کیدی شي چې د ۱۱ . ۱ . ۲ برخی د برابر لیکلو او یو د بل په ځای لیکلو متودونه په ساده ډول استعمال شي. د زیاتونتیورم (-قضیه) فکر غواړي او د دریمي درجي دیترمینانت او د کرامر قاعدې په لور مو د ( ۱۱ . ۲۶ ) سیستم ځواب پیدا کولو لپاره هڅوي

پیژند ۱۱ . ۲:

رییل ګڼونو $a_{ik}$ ( $i,k = 1,2,3$ ) (یو درې درجه منظم د دیتمرمینانت سیستم

$$D = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_{13} \\ a_{21} & a_{22} & a_{23} \\ a_{31} & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix}; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(11,27)$$

لاندې سرې لاندنی رییلګڼ پوهیدلی شي):

$$D = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_{13} \\ a_{21} & a_{22} & a_{23} \\ a_{31} & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix} = a_{11}\begin{pmatrix} a_{22} & a_{23} \\ a_{32} & a_{33} \end{pmatrix} - a_{12}\begin{pmatrix} a_{21} & a_{23} \\ a_{31} & a_{33} \end{pmatrix} + a_{13}\begin{pmatrix} a_{21} & a_{22} \\ a_{31} & a_{32} \end{pmatrix} =$$

$$a_{11}(a_{22}a_{33} - a_{23}a_{32)}) - a_{12}(a_1a_{33} - a_{23}a_{31}) + a_{13}(a_{21}a_{32} - a_{22}a_{33}); \ldots\ldots\ldots\ldots(11,28)$$

له دې سره د دریمی درجي دیترمینانت شمیرنه د دوهمی درجی دیترمینانت په شمیرنه بدله شوه. . ۱۱ . ۲ تعریف او په ځانګړې توګه ) 11 .28 ( فرمول په لاندې ډول توضیح کیدی شي:

پیژند ۱۱ . ۳ : په ( 11 . 27 ) کی د دیترمینانت D لاندېدیترمینانت Aik لاندې هغه دومه درجه دیترمینانت پوهیدلی شو، چی د D دیترمینانت i- می لیکی او k - م درځ یا متې د لرې کولو یا د منځه وړلو له لارې منځ ته راځي( زه د ماتریکس په دننه

---
کې دا لیکې او مټې یا ستې له منځه نه شم وړلی، خو دا کومې ستونځې نه پېښوی ، ځکه، چې لاس ته راوړنه یې پسې لیکل شوې )

$$A_{11} = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_{13} \\ a_{21} & a_{22} & a_{23} \\ a_{31} & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix} = \begin{pmatrix} a_{22} & a_{23} \\ a_{32} & a_{33} \end{pmatrix}$$

$$A_{12} = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_{13} \\ a_{21} & a_{22} & a_{23} \\ a_{31} & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix} = \begin{pmatrix} a_{21} & a_{23} \\ a_{31} & a_{33} \end{pmatrix}$$

$$A_{13} = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_{13} \\ a_{21} & a_{22} & a_{23} \\ a_{31} & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix} = \begin{pmatrix} a_{21} & a_{22} \\ a_{31} & a_{32} \end{pmatrix}$$

په دې ډول کیدی شي چې د ۱۱ . ۲ دیترمینانت په دې فورم ولیکل شي

پيژند ۱۱ . ۴ :
د دریمی درجي دیترمینانت D لاندې، چې په (11 . 27 ) کی ورکړ شوی دی،
دا لاندې ګڼ پوهیدل کیږي:

$$D = a_{11}A_{11} + a_{12}A_{12} + a_{13}A_{13}$$

د زیاتون عملیي څخه، چی دلته نسبت د دوه ناپیژندونکو مساواتو ته چی دوه ناپیوندونکی لري، روښانه ده، د ( 11 . 26 ) څخه لاس ته راوړل کیږي:

$$Dx1 = D1 \,,\; Dx2 = D2 \,,\; Dx3 = D3 \quad (11 . 29)$$

په داسی حالت کی چی Di داسي لاس ته راځي چی د ځله وونودیترمینانت ( 11 . 28 ) کی سړی i - م درځ یا ستن یا مټه د (11. 26 ) برابرون ښي لور ته ځای په ځای کړي.

$$D_1 = \begin{pmatrix} a_1 & a_{12} & a_{13} \\ a_2 & a_{22} & a_{23} \\ a_3 & a_{32} & a_{33} \end{pmatrix}; D_2 = \begin{pmatrix} a_{11} & a_1 & a_{13} \\ a_{21} & a_2 & a_{23} \\ a_{31} & a_3 & a_{33} \end{pmatrix}; D_{13} = \begin{pmatrix} a_{11} & a_{12} & a_1 \\ a_{21} & a_{22} & a_2 \\ a_{31} & a_{32} & a_3 \end{pmatrix}; \ldots\ldots(11,30)$$

موږ دا نتیجه بي له ښووني ورکوو.
له ( ۱۱ . ۲۹ ) ځخه لاندې جملی لاس ته راځي:

جمله ۱۱ . ۴ ( د کرامر قاعده) :
که د ( ۱۱ . ۲۶ ) د ځله وونودیترمینانتو( ۱۱ ). ۲۷ ،په همدې ډول ( ۱۱ . ۲۸ ) لپاره

--------------------------------------------------------------------------------

$D \neq 0$ ( 11 . 31 )

با وري وي ، نو ( ۱۱ . ۲۶ ) برابرونسيستم يوائځنی ځواب لري

$x1=D1/D$ ; $x2=D2 /D$ ; $x3=D3/D$ (11,32

جمله ۱۱ . ۵ :

که $D = 0$ مګر $Di \,|\!= 0$ کم له کمه د يوه i ( $i = 1,2,3$ ) لپاره وي، نو د ( ۱۱ . ۲۶ ) برابرونسيستم ځواب نه لري ( په ( ۱۱ . ۲۹ کی تضاد دی)

جمله ۱۱ . ۶ :

که $D = D1 = D2 = D3 = 0$ وي، نو په ( ۱۱ . ۲۶ ) کی کم له کمه يو برابرون له ضرورته زيات دی او دا ( ۱۱ . ۲۶ ) برابرونسيستم کيدي شي چي د ۱۱ . ۲ . ۲ متودونو باندې ځواب شي ( وړانديز دئ چی د ګاوس الګوريتم له متود ; چی په ۱ . ۲ . ۴ برخه کی ورکړ شوي ځواب شي.)

بيلګه ۱۱ . ۱۶ :

په لاندې سيستم

I $\quad x1 \quad -x3 = -2$

II $\quad x1 + x2 - x3 = 0$

III $\quad 2x1 - x2 \quad = 0$

کی دی

$$D = \begin{pmatrix} 10-1 \\ 11-1 \\ 2-10 \end{pmatrix} = 1.\begin{pmatrix} 1-1 \\ -10 \end{pmatrix} - 0.\begin{pmatrix} 1-1 \\ 20 \end{pmatrix} + (-1).\begin{pmatrix} 11 \\ 2-1 \end{pmatrix} = -1-0-1.(-1-2) = 2$$

$$D_1 = \begin{pmatrix} -20-1 \\ 01-1 \\ 0-10 \end{pmatrix} = -2\begin{pmatrix} 1-1 \\ -10 \end{pmatrix} - 0\begin{pmatrix} 0-1 \\ 00 \end{pmatrix} - 1\begin{pmatrix} 01 \\ 0-1 \end{pmatrix} = 2;$$

$$D_2 = \begin{pmatrix} 1-2-1 \\ 10-1 \\ 200 \end{pmatrix} = 1.\begin{pmatrix} 0-1 \\ 00 \end{pmatrix} - (-2)\begin{pmatrix} 1-1 \\ 20 \end{pmatrix} - 1.\begin{pmatrix} 10 \\ 20 \end{pmatrix} = 4:$$

$$D_3 = \begin{vmatrix} 10-2 \\ 110 \\ 2-10 \end{vmatrix} = 1.\begin{vmatrix} 10 \\ -19 \end{vmatrix} - 0.\begin{vmatrix} 10 \\ -10 \end{vmatrix} - 2\begin{vmatrix} 11 \\ 2-1 \end{vmatrix} = 6$$

---

نو یواځنی ټاکلی ځواب موجود دی.

$x1=D1/D=2/2=1,\ x2=D2/D=4/2=2\ ,x3=D3/D=6/2=3$

بیلګه ۱۱ . ۱۷ :

په لاندې سیستم

$$\begin{aligned} &I && x1 + x2 + x3 = 0 \\ &II && x1 \quad -x3 = 0 \\ &III && 2x1 + x2 \quad = 1 \end{aligned}$$

کي دئ.

دا بیلګه دې ګران لوستونکی پخپله وښایي ، چې اوبیونه نه شته ۰ دې ته باید ګوته ونیسم، $D = 0$ او $D1= -1 \neq 0$ ، چې ځواب نه لري۰

۱۱ . ۲ . ۴ د ګاوس الګوریتم

د ګاوس الګورتیم لومړی د ( ۱۱ . ۲۶ ) برابرونسیستم لپاره استعمالیږي. دا د دوه مساواتو لپاره چې درې ناپیژندونکي لري او همدارنګه د زیاتو مساواتو سیستم لپاره چې درې ناپیژندونکي لري د استعمال وړ دی.

د ګاوس د الګوریتم موخه په دې کی پرته ده چې ( 11 . 16 ) سیستم د ورته بدلونفورم له لارې په دریګوډیفورم را اوړي.

$$\begin{aligned} &I && a11x1+a12x2+a13x3=a1 && (11\ .\ 34) \\ &II && b22x2+b23x3=b2 \\ &III && c33x3=c3 \end{aligned}$$

بنسټیز حالت : که $a11 \neq 0, b11 \neq 0, c11 \neq 0$ وي نو یو په بل پسی سرې کړی شي چې له III $x3$, او له II $x2$, وشمیري. مګر په ( 11 . 34 ) کی ځانګړي حالتونه هم پیژندل کیږي:

-که $c3 \neq 0, c33=0$ وې، نو یو په ښتوالی یا تضاد مخ ته پروت دی، ځواب وجود نه لري

- که$c3=c33=0$ وی، نو III له ضرورتزیات دی سرې یواځی I او II څیړي.

- که$c33=c3=0$او برسیره پر دې $a11 \neq 0, b11 \neq 0$ وي، نو x3 په خوښه ټاکل کیدی شي او x2له II او x1 له I چې x3 ته اړ وي، شمیرلکیدی شي ( ناپای ډیر ځوابونه )

-برسیره پر دې که $b22=b23=0\ , b2 \neq 0$ وي، نو ځواب وجود نه لري

-که نور هم ولرو چې $c33=c3=0$ او $b22=b23=b3=0$وي ، نو II له ضرورت زیات دی او له $a11 \neq 0$ کیدی شي چې x2 او x3 په خوښه وټاکل شي، او x1له I لاس

ته راځي چی x2 او x3 ته اړ (په واك کی يا تابع) وي ( ناپاي ډير ځوابونه ځوابونه) .
که ټول ځلونه او د مساواتو ښی خوا صفر وي ، نو ناپاي ځوابونه موجود دی.

د ګاوس الګوريتموس د دريِ ناپيژندونکو( 11 . 26 ) سره له دوه پلونو(قدم) جوړ دئ
لومړی پل ( قدم) : نيسو چی په ( 11 . 2 6 )کی 0 =| a11 دی. دا د نمريِ بدلولو په بنسټ هميشه لاس ته راوړی شو) بي له ورکړ شووحالتونو) چی ټول aik = 0 وي) .
دلته I ورکول کيږي، او له II د I دا a21/a11 - ځله او له III دا a31 / a11 - ځله د I کموي. ددې ځخه لاندې سيستم لاس ته راځي:

$$\begin{array}{lr} I & a11x1+a12x2+a13x3=a1 \\ II & b22x2+b23x3=b2 \\ III & c33x3=c3 \end{array} \quad (11.35)$$

دويم پل ( قدم ) : د b22 |=0 نيوني سره په II' او III' باندې د ۱۱ . ۱ . ۴ برخي سره سم د ګاوس الګوريتم استعماليږي : سړی II' بي تغيره پريږدي اولهIII' دا b32/b22-ځله د II' کموي، له دې راپيداکيږي

$$\begin{array}{lr} I & a11x1+a12x2+a13x3=a1 \\ II & b22x2+b23x3=b2 \\ III & c33x3=c3 \end{array} \quad (11.37)$$

د ګاوس د شيما فورماليتي سره سم بيا دا شکل غوره کي

| | x1 | x2 | x3 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | a11 | a12 | a13 | a1 |
| II | a21 | a22 | a23 | a2 |
| III | a31 | a32 | a33 | a3 |
| II' = II-(a21/a11)I | | b22 | b23 | b2 |
| III' = III-(a31/a11)I | | b32 | b33 | b3 |
| III'' = III' - (b32/b22)II' | | | c33 | c3 |

x3 = c3 / c33

x2=(1/b22)(b2-b23x3)

x1=(1/a1)(a1-a12x2-a13x3)

بیلګه ۱۱ . ۱۸ : دا سیستم۰(مقایسه بیلګه ۱۱ . ۱۶)

I $x1 \quad -x3 = -2$

II $x1 + x2 - x3 = 0$

III $2x1 \quad -x2 \quad = 0$

د ګاوس الګوریتم سره په لاندې ډول حل کیږي

| | x1 | x2 | x3 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 0 | -1 | -2 |
| II | 1 | 1 | -1 | 0 |
| III | 2 | -1 | 0 | 0 |
| II'= II - I | 0 | 1 | 0 | 2 |
| III'= III - 2.I | 0 | -1 | 2 | 4 |
| III'' = III' + II' | 0 | | 2 | 6 |

$x3=6/2=3$

$x2=2$.......................

$x1=-2+x3=-2+3=1$

بیلګه۱۱ . ۱۹: (پرتله بیلګه ۱۱ . ۱۷ ( دا سیستم

I $x1 + x2 - x3 \quad = 0$

II $x1 \quad -x3 \quad = 0$

III $2x1 + x2 \quad = 1$

د ګاوس د الګوریتم په مرسته په لاندې ډول حل کیږي

| | x1 | x2 | x3 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 1 | 1 | 0 |
| II | 1 | 0 | -1 | 0 |
| III | 2 | 1 | 0 | 1 |

---

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| II'=II-I | 0 | -1 | -2 | 0 |
| III'=III-2.I | 0 | -1 | -2 | 1 |
| III''=III'-II' | 0 | 0 | 0 | 1 |

دلته دئ "0 = 1 " تضاد. سيستم نه اوبی کيږي يا حل نه لري.

بيلګه ۱۱ . ۲۰: ( مقايسه يا پرتله بيلګه ۱۱ . ۱۷ ) دا سيستم

I $x1 + x2 + x3 = 3$

II $x1 + 2x2 + 3x3 = 6$

III $2x1 + 3x2 + 4x3 = 9$

په لاندې ډول د ګاوس په الګوريتم اوبيونه ده

| | x1 | x2 | x3 | RS |
|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 1 | 1 | 3 |
| II | 1 | 2 | 3 | 6 |
| III | 2 | 3 | 4 | 9 |
| II'=II-I | 0 | 1 | 2 | 3 |
| III'=III-2I | 0 | 1 | 2 | 3 |
| III'' = III'-II' | 0 | 0 | 0 | 0 |

$x3 =$ په خوښه

$x2 = 3 - 2x3$

$x1 = 3 - x2 - x3 = 3 - (3 - 2x3) - x3 = x3$

## ۱۱ ۰ ۳ په خوښه ډير مساوات ، په خوښه ډير ناپيژندونکو سره

موږ په عمومي ډول د لاينيز سيستم برابرونونو په لار ښونی پيل کوو m ( برابرون د nناپيژندونکو سره)

---

$$a_{11}x_1+a_{12}x_2+a_{13}x_3+....+a_{1n}x_n=a1..................(11,37)$$

$$a_{21}x_1+a_{22}x_2+a_{23}+....+a_{2n}x_n=a_2$$

$$......................................................$$

$$..........................................................$$

$$a_{nm}x_1+a_{m2}x_2+a_{m3}x_3+.....+a_{mn}x_n=a_m$$

دا په خوښه یا ازاد پرېږدو چی د برابرونونو ګڼون ( تعداد) m د ناپیژندونکوn د ګڼون ( تعداد ) څخه لوي، کوچنی او که برابر دی. په څرګندو دندو یا وظایف موږ دلته له څلور ناپیژندونکو څخه نه پورته کیږو او یواځی لاندې دوه متودونه څیړو

۱۱ ۰ ۳ . ۱ دn - م درجی دیترمینانت او د کرامر قاعده

پیژند ۱۱ . ۵ :

د n رییل ګڼونو aik یوه منظم سیستم n- م درجي دیترمینانت

$$D=\begin{pmatrix} a_{11} & \cdots & a_{1n} \\ \vdots & \ddots & \vdots \\ a_{m1} & \cdots & a_{mn} \end{pmatrix};......................(11,38)$$

لاندې سرې لاندنې رییل ګڼ پوهیږي:

$$D=a_{11}A_{11}-a_{12}A_{12}+a_{13}A_{13}-a_{14}A_{14}+...\pm a_{1n}A_{1n}.....(11,39)$$

دلته aik غړي پورې مربوطه لاندې دیترمینانت Aik د (n-1) - م درجی دیترمینانت ده، چی پاتیږي، که په Dکیi - مه لیکه اوk - م درځ ، مټه یا ستن ( لیکه او درځ چی aikپه کی ولاړ وی ) په کرښه لرې کړي یا کرښه پرې تیره کړي، یعنی ووهي.

په دي ډول د-n ام درجی دیترمینانت شمیرل و- (n-1)-ام درجی دیترمینانت شمیرلو ته راتیټیږي .

په ځانګړي توږه د څلورمی درجی دیترمینانت لپاره دا لرو

$$A_{11}=\begin{vmatrix} a_{22}a_{23}a_{24} \\ a_{32}a_{33}a_{34} \\ a_{42}a_{43}a_{44} \end{vmatrix}; A_{12}=\begin{vmatrix} a_{21}a_{23}a_{24} \\ a_{31}a_{33}a_{34} \\ a_{41}a_{43}a_{44} \end{vmatrix};....A_{1n}\,etc$$

که n برابرونونه د n ناپیژندونکو سره مخ ته ولرو ) په ) 11 . 37 ( کی لرو) n=m د جمع تیورم په مرسته داسی سیستمونو لپاره لاندې نتیجه لاس ته راوړو

Dx1=D1,Dx2=D2, ...Dxn= Dn ( 11 . 42 )

د Di دیترمینانت داسی لاس ته راځي چی د ځله وونویا ضریبونو په دیترمینانت ) ۱۱ . ۳۸ ( کی د-i ام درځ متې یا ستن د برابرونسیستم د ښي لاس سره بدل کړي .

د بیلګی په توګه یوسیستم د ۴ مساواتو او۴ ناپیژندونکو سره ( پرتله مقایسه ۱۱ . ۴۰ )

$$D_1 = \begin{vmatrix} a_1 a_{12} a_{13} a_{14} \\ a_2 a_{22} a_{23} a_{24} \\ a_3 a_{32} a_{33} a_{34} \\ a_4 a_{42} a_{43} a_{44} \end{vmatrix}; D_2 = \begin{vmatrix} a_{11} a_1 a_{13} a_{14} \\ a_{21} a_2 a_{23} a_{24} \\ a_{31} a_3 a_{33} a_{34} \\ a_{41} a_4 a_{43} a_{44} \end{vmatrix}; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots (11,43)$$

له(11 . 42 ) څخه لاس ته راځي

جمله ۱۱ . ۷ ( د کرامر Cramer قاعده):

د ځله وونې یا ضریب دیترمینانت (۱۱,۳۸) لپاره د یوه مساوات سیستم د n مساواتو د nناپیژندوکو سره په ( ۱۱ . ۳۷ ) د m = n سره) باوري دی

D |= 0 (اصلي حالت ) ( 11 . 44)

نو دا برابرونسیستم یواځنی ټاکلی ځواب لري( حل لري

x1=D1/D,x2=D2/D,...,xn=Dn/D. ( 11 . 45)

برعکس که , D = 0 مګر D1 |= 0 کم له کمه د یوه i لپاره نو دا سیستم حل نه لري .

که D=D1=D2=...=Dn=0 وي، نو کم له کمه یو مساوات غیر ضروري دی (دلته د اوبیونې لپاره د ګاوس الګوریتم وړاندیز کوو )

بیلګه ۱۱ . ۲۱:

لا ندې سیستم دې حل شي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| I | $x_1$ | | $+x_3$ | | $= 0$ |
| II | $2x_1$ | $+x_2$ | | $+x_4$ | $=0$ |
| III | | $x_2$ | | $-x_4$ | $= 4$ |
| IV | $x_1$ | $-x_2$ | $-x_3$ | $+x_4$ | $= -2$ |

---

$$D=\begin{vmatrix}1010\\2102\\010-1\\1-1-11\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}102\\10-1\\-1-11\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}212\\01-1\\1-11\end{vmatrix}=-3-3=-6$$

$$D_1=\begin{vmatrix}0010\\0102\\410-1\\-2-1-11\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}012\\41-1\\-2-11\end{vmatrix}=-\begin{vmatrix}2-1\\-21\end{vmatrix}+2.\begin{vmatrix}41\\-2-1\end{vmatrix}=-2-4=-6$$

$$D_2=\begin{vmatrix}1010\\2002\\040-1\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}002\\40-1\\-2-11\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}202\\04-1\\1-21\end{vmatrix}=2.\begin{vmatrix}40\\-2-1\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}2\begin{vmatrix}4-1\\-21\end{vmatrix}\end{vmatrix}+2\begin{vmatrix}04\\1-2\end{vmatrix}=$$

$$=2.(4)+.2+2.(-4)=-12$$

$$D_3=\begin{vmatrix}1000\\2102\\014-1\\1-1-21\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}102\\14-1\\-1-21\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}4-1\\-21\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}2.\begin{vmatrix}14\\-1-2\end{vmatrix}=4-2+2(-2+4)=6\end{vmatrix}$$

$$D_4=\begin{vmatrix}1010\\2100\\0104\\1-1-1-2\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}100\\104\\-1-1-2\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}210\\014\\1-1-2\end{vmatrix}=\begin{vmatrix}04\\-1-2\end{vmatrix}+2.\begin{vmatrix}14\\-1-2\end{vmatrix}+\begin{vmatrix}01\\1-2\end{vmatrix}=$$

$$=4+2.2-(-4)=12;$$

$$x_1=\frac{-6}{-6}=1;x_2=\frac{-12}{-6}=2;x_3=\frac{6}{-6}=-1;x_4=\frac{12}{-6}=-2$$

۱۱ .۳ . ۲ د ګاوس الګوریتم:

موږ ولیدل چی د ګاوس الګوریتم له لارې د مساوتو یو دریکوجشکل سیستم لاس ته راوستی شو، چی د هغې له مخی څرګندولی شو چی کوم حل )ځواب( مخ ته پروت دی .

دا په لاندې بیلګه څرګندوو

بیلګه ۱۱ . ۲ ۲ :

که په بیلګه ۱۱ . ۲۱ کی ورکړ شوی سیستم د ګاوس الګوریتم له لارې حل کړو، نو لاندني شیما لاس ته راځي:

---

| | x1 | x2 | x3 | x4 | Rs |
|---|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 0 | 1 | 0 | 0 |
| II | 2 | 1 | 0 | 2 | 0 |
| III | 0 | 1 | 0 | -1 | 4 |
| IV | 1 | -1 | -1 | 1 | -2 |
| II'=II -2.I | 0 | 1 | -2 | 2 | 0 |
| 4III' = III | 0 | 1 | 0 | -1 | 4 |
| IV' = IV-I | 0 | 1 | -2 | 1 | -2 |
| III" = III' - II' | 0 | 0 | 2 | -3 | 4 |
| IV" = IV' +II' | 0 | 0 | -4 | 3 | -2 |
| IV"' = IV" + 2.II" | 0 | 0 | 0 | -3 | 6 |

x4 = -2
x3=1/2(4+3.(-2))= -1
x2=0+(-1)(-2)= 2......
x1 = -(-1) = 1 ...........

بيلګه ۱۱ . ۲۳:
دا برابرونسيستم

I x1 +x2 +x3 +x4=4
II x1 -x2 -x3 +x4=0
III 3x1 -x2 -x3 +x4=2

حل يا اوبيونه ی نه لرئ، لکه د ګاوس له شيما څخه چی ليدل کيږي:

| | x1 | x2 | x3 | x4 | RS |
|---|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 1 | 1 | 1 | 4 |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| II | 1 | -1 | -1 | 1 | 0 |
| III | 3 | -1 | -1 | 3 | 2 |
| II' = II-I | 0 | -2 | -2 | 0 | -4 |
| III' = III-3.I | 0 | -4 | -4 | 0 | -10 |
| III" = III' - 2.II' | 0 | 0 | 0 | 0 | -2 |

دلته "III په ځتوالی یا تضاد خوندي لري " 0 = -2 "

بیلګه ۱۱ . ۲۴:

لاندې سیستم د ۵ برابرونونو او ۴ ناپیژندونکو سره

I x1 +x2 +x3 +x4= 4
II x1 -x2 -x3 +x4= 0
III 3x1 -x2 -x3 +3x4= 4
IV x1 +2x2 +3x3 +4x4=10
V 3x1 +x2 + x3 +3x4= 8

ګورو چی oe1 ( ناپای ډیر) اوبیوني لري

| | x1 | x2 | x3 | x4 | RS |
|---|---|---|---|---|---|
| I | 1 | 1 | 1 | 1 | 4 |
| II | 1 | -1 | -1 | 1 | 0 |
| III | 3 | -1 | -1 | 3 | 4 |
| IV | 1 | 2 | 3 | 4 | 10 |
| V | 3 | 1 | 1 | 3 | 8 |
| II' = II-I | 0 | 2 | - 2 | 0 | -4 |
| III'= III-3.I | 0 | -4 | -4 | 0 | -8 |
| IV' = IV -I | 0 | 1 | 2 | 3 | 6 |
| V' = V-3.I | 0 | -2 | -2 | 0 | -4 |

---

II"= II'+2.IV'  0 0 2 6 8
III'=III'+4.IV'  0 0 4 12 16
V" = V' +2.IV'  0 0 2 6 8

---

III''' = III"-2.II'  0 0 0 0 0
V'''=V"-II  0 0 0 0 0

---

ګورو چی III''' او V''' تضاد نه لري. سږی کړي شي چی x4 په خوښه وټاکي او لاس ته راوړي
له , $x3=4-x4$ له II"  $x2=6-2(4-3x4)-3x4=-2+3x4$ IV' او لهI
$x=4-x2-x3-x4=4-(-2+3x4)-(4-3x4)-x4=2-x4$
نو $x1=2-x4$ په خوښه x4 ټاکو
او $x2=-2+3x4$ ، په خوښه x4 ټاکو
او $x3=4-3x4$ په خوښه x4 ټاکو
یادونه : هغه کڼ یا نوره هم ښه هغه ځله ووني، چې غواړو صفر شي یا له منځه وړو هغه مو شنه کړي۰
سږی د ګاوس شیما په دوم بلاك کی پیژندلی شي، مساوات، کوم چی په III' او V' پوري اړه لري، بل څه نه افاده کوي په غیر له هغی چی په II' اړه لرونکي دي. کیدی شو چی په III' او V' لیکو مو کرښه تیره کړې وی ) له منځه وړې وی (. دریم بلا ك به یواځي له کرښی II' جوړ وی، او د ګاوس الګوریتم به له دې سره پاي میندلی وی.
۱۱ . ۴ هوموژین مساواتسیستم:
د n مساواتو یو سیستم د n نامعلومو سره چی د ټولو مطلقه غړي ورك شي، هموګین مساواتسیسمتم بلل کیږي .
د n = 3 لپاره دا د مثال په توګه هوموګیڼ سیستم بلل کیږي

$$\begin{aligned} &I \quad a11x1+a12x2+a13x3= 0 \\ &II \quad a21x1+a22x2+a23x3= 0 \quad (11.46) \\ &III \quad a31x1+a32x2+a33x3= 0 \end{aligned}$$

یو داسی هموژینسیستم تل یوه اسانه اوبیونه یا اسان حل لري

$$x1=x2=x3=...=xn=0 \quad (11.47)$$

که د ځلوونو د یترمینانت ( ۱۱ . ۳۸ ) لپاره D |= 0 باور ولري، نو د جملی ۱۱ . ۷ شیما څخه یواځي اسان trivial اوبیونه یاحل موجود دی او باور لري

---

جمله ۱۱. ۸ : يو هوموگين مساواتسيستم يواځ هلته سخت حل لري، که $D = 0$ باوري وي بيلگه ۱۱ . ۲۵ :

دا هوموژين برابرونسيستم

$$\begin{aligned} &I \quad x1 \quad +x3=0 \\ &II \quad x1 \; -x2 \quad =0 \\ &III \quad x1 \; +x2 \; +x3=0 \end{aligned}$$

د

$$D = \begin{vmatrix} 1 0 1 \\ 1 -1 0 \\ 1 1 1 \end{vmatrix} = \begin{vmatrix} -1 0 \\ 1 1 \end{vmatrix} + \begin{vmatrix} 1 -1 \\ 1 1 \end{vmatrix} = -1 + (1+1) \neq 0$$

له امله يواځنی ساده اوبيونه $x1=x2=x3=0$ لري.

بيلگه ۱۱ . ۲۶:

دا هموگين مساواتسيستم

$$\begin{aligned} &I \quad x1 \quad +x3 = 0 \\ &II \quad x1 +x2 \quad = 0 \\ &III \quad x1 +x2 +x3 = 0 \end{aligned}$$

$$D = \begin{vmatrix} 1 0 1 \\ 1 -1 0 \\ 0 1 1 \end{vmatrix} = \begin{vmatrix} -1 0 \\ 1 1 \end{vmatrix} + \begin{vmatrix} 1 -1 \\ 0 1 \end{vmatrix} = -1 + 1 = 0$$

د

له امله ناساده اوبنونه هم لري دا په لاندې ډول د گاوس د الگوريتموس څخه لاس ته راځي: په لاندې کې RS د پاتې- يا باقي سيستم په معنا دی.

x1 x2 x3 RS

---

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 0 | 0 | 1 | I | 1 |
| 0 | II | 1 | -1 | 0 |
| 0 | III | 0 | 1 | 1 |

---

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| II'=II-I | 0 | -1 | -1 | 0 |
| III' = III | 0 | 1 | 1 | 0 |

---

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| II'' = II + III' | 0 | 0 | 0 | 0 |

-----------------------------------------------------------------------------

ګورو چې II"تضاد نه لري x3په خوښنه ټاکو، او له III' لاس ته راځيx3-=x2 او له I ځخه لاس ته راځي x3-=x1نوx3- =x1نو X3 په خوښنه او x3- = x2 نوx3 په خوښنه

## . تمرينونه

د نامعلومو لپاره -لکه له ښوونځي چې ورسره بلد يو-پوهيږو او يا هم

۱ – کرښيز مساواتسيستم له دوه مجهولو سره.

مشوره مو داده، چې د دې تمرينونو د حل لپاره د مختلفو تګلارو ځخه کار اخستلس شي، چې بيايې و ازمايو. د لته دې د زياتون يا جمعې قانون او همداسې د ګاوس الګوريتم ته لومړيتوب ورکړ شي ا و د ديترمينانت سره شميرنه دې يوه بله د استعمال لار وي.

۱ . ۱ – مساوتسيستم د ټاکلو ضريبونو سره

1.1.1. a) $2x_1 + 3x_2 = 8$, $3x_1 - 6x_2 = -30$  b) $x_1 = 3x_2 - 14$, $x_2 = 3x_1 - 22$

c) $51x - \frac{3}{20y} = 3$, $48x - \frac{1}{10y} = 2$  d) $\frac{1}{x} + \frac{2}{y} = 3$, $\frac{5}{x} - \frac{1}{y} = 4$

1.1.2. a) $5(x_2 + 2) - 3(x_1 + 1) = 23$, $3(x_2 - 2) = 19 - 5(x_1 - 1)$  b) $3(2x_1 - x_2) + 4(x_1 - 2x_2) = 87$, $2(3x_1 - x_2) - 3(x_1 - x_2) = 82$

c) $4 - \frac{1}{3}(2x - y - \frac{9}{2}) = \frac{1}{8}(3x - 6 - 4y)$, $4 - \frac{x - \frac{1}{2}y + 3}{3} = \frac{2y - x - 6}{8}$  d) $3y - \frac{3(4x - 3y)}{2} = 2x - 3y - 1$, $3x - \frac{3(3x - 2y)}{5} = 5x - 3y - 1$

1.1.3. a) $\frac{1}{\frac{7}{2}x - 3} = \frac{1}{4y - 3}$, $\frac{1}{\frac{5}{2}x + 4} = \frac{1}{3y + 1}$  b) $\frac{1}{3x - 5} = \frac{4}{7y - 13}$, $\frac{1}{y - x} = \frac{8}{3x + y}$

c) $\frac{1}{y-10} = \frac{25}{12x+19}$ d) $4+y = x$

$\frac{1}{45-x} = \frac{8}{15y+1}$ $\frac{2}{5-3x} = \frac{3}{7-2y}$

1.1.4. a) $(x-1)(2y+5) = (y+1)(2x-1)$

$(2x+7)(y-2) = (2y-3)(x+2)$

b) $4(5y-3)(2x+1) = (10x+7)(4y-3)$

$2(2y+1)(x+4) = (2x+5)(2y+3)$

c) $\frac{1}{x}+\frac{1}{y} = \frac{1}{2}$ d) $\frac{3}{x}+\frac{8}{y} = 3$

$\frac{1}{x}-\frac{1}{y} = \frac{1}{6}$ $\frac{15}{x}-\frac{4}{y} = 4$

1.1.5. a) $\frac{9x_1}{2}+\frac{3x_2}{2} = 3$ b) $\frac{2x_2-5x_1}{6}+\frac{x_1}{6} = \frac{x_2-2x_1}{3}$

$3x_1+x_2 = 2$ $\frac{5-3x_1}{3}-\frac{4x_2-1}{4} = \frac{6x_1+23}{12}-\frac{3x_1-4x_2}{2}$

c) $\frac{12}{4x_1+3x_2}-\frac{1}{3(3x_1-2x_2)} = \frac{1}{6}$ d) $3(x_1-2)+4(2x_2+\frac{3}{2}) = 0$

$\frac{5}{3x_1-2x_2}+\frac{6}{4x_1+3x_2} = 5{,}25$ $5(x_1+3)-3(x_2-\frac{1}{3}) = 16$

1.1.6. a) $3x_1+4x_2 = 8$ b) $6x_1-x_2 = 1$

$5x_1-2x_2 = 9$ $9x_1+2x_2 = 5$

$7x_1-8x_2 = 10$ $3x_1-x_2 = 1$

c) $5x_1-3x_2 = -3$ d) $2x_1-3x_2 = 10$

$3x_1+5x_2 = 5$ $-\frac{1}{3}x_1+\frac{1}{2}x_2 = -\frac{5}{3}$

$3x_1-1{,}8x_2 = -1{,}8$ $x_1-1{,}5x_2 = 5$

$0{,}9x_1+1{,}5x_2 = 1{,}5$ $0{,}5x_1-0{,}75x_2 = 2{,}5$

۱ ، ۲ – مساواتسيستم د ناټاکلو ضريبونو سره

1.2.1. a) $x_1+x_2 = a$ b) $3x_1-2x_2 = 5a$

$ax_1-x_2 = b$ $2x_1-3x_2 = 5b$

c) $10x + 6y = 4a + b$
$6x + 10y = 4a - b$

d) $14x - 15y = 24a$
$10x - 21y = 24b$

1.2.2. a) $\frac{x_1}{2a+b} - \frac{x_2}{2a-b} = \frac{8ab}{b^2 - 4a^2}$
$\frac{x_1}{2a+b} + \frac{x_2}{2a-b} = \frac{8a^2 + 2b^2}{4a^2 - b^2}$

b) $-(a+b)x_1 + (a-b)x_2 = 0$
$(a-b)x_1 + (a+b)x_2 - 4ab = 0$

c) $\left(\frac{a^2+b^2}{2b}\right)^2 \cdot x - \left(\frac{b^2-a^2}{2b}\right)^2 \cdot y = a^2$
$\frac{a^2+b^2}{2b} \cdot x + \frac{b^2-a^2}{2b} \cdot y = b$

d) $\frac{x}{b+c} - \frac{y}{a+c} = a - c$
$\frac{x}{a+b} - \frac{y}{b+c} = b - a$

1.2.3. a) $x + y = \frac{2(a^2+b^2)}{a^2 - b^2}$
$x - y = \frac{4ab}{a^2 - b^2}$

b) $x + y = \frac{a^2+b^2}{a^2-b^2}$
$2x + 3y = \frac{2a^2 + ab + 3b^2}{a^2 - b^2}$

c) $ax + by = 2a$
$a^2x - b^2y = a^2 + b^2$

d) $ax + by = a^3 + 2a^2b + b^3$
$bx + ay = a^3 + 2ab^2 + b^3$

1.2.4. a) $ax + by = 2a$
$x + y = \frac{a^2+b^2}{ab}$

b) $(a-b)x + (a+b)y = a + b$
$\frac{x}{a+b} - \frac{y}{a-b} = \frac{1}{a+b}$

c) $\frac{x-a}{y-a} = \frac{a-b}{a+b}$
$\frac{x}{y} = \frac{a^3-b^3}{a^3+b^3}$

d) $(a-b)x + y = \frac{a+b+1}{a+b}$
$x + (a+b)y = \frac{a-b+1}{a-b}$

۱ . ۳ – شي شميرنه

۱. ۳. ۱ کوم دوه اعداد لاندې خويونه لري؟ که هرعدد په ۵ لوی شي، د مربع يا څلورئ کمون(تفريق) يې په ۱۰۰ لوييږي، په داسې حا لې جې ضرب يې په۳۲۵ زياتيږي.

۱ . ۳ . ۲ د دوه عددونو جمعه يا زياتون دومره لوي دی، لکه د تفريق مربع يې.

که ۴ لومړي عدد تع ورزيات شي او له دويم عدد کم شي، نو د مربع کمون د يا تفريق يې ۹۹ دی، وښايئ چې عددونه څومره لوی دي؟

۱ . ۳ . ۳ د هرو دوه گڼونو څخه هر یویی په 2 لویوي، نو گڼونه څانونه نیسي لکه: 4 : 3 . که له هر یوه ددې دوه گڼونوڅخه 3 کم شي ، نو داسی لاس ته راغلی گڼ ځان نیسی لکه : 3 : 2 . دواړه گڼونه کوم دي؟

۱ . ۳ . ۴ د دوه گڼونو زیاتون 999 دی. که لمړی گڼ په 9 وویشل شي او دوم په 6 ، نو د ویشونکو زیاتون 138 دی . هر یو ددې دوه گڼونو څومره لوي دی؟

۱ . ۳ . ۵ د دوه گڼونو زیاتون 1000 دی. که لمړی له 2 او دوم له 3 سره څل یا ضرب شي، نو د څلونو زیاتون یی 2222 دی. هر یو له دې گڼونوڅومره لوي دی؟

۱ . ۳ . ۶ په دوه گڼونو کې یو له بل په 0,909 لوي دی، زیاتون یې 3,191 دی. دواړه گڼونه څه نومیږي یا کوم دي؟

۱ . ۳ . ۸ . د یوه دریکونجي د دوه اړخونواوږدوالي زیاتون 8,4 cm دی او پڅیکشن یا پریوستون یی د دریکونجي په دریم اړخ 4 cm او 1,6 cm دی. د دریگوډي اړخونه څومره لوي دي؟

۱ . ۳ . ۹ . د یوه لوي ښار ترمنځ دوه کلي X او Y د ښار له مرکز Z سره یو دریگوډی جوړوي . له X څخه چی له Z څخه تیریږي ،Y ته اوږدوالي 12 cm دی، Y له مرکز Z څخه 2 km زیات لري دی نسبت و X ته ، دواړه منځ کلی X او Y له مرکز Z څخه څومره لرېدي؟

۱ . ۳ . ۱۰ . د یوه فوټبال میدان څخه د څلورکونجي شکله د لرگیو راگرځیدلی دیوال، چی 420 m اوږد دی ، باید په اغزیو سیمانو بدل کړي. دلته یوه خوا په 5 m کوچنی کیږي، که بل اړخ په 10 m اوږده شي. له دې سره د سیمگرځی اوږده د هوارې دننه په $100\ m^2$ زیاتیږي. د څلورکونجیز اړخونه څومره لوي دي؟

۱ . ۳ . ۱۱ . د یوه موټر ماشین یخی ۸ لیتره اوبه خونديږ کوي او دوه وتللارې لري، دا کیدی شي خالي شي، که د بیلګي په توګه لمړی 5 دقیقی او دوم 2 دقیقی واز کړي او یا دوم 6 دقیقي او لمړي 3 دقیقي واز شي. په هرنل کي څومره اوبه په یوه دقیقه کی وزي؟

۱ . ۳ ۱۲ . یو پلار له خوي څخه ۳۶ کاله زوړ دی په ۵ کاله کی پلارد خوي 1 / 4 عمرڅخه ور زیات 3 برابره د خوي عمر لري اوس پلار او خوي هر یو څومره عمر لري؟

۱ . ۳ . ۱۳ د شربت د ګډولو لپاره دوه ډوله شربتونه سره ګډیږي. که له لمړۍ درې بوتله واخستل شي او له دوم ۷ بوتله نو د یوه بوتل ارزښت دې ۲ مارکه وشمیرل شي. مګر که له لمړۍ ۷ بوتله او له دوم درې بوتله سره ګډ شي، د یوه بوتل ارزښت 40 , 2 الماني مارکه(DM ) کیږي. د په کارونو شربتونو بوتل به څومره ارزښت ولري؟

۱ . ۳ . ۱۴ . یود 450 m³ اوبو اوبه ډکی یا اوبه ساتی ( بیلر ) له دوه نلونو ډکیږي. که لمړی نل درې دقیقي او دوم یوه دقیه واز وي،نو په اوبه ساتي کی 40 m³ اوبه جریان لرودی شي. مګر که لمړی یوه دقیقه او دوم نل ۷ دقیقي وازې وي، نو اوبه ساتي ته 60m³ اوبه جریان لري. هر نل په یوه دقیقه کی څومره اوبه اوبه ساتي ته غورځوي؟ څومره باید هر نل له همغه یوه وخته واز وي چی اوبه ساتی ډك شي؟

۱ . ۳ . ۱۵ . دوه کارګرو ته د کندنی کار ور په غاړه کیږي. که دواړه یوځاي کار وکړي، نو ۱۲ ورځو ته ضرورت دی. که لمړی دوه ورځي او دوم درې ورځي کار وکړي، نو په دې وخت کی یواځي 1 / 5 برخه د کار کړه کیږي. څومره ورځی به له دوي هر یو ځانله د دې کار لپاره ضرورت ولري ؟ اړتیا ولري؟

---

۱ . ۳ . ۱۶ . د یوې ګردې په چاپیرې چې ۱۰۰ متره اوږد دی، دوه بدنونه په حرکت راځي. هغوي هر ۲۰ دقیې حرکت کوي، که هغوي په همغه لور حرکت وکړي او هر ۴ دقیې، که هغوي یو د بل په څټ لور حرکت وکړي، هر بدن په یوه ثانیه کې څومره واټن تې کوي یا وهي؟

۱ . ۳ . ۱۷ . په یوه ګردې چې چاپیرې یې ۹۹۹ متره اوږد دی دوه بدنونه په همغه لور حرکت کوي او دا حرکت په هرو ۳۷ ثانیو کې. د دواړو بدنونو سرعت څومره دی، که د لمړي سرعت څلور واره لوي لکه د دوم وي؟

۲

۲ . کرښیز مساوات سیستمونه د درې مجهولو سره

۱ – مساواتسیستم د ټاکلو ضریبونو سره

a)
$$\begin{aligned} x + y &= 14 \\ x + z &= 15 \\ y + z &= 16 \end{aligned}$$

b)
$$\begin{aligned} x_1 - x_2 &= 4 \\ x_1 + x_3 &= 18 \\ x_2 - x_3 &= 6 \end{aligned}$$

c)
$$\begin{aligned} x_1 + x_2 &= 6{,}6 \\ x_1 - x_3 &= 2{,}6 \\ x_2 - x_3 &= 2 \end{aligned}$$

d)
$$\begin{aligned} x + y + z &= 25 \\ 3x - 2z &= 1 \\ 20y - 16z &= 0 \end{aligned}$$

e)
$$\begin{aligned} 2x + 3z &= 13 \\ 3x - 4y &= 3 \\ 5y - 6z &= 9 \end{aligned}$$

f)
$$\begin{aligned} 12x + 24y - 42z &= 30 \\ 4x + 8y - 14z &= 10 \\ 6x + 12y - 21z &= 15 \end{aligned}$$

g)
$$\begin{aligned} 5x + 3y + 2z &= 207 \\ 5x - 3y &= 37 \\ 3y - 2z &= 19 \end{aligned}$$

h)
$$\begin{aligned} x_1 + x_2 - x_3 &= 17 \\ x_1 - x_2 + x_3 &= 13 \\ -x_1 + x_2 + x_3 &= 14 \end{aligned}$$

i)
$$\begin{aligned} x_1 - 5x_2 + 2x_3 &= 11 \\ 2x_1 - 3x_2 + x_3 &= 6 \\ 6x_1 - 16x_2 + 10x_3 &= 39 \end{aligned}$$

j)
$$\begin{aligned} 4x + 4\tfrac{1}{2}y - 6\tfrac{3}{4}z &= 20 \\ 2\tfrac{1}{5}x - 2\tfrac{1}{3}y + 1\tfrac{1}{2}z &= 5\tfrac{2}{3} \\ 1\tfrac{2}{3}x + 1\tfrac{3}{4}y - 4\tfrac{1}{2}z &= 3\tfrac{1}{3} \end{aligned}$$

k)
$$\begin{aligned} \tfrac{2}{5}x - y &= 0 \\ \tfrac{2}{3}x - z &= 1 \\ -\tfrac{2}{3}y + z &= 2 \end{aligned}$$

۲ . ۲ – مساوات سیستمونه د ناټاکلو ضریبونو سره

a)
$$\begin{aligned} x_1 + x_2 &= 2c \\ x_1 + x_3 &= 2b \\ x_2 + x_3 &= 2a \end{aligned}$$

b)
$$\begin{aligned} x_1 + x_2 &= 2(a + b) \\ x_1 + x_3 &= 2(a + c) \\ x_2 + x_3 &= 2(b + c) \end{aligned}$$

c)
$$\begin{aligned} ax + by - z &= 1 \\ ax - by + z &= b \\ -ax + by + z &= a \end{aligned}$$

d) $$\begin{aligned} ax + y - cz &= 2a \\ -ax + y + cz &= 2c \\ ax - y + cz &= 2ac \end{aligned}$$

e) $$\begin{aligned} \frac{1}{y} + \frac{1}{z} &= 2a \\ \frac{1}{x} + \frac{1}{z} &= 2b \\ \frac{1}{x} + \frac{1}{y} &= 0 \end{aligned}$$

f) $$\begin{aligned} -\frac{1}{x} + \frac{1}{y} + \frac{1}{z} &= \frac{2}{a} \\ \frac{1}{x} - \frac{1}{y} + \frac{1}{z} &= 0 \\ \frac{1}{x} + \frac{1}{y} - \frac{1}{z} &= \frac{2}{b} \end{aligned}$$

g) $$\begin{aligned} x + \frac{y}{b} - \frac{z}{c} &= a \\ y + \frac{z}{c} - \frac{x}{a} &= b \\ z + \frac{x}{a} - \frac{y}{b} &= c \end{aligned}$$

h) $$\begin{aligned} \frac{x}{b+c} + \frac{y}{c-a} &= a + b \\ \frac{y}{c+a} + \frac{z}{a-b} &= b + c \\ \frac{z}{a+b} + \frac{x}{b-c} &= c + a \end{aligned}$$

۳ . په خوښه زيات مساوات د په خوښي زياتو مجهولو سره

a) $$\begin{aligned} 2x_1 - 3x_2 - 2x_3 + 4x_4 &= 7 \\ x_1 + x_2 + x_3 + x_4 &= 7 \\ 0{,}5x_1 + x_2 + 1{,}5x_3 - 0{,}5x_4 &= 3 \\ 3x_1 - x_2 + x_3 + 2x_4 &= 10 \end{aligned}$$

b) $$\begin{aligned} 3x_1 - x_2 + 2x_3 + x_4 &= 6 \\ x_1 + 0{,}5x_2 + x_3 &= 1 \\ 7x_1 + x_2 + 6x_3 + x_4 &= 10 \\ 6x_1 + 0{,}5x_2 + 5x_3 + x_4 &= 9 \end{aligned}$$

c) $$\begin{aligned} x_1 + 3x_2 + x_3 - 2x_4 - 2x_5 &= 1 \\ -2x_1 - 2x_2 + x_3 + 3x_4 + x_5 &= 3 \\ -2x_1 + x_2 + 3x_3 + x_4 - 2x_5 &= 5 \\ 3x_1 + x_2 - 2x_3 - 2x_4 + x_5 &= 2 \\ x_1 - 2x_2 - 2x_3 + x_4 + 3x_5 &= 4 \end{aligned}$$

d) $$\begin{aligned} x_1 + x_2 + x_3 + x_4 + x_5 + x_6 &= 21 \\ x_1 - x_2 - x_3 + x_4 - x_5 + x_6 &= 1 \\ 6x_1 - 5x_2 + 4x_3 - 3x_4 + 2x_5 - x_6 &= 0 \\ x_1 + 2x_2 + 3x_3 + 4x_4 + 5x_5 - 6x_6 &= 19 \\ 2x_1 - 3x_2 + 4x_3 - 5x_4 + 6x_5 - 7x_6 &= -24 \\ -x_1 + x_2 - x_3 + x_4 - x_5 + x_6 &= 3 \end{aligned}$$

هوموجين مساوات سيستمونه:

a) $$\begin{aligned} 3x_1 - 4x_2 + 7x_3 &= 0 \\ -x_1 + 3x_2 - 2x_3 &= 0 \\ -2x_1 + 5x_2 + 3x_3 &= 0 \end{aligned}$$

b) $$\begin{aligned} -x_1 + 2x_2 - 4x_3 &= 0 \\ 5x_1 - 3x_2 + 6x_3 &= 0 \\ 3x_1 - x_2 + 2x_3 &= 0 \end{aligned}$$

c) $$\begin{aligned} 20x_1 - 10x_2 + 15x_3 &= 0 \\ -12x_1 + 6x_2 - 9x_3 &= 0 \\ 8x_1 - 4x_2 + 6x_3 &= 0 \end{aligned}$$

d) $$\begin{aligned} 6x_1 - 3x_2 + 4x_3 &= 0 \\ 9x_1 - 5x_2 + 6x_3 &= 0 \end{aligned}$$

## ۱۲ . الجبري مساوات یا - برابرونونه

### ۱۲ . ۱ نالاینیز- یا ناکربنیز- یا ناخطي برابرونونه

ټول مساوات چی د نورمالفورم

$$A . x = a \qquad (12.1)$$

سره یوارزښته ( اکویوالنت ) نه وي ، نالاینیز – یا ناکربنیز مساوات بلل کیږي او عمومي فورم یی په لاندې ډول دی

$$F( x ) = 0 \qquad ( 12 . 2 )$$

دلته $F ( x)$ په x کی یوه ناکربنیزه یا ناخطي وییینه یا افاده ده . د ( 12 . 2 ) حل دا مانا لري چی ټول د xارزښتونه پیدا شي د کومو لپاره چی ( 12 . 2 ) باوري وي. باید په پام کی ونیول شي چی ایا یواځي رییل ارزښتونه پیدا کوو او که کمپلس ارزښتونه هم غواړو چی پیدا کړو. د بیلګی په توګه لاندې ناکربنیز یا لاینیز مساوات

$$x^2 - x - 2 = 0$$

لاندې دواړه رییل ځوابونه لري

$$x1 = -1 , x2 = 2$$

چی د ارزښتونو ځاي په ځاي کولو سره يي مساوات باوري کیږي .ددې په څېټ یا برعکس دا برابرون $x^2 + 1 = 0$ رییل ځواب نه لري ( ۵ -مه برخه دي وکتل شي)، بلکه لاندې ایماګینار ځوابونه لري : $x1= i , x2 = -i$

د دې حالت د ښه روښانولو لپاره دې ( ۱۵ برخه دې وکتل شي ) د برابرون او فنکشن ترمنځ اړیکو ته پاملرنه وشي: اړیکو $y=F(x )$ ته فنکشنبرابرون او x ته متحوله

---
وايي، چې زه يې كله اووښتونی او كله ناپيژندونې بولم( ښه نومه ونه يې اوښتونې ده) په ځېټ يا برعكس ( 2 . 12 ) يو ټاكنمساوات دی او x هلته يوه ناپيژندونكی يا اوښتونی دی.
د ( 2 . 12 ) برابرون يا مساوات اوبيونې يا حل ته د برابرون د F ( x ) صفرځای يا د مساوات F(x)=0 جذر يا ريښه هم وايي.
هغه برابرون يا مساوات چې په ( ۱۲ . ۲ ) فورم نه دئ ورکړ شوی كيدی شي چې په دې لاندې فورم واړول شي. د بيلگې په توگه د دې برابرون لپاره :

$$\frac{f(x)}{g(x)} = a; g(x) \neq 0$$

$$\frac{f(x)}{g(x)} = a; g(x) \neq 0$$ او f(x)=g(x)

نورمال فورم په لاندې ډول لاس ته راوړل كيږي

F(x)=f(x)-a.g(x)=0 او F(x )= f( x)-g(x)= 0

د نالاينيزو برابرونونو لپاره د لاينيزو برابرونونو په څير راغونده (اختماميه، رابنده، راتړلی ) تيوري نه شته. په پوليزه يا عمومي ډول څوك نور فرمول نه شي وركولی، د كوم له مخی چې د صفرځاي معلوميدی شي. بايد په نومريكو ( numerischen Methoden ) متودونو يا ورپسې گڼ متودونو په ورنزدې يا تقريبي ډول پيداشي

نالاينييز برابرونونه په دوه ټولگيو ويشل كيږی: الجبري او تراسځندنت چې په دې او راتلونكی څپركي يا لكه چې ما استعمال كړې برخه كی يی څيړو، چې اوبيونې يی روښانه افاده شوې ( explizit لاتين: واضح يا روښانه ، افاده شوی، اكسپليځټ) دي.

له ۱۲ . ۲ څخه تر ۱۲ . ۴ پورې الجبري برابرونونه څيړل كيږي چې په لاندې نورمال فورم يا – بڼه اړول كيدی شي

$$x^n + a_{n-1}x^{n-1} + a_{n-2}x^{n-2} + ... + a_1 x + a_0 = 0 .................. (12,3)$$

دلته په ( 2 . 12 ) كی يو نالاينيز بلواک يا – فنكشن ( F ( x د يوه n - م درجی پولينوم په څير مخ ته پروت دی . موږ په ( ۱۲ . ۲ ) كی د ضريبونو( ځله وونو) لپاره يواځی رييل گڼونه پريږدو ( په دې مانا چې ځلونه يواځي رييل وي، يواځی رييل گڼونو ته اجازه وركوو) .

---

دا په ( ۱۲ . ۳ ) کی کيږ اړخ ته n - م درجه پولينوم

$$F(x) = P_n(x) = x^n + a_{n-1}x^{n-1} + a_{n-2}x^{n-2} + ... + a_1 x + a_0 = 0 ...................(12,4)$$

ته ټول ريشنل ( - ريښتونی ) بلواک يا فنکشن هم وايي، ځکه چی د ريشنل شميرله عمليو زياتون، کمون، او ځل له لاري او نه په x واريابلی او ai د رييل ضريبونو، ځلونو يا فاکتورونو باندې د ويش کاروني کارولو (عملي استعمال ) له لارې منځ ته راځي .ټوليز برانرون يا

$$b_n x^n + b_{n-1}x^{n-1} + b_{n-2}x^{n-2} + ... + b_1 x + b_0 = 0; b_n \neq 0...................(12,5)$$

کيدي شي په bn|= 0 ويش باندې په ( ۱۲ . ۳ ) نورمال فورم واړول شي .

که دا نه لاينيزفنکشن يا ٠ بلواک F ( x ) په ( ۱۲ . ۲ ) باندې په واريابلي يا اووښتوني x او ځلونو باندې ټول د شمير کاروني يا عمليي او بالاخره دويش کارونه وکارول شي يا اجرا شي او رييل پارامتر (Parameterپه شميرپوهنه کې ثابت (همغهٔ او يا مرستندويه لوي ده) تشکيل شي نو فنکشنونو ته بيا مات ريشنل فنکشنونه ويل کيږي.
دا تل د دوه پولينومونو يا ريشنل فنکشنونو د ويش په څير انځورږ دي

$$F(x) = R(x) = \frac{P_n(x)}{Q_m(x)} = \frac{b_n x^n + b_{n-1}x^{n-1} + b_{n-2}x^{n-2} + ... + b_1 x + b_0}{c_m x^m + c_{m-1}x^{m-1} + c_{m-2}x^{n-2} + ... + c_1 x + c_0}; .....(12,6)$$

په همدې ډول برابرون

$$F(x) = \frac{P_n(x)}{Q_m(x)} = 0; .........................(12,7)$$

تل په ( ۱۲ . ۵ ) يا ( ۱۲ . ۳ ) برابرون اړول وړ دي . دا بايد په پام کی وي چی د (۱۲ . ۳ ) لپاره يواځنی هغه ځواب په پوښته کی راځي، د کوم لپاره چی باوري وي:

$$Q_m(x) \neq 0$$

که چيرې د نالاينيزبلواک يا - فنکشن جوړولو کی د ريشنل شميرعمليو تر څنګ د توان ( متې، په جګ) يا پوتنځ کول او جذر نيولوته هم اجازه ورکړل شي نو بيا سرې د الجري فنکشنونو څخه غږيږ. يعني داسي فنکشنونو ته الجبري فنکشنونه ويل کيږي او ( ۱۲ . ۲ ) برابرون بيا الجبري برابرون بلل کيږي ، دا ډول مساوات هم کيدی شي چی په ( ۱۲ . ۳ ) فورم واړول شي.

هره n - مه ريښه يا جذر $\sqrt{G(x)}$

د ( $G(x)$ افادې یا ویینې له منځه وړل کیدی شي, که چیرې څوك دا برابرون په یوه خوا راوړي او بیا د برابرونونو دواړه خواوې د$n$ په توان کړي یا د $n$ پوتنځ یا مټ ته جګ کړي . دا په ۱۲ . ۴ برخه کی په څرګندو یا معلومو بیلګوځیړل کیږي . په نومولو تګلارو د الجبري مساواتو ځیرنه د ( ۱۲ . ۳ ) فورم برابرونونو ته راکښته کیدلی شي. د الجبري مساواتو دا نورمال فورم د $n$ - می درجي برابرون هم بلل کیږي. ټول نالاینیز برابرونونه چی الجبري برابرون نه دي، ترانسځیندنت برابرون بلل کیږي . د ترانسځیندنت رابرونونو درې تیپونه، په نامه ، اکسپوننشل برابرونونه ، لوګاریتمي برابرونونه ، او ګونومتریکي برابرونونه دي چي په برخه ۱۳ کی به تر ځیرني لاندې ونیول شي.

# ۱۲ . ۲ څلوری(مربع-) مساوات په توان( مټ، جګ) د ۲

## ۱۲ . ۲ . ۱ په جګ د ۲ مساوات په نورماله بڼه

د نالاینیزو الجبري برابرونونو ساده بڼه د ۲ په توان یا مټ ( په جګ ۲ هم ویل کیږي ) برابرونونه دي چی څلوری یا مربع برابرونونه بلل کیږي .د دې ټولیزه بڼه ( عمومي فورم) داسی ده ۰ دی

$$b_2x^2 + b_1x + b_0 = 0; b_2 \neq 0; ............................(12,8)$$

په b2 یي ویش په لاندې ډول یو ورته ارزښته ( اکویوالنت äquivalent ) نورمالبڼه یا نورمالفورم ورکوي

$$x^2 + a_1x + a_0 = 0; (a_1 \neq b_1 / b_b; a_0 \neq b_0 / b_2); ............................(12,9)$$

ددې حل د څلوری پوره کونې یا مربعتکمیل څخه په ګټه د بینوم په فورمل ودې کټل شي: ۱ . ۲ . ۲) ولاړ دی.

$$[x + a_a / 2]^2 = x^2 + a_1x + \frac{a^2_1}{4}; ......................(12,10)$$

په دې ډول کیدی شي چی ( ۱۲ . ۹ ) برابرون په لاندې فورم داسی واړول شي:

$x^2+a1x+a0=(x+a1/2)^2+a0-a1^2/4 = 0$ <=>

---

$$[x+a1/2]^2=(a1^2/4)-a0 \qquad (12,11)$$

كه وي

$$(a1^2/4)-a0>0 \Leftrightarrow a1^2 -4a0>0 \Leftrightarrow a1^2>4a0 \quad (12,12)$$

نو دوه امكانات شته دی، چی ( ۱۲ . ۱۱ ) برابرون پوره كړي:
داصدق كوي

$$x+\frac{a_1}{2}=\sqrt{(a_1^2/4)-a_0};.........................(12,13)$$

يا

$$x+\frac{a_1}{2}==-\sqrt{(a_1^2/4)-a_0};.........................(12,14)$$

دا دواړه خواو په توان د ۲ څخه، د ( ۱۲ . ۱۳ ) او همداسی د ( ۱۲ . ۱۴) څخه (۱۲ ۱۲)برابرون او په دې ډول (۱۲ . ۹ ) برابرون لاس ته راځي ( په پام كی دې وي چی a د ۲ اصلي برخی په بينا تل نا كميز يا نامنفي ګڼ پو هيدل كيږي، چی څلوری يا مربع يی a ده ) . له ( ۱۲ . ۱۳ ) په همدې ډول له ( ۱۲ . ۱۴ ) ځخه رييل ځوابونه لاس ته راځي،

$$x_1=-\frac{a_1}{2}+\sqrt{(a_1^2/4)-a_0};x_2=-\frac{a_1}{2}-\sqrt{(a_1^2/4)-a_0};.........................(12,15)$$

او ددې لپاره دا هم ليكلی شو

$$x_{1,2}=-\frac{a_1}{2}\pm\sqrt{(a_1^2/4)-a_0};.........................(12,16)$$

په ( ۱۲ . ۹ ) كی د ( ۱۲ . ۱۵ ) په همدې توګه ( ۱۲ . ۱۶ ) ځاي پر ځاي كولو څخه پو هيدل كيږي چی دواړه ارزښتونه
x1 او x2
په رښتونی څلوری برابرون يا مربع مساوات پوره كوي.
په لاندې حالت كی

$$(a_1^2/4)-a_0=0 \Leftrightarrow a_1^2-4a_0=0 \Leftrightarrow a_1^2=4a_0;.............(12,17)$$

د ( ۱۲ . ۱۶ ) له لارې تيك يو رييل اوبی لرو:

$$x_{1,2}=x_1=x_2=-(a_1/2)\pm 0=-a\ \ /2;.................................(12,18)$$

---

په ( ۱۲ . ۱۵ ) همداسی په ( ۱۲ . ۱۶ ) باندې په تکیه دا اوبی دوه واره دی یا په بل عبارت دوه واره رامنځ ته کیږي او په دې ډول د یوه دوه واره اوبیوني ( ۱۲ . ۱۸ )څخه غړیږو.

که وي

$$(a_1^2/4)-a_0<0 \Leftrightarrow a_1^2-4a_0<0 \Leftrightarrow a_1^2<4a_0; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots /12,19)$$

نو ( ۱۲ . ۱۱ ) همداسی ( ۱۲ . ۹ ) رییل حل نه لري. که په کمپلس ګڼونو شمیرنه وکړو نو له ۵ - برخی څخه لاندې لاس ته راوړو

$$x+a_1/2=\sqrt{a_0-(a_1^2/4)}i \wedge x+a_1/2=-\sqrt{a_0-(a_1^2/4)}i$$

او په دې ډول د کونجوګیرت کمپلکس حل جوړه لاس ته راځي:

$$x_{1,2}=-a_1/2\pm\sqrt{a_0-(a_1^2/4)}i; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots (12,20)$$

له دې څخه هم چی په ( ۱۲ . ۹ ) ځای په ځای شي څرګندیږي چی د $x1$ او $x2$ ارزښتونه پیل برابرون یا مساوات پوره کوي.

که په ( ۱۲ . ۱۹ ) حالت کی لاندې څرګندونی ته پام وي

$$\pm\sqrt{a_0-(a_1^2/4)}i=\pm\sqrt{(a_1^2/4)i-a_0}; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots (12,21)$$

نو لاندې جمله یی راغونډه داسی فرمولولی شو

جمله ۱۲ . ۱: ( د څلوری یا مربع ) په توان یا جګ د ۲ ) برابرونونو د اوبیوني فرمول ) د څلوری- یا مربع برابرونونو(مساواتو) $x^2+a1x+a0=0$

$$x_{1,2}=-a_1/2\pm\sqrt{a_0-(a_1^2/4)}i$$

ټیك دوه ځوابونه لري

د $a_1^2>4a_0$

په حالت کی دوه مختلف رییل حلونه دی، د $a_1^2=4a_0$ په حالت کی یو رییل دوه برابره( ډبل) حل دی او د $a_1^2<4a_0$ په حالت کی یو جوړه کونیوګیرت - کنجوګیریکمپلکس حل شته دي.

په ساده ډول لاندې د وییتا جمله هم د مربع مساواتو لپاره ښوول کیدی شي

-----------------------------------------------------------------------------

جمله ۱۲ . ۲ ( د ویيتا( Vieta)جمله ) :

که x1 او x2 د ځلوری - یا مربع برابرونونو (۱۲ . ۹ ) همداسی د ( ۱۲ . ۸ ) اوبیونې وي نو باوري دی

$$a_1 = b_0 / b_1 = x_1.x_2; ............................(12,22)$$

$$a_2 = b_1 / b_2 = -(x_1 + x_2); .....................(12,23)$$

حل : ( ۱۲ . ۲۳ ) فرمول په دریواړو حالتونو کی سم د لاسه له لاندې ښخه لاس ته راځي:

$$-(x_1 + x_2) = \left[\frac{a_1}{2} - \sqrt{\frac{a_1^2}{4} - a_0}\right] + \left[\frac{a_1}{4} + \sqrt{\frac{a_1^2}{4} - a_0}\right] = a_i$$

د ( ۱۲ . ۲۲ ) فرمول د تصدیق لپاره د بینوم دریم فرمول او $i^2 = -1$ استعمال ښخه په په ( ۱۲ . ۱۲ ) حالت کی باور لري :

$$x_1.x_2 = \left[-\frac{a_1}{2} + \sqrt{\frac{a_1^2}{4} - a_0}\right].\left[-\frac{a_1}{2} - \sqrt{\frac{a_1^2}{4} - a_0}\right] = \frac{a_1^2}{4} - \left[\sqrt{\frac{a_1^2}{4} - a_0}\right]^2$$

$$= \frac{a_1^2}{4} - \frac{a_1^2}{4} + a_0 = a_0$$

په ( ۱۲ . ۱۷ ) حالت کی لاس ته راځي:

$$x_1.x_2 = \left[-\frac{a_1}{2} + 0\right]\left[-\frac{a_1}{2} - 0\right] = \frac{a_1^2}{4} = a_0$$

په ( ۱۲ . ۱۹ ) حالت کی باوري دي:

$$x_1.x_2 = \left[-\frac{a_1}{2} + \sqrt{a_0 - \frac{a_1^2}{4}}\, i\right].\left[-\frac{a_1}{2} - \sqrt{a_0 - \frac{a_1^2}{4}}\, i\right] = \frac{a_1^2}{4} - \left[\sqrt{a_0 - \frac{a_1^2}{4}}\right]^2 i^2$$

$$= \frac{a_1^2}{4} - [a_0 - \frac{a_1^2}{4}].(-1) = \frac{a_1^2}{4} + a_0 - \frac{a_1^2}{4} = a_0$$

د وییتا جملی په مرسته لاندې جمله باوري کيږي یا تصديقيږي

جمله ۱۲ . ۳ :

یو ۲ درجییز پولینوم کیدی شي چی په دوه لايني فاکتورونو یا ضریبونو یا ځله وونو بیل یا ټوټه یا تجزیه شي:

$$x^2 + a_1 x + a_0 = (x - x_1)(x - x_2); \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(12,24)$$

په همدې ډول

$$b_2 x^2 + b_1 x + b_0 = b_2 (x - x_1)(x - x_2); \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(12,25)$$

چیرته چي x1 او x2 د څلورئ برابرونونو یا مربع مساواتو ( ۱۲ . ۹ ) په همدې ډول د ( ۱۲ . ۸) دواړه ځوابونه دي

اوبیونه : له ( ۱۲ . ۲۲ ) ، ( ۱۲ . ۲۳ ) څخه د ( ۱۲ . ۹ ) همداسی د (۱۲ . ۸ ) په پام کي نیولو سره لرو

$$(x - x_1)(x - x_2) = x^2 - (x_1 + x_2)x + x_1 x_2 = x^2 + a_1 x + a_0 =$$

$$= \frac{1}{b_2}(b_2 x^2 + b_1 x + b_0)$$

د جملی ۱۲ . ۳ څخه دې ته راځول کيږو چی د ( ۱۲ . ۱۷ ) حالت کی د دوه برابره ریښ اوبیو څخه خبرې وکړو ( وغږيږو). د x1 = x2 له امله لاس ته راځي

$$x^2 + a_1 x + a_0 = (x - x_1)^2; a_1^2 = 4a_0; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(12,26)$$

دا دري حالتونه(۱۲ . ۱۲ ) .( ۱۲ . ۱۷ ) او ( ۱۲ . ۱۹ ) کیدی شي چی د فنکشن

$$y = p_2(x) = x^2 + a_1 x + a_0$$

څیرو یا شکلونو ( ګراف ) په مرسته د کتلو شي.

ګراف په بنسټیزه توګه پارابول انځوروي، چی پورته خوا ته سرواز دی. ځکه چی که xهرڅومره کوچنی شي )که x د کمیز ناپای په جګ یا توان شي ) او همدارنګه x هرڅومره لوي شي ( که x د ∞ (ناپای) په جګ شي y لوییږي ( ستریږي یا غټیږي) ، ځکه چی$x^2$ نسبت و x ته په توان یا قوي جګیږي له ټولو پولو( yد ناپای لور ته ځي)۰ د دې ډول پولو کره پیژند یا تعریف په ۱۹ - برخه کي لوستل کیدی شي.

---

په ( ۱۲ . ۱۲ ) حالت کی د x - محور په داړو ریيلو ځایونو x1 او x2 کی غوڅیږي؛ په ( ۱۲ . ۱۷ ) حالت کی په x1 = x2 ځای کی یي لمسوي او په ( ۱۲ . ۱۹ ) حالت کی ګډ ټکي ورسره نه لري یا نه وررسیږي ( پرتله ځیره . ۱۲ . ۱ )




a) b) c)
Bild 12.1

له جملی ۱۲ . ۱ تر ۱۲ . ۳ پورې به په درې ساده ډوله د (۱۲ . ۱۲) ، (۱۲ ، ۱۷ ، ( ۱۲ . ۱۹ ) سره مناسبو بیلګو روښانه شي.

بیلګه ۱۲ . ۱ :

په برابرون $x^2 - x - 6 = 0$ کی لرو

$a1 = - 1 , a0 = -6$ او د $a_1^2 - 4a_0 1 + 24 = 25 > 0$

له امله ( ۱۲ ، ۱۲ ) حالت مخ ته پروت دی.
دواړه له صفر مختلف ځایونه د جملی ۱۲ . ۱ څخه په لاندې فورم لاس ته راځي:

$$x_{1,2} = 1/2 \pm \sqrt{\frac{1}{4} + 6} = 1/2 \pm \sqrt{1/4 + 24/4} = 1/2 \pm \sqrt{25/4} = 1/2 \pm 5/2$$

$$\Rightarrow x_1 = 3; x_2 = -2$$

جمله ۱۲ . ۲ :

له لاندې لاس ته راوړنی یاتعقیب څخه باوري کیږي

$$a_0 = -6 = x_1 x_2 = 3(-2) = -6$$

$$a_1 = -1 = -(x_1 + x_2) = -(3-2) = -1$$

له جملی ۱۲ . ۳ څخه لاس ته راځي: $x^2-x-6=(x-3)(x+2)$

بیلګه ۱۲ . ۲ :

له مساواتو $x^2-4x+4=0$ لرو $a1=-4,a0=4$ او د $a_1^2-4a_0=16-4.4=0$

له امله ( ۱۲ . ۱۷ ) حالت مخ ته لرو ۰ دوه ئیز رییل حل په لاندې ډول له جملی ۱۲ . ۱ څخه لاس ته راځي $x_{1,2}=2\pm\sqrt{4-4}=2$ نو لرو $x1=x2=2$

جمله ۱۲ . ۳ :

په لاندې ډول باوري کیږي

$$a_0=4=x_1.x_2=2.2=4$$
$$a_1=-4=-(x\ +x_2)=-(2+2)=-4$$

د جملی ۱۲ . ۳ له مخی لرو $x^2-4x+4=(x-2)^2$

بیلګه ۱۲ . ۳ :

له مساواتو $x^2-4x+13=0$ څخه لرو , $a1=-4\ ,a0=13$ او د $a_1^2-4a_0=16-52-36$

له امله حالت ( ۱۲ ، ۱۹ ) مخ ته لرو.

د کونیوګیرت( کنجوګیري) کمپلکس جوړه اوبیونو یا حلونو له جملی ۱۲ . ۱ څخه په لاندې بڼه یا فورم لاس ته راولو

$$x_{1,2}=2\pm\sqrt{4-13}=2\pm\sqrt{-9}=2\pm3i$$
$$\Rightarrow x\ =2+3i;x_2=2-3i$$

د جملی ۱۲ . ۲ سره سم باور لري

$$a_0=-4=-(x_1+x_2)=-(2+3i+2-3i)=-4$$
$$a_1=13=x_1.x\ =(2+3i)(2-3i)=4-9i^2=4+9=13$$

---

او د جملی ۱۲ . ۳ له مخې داسی دئ

$$x^2-4x+13=(x-2-3i)(x-2+3i)$$

د مربع مساوات (۱۲ . ۸ ) همداسی ( ۱۲. ۹) اوبی په ښکاره ډول ساده کيږي، که يو ځلی a0 اويا a1 ورك شي:

د a0 = 0 لپاره لرو
$$x(x+a_1)=0 \Leftrightarrow x_1=0; x_2=-a_1$$

د a1=0 لپاره لرو

$$x^2+a_0=0$$

$$\Rightarrow x^2=-a_0; x_{,2}=\pm\sqrt{a_0}$$

## ۱۲ . ۲ . ۲ ځلوری(مربع-)برابرون چی په نورمالبڼه

مخ ته نه دي پراته

که يو مربع مساوات په نورمال فورم ( ۱۲ . ۹ ) مخ ته نه وي پروت، له دې د مخه چی جمله ۱۲ . ۱ وکارول شي، نو بايد په دې بڼه واړول شي.

بليګه ۱۲ . ۴ :

2x-(x+2)²=(x-2)²-4(x+1)

2x-x²-4x-4=x²-4x+4-4x-4

-x²-2x-4=x²-8x

x²-3x+2=0

$$x_{1,2}=3/2\pm\sqrt{9/4-2}=3/2\pm\sqrt{9/4-8/4}=3/2\pm\sqrt{3/2}\pm\sqrt{1/4}=3/2\pm 1/2$$

$$\Rightarrow x_1=2; x_2=1$$

که مجهول يا ناپيژندلی يا اوړيدونې x د مات لاندې رامنځ ته شي، نو بايد په صفر ويش ناممکن يا ناشونوالی په پام کي ونيول شي.

بيلګه ۱۲ . ۵ :

---

برابرون $(x^2+2x)/(2x^2+2x-4)=1$
تیك هلته مانا لري، چی وي $2x^2+2x-4 \neq 0$

لومړی ورکړشوی برابرون اوبی کیږي او بیا ازمائل کیږي، چي ایا د ماتلاندې شرایط پوره دی، که نه.

$$x^2+2x=2x^2+2x-4$$
$$-x^2 = -4$$
$$x_{,2} = \pm 2; x = 2; x_2 = -2$$

د $x=x1=-2$ لپاره په ماتلاندې کی لرو

$$2x^2 + 2x - 4 = 8 + 4 - 4 = 8 \neq 0$$

او $x = x2 = -2$ لپاره په ماتلاندې کی لرو

$$2x^2 + 2x - 4 = 8-4-4 = 0$$

له دې امله $x1 = 2$ د پیل برابرون اوبی دی

## ۱۲ . ۲ . ۳ د n - م درجي ځانګړي برابرونونه ، چی په څلوری یا مربع برابرونونو بیرته بدلیدلی شي

د n - مي درجی مساواتو( ۱۲ . ۳ ) یو څو ځانګړي حالتونه کیدی شي چی د څلوری برابرونونو یا مربع مساواتو په مرسته ځواب شي یا اوبی شي۰ دا ځانګړی حالت موجود دی یا شته دی که باور ولري

$$a_1 = a_1 = ... = a_{n-3} = 0 \qquad (12, 27)$$

دn- می درجی برابرون بیا داسی دي

$$x^n + a_{n-1}x^{n-1} + a_{n-2}x^{n-2} = 0; .........................(12,28)$$

$$\Leftrightarrow$$

$$x^{n-2}(x^2 + a_{n-1}x + a_{n-2}) = 0$$

$$\Rightarrow x^{n-2} = 0 \vee x^2 + a_{n-1}x + a_{n-2} = 0; ................(12,30)$$

-----------------------------------------------------------------------------------

يادونه : په پورته کې له ( ۱۲ ، ۳۰) پورته برابرون (۱۲،۲۹ ) دئ
د دې برابرونونو دوهم برابرون يو څلورئ - يا مربع برابرون دی، چې د جملي ۱۲ . ۱ په بنسټ لاندې ځواب لري

$$x_{1,2} = -\frac{a_{n-1}}{2} \pm \sqrt{\frac{a_{n-1}^2}{4} - a_{n-2}}$$

لومړی برابرون دا اوبی يا حل لري $x = 0$ چې دا ( n-2 )- ځله رامنځ ته کيږي $x3 = x4 = ... = xn=0$

بيلګه ۱۲ . ۶:

برابرون $x^6 + 2x^5 - 3x^4$ د $x^6 + 2x^5 - 3x^4 = x^4(x^2 + x - 3)$
او $x_{1,2} = -1 \pm \sqrt{1+3} = -1 \pm 2$
لاندې اوبيونې لرو

$$x_1 = 1, x_2 = -3; x_3 = x_4 = x_5 = x_6 = 0$$

نور هم هغه حالت ساده دی، که $a_{n-2} = 0$ وي، او باور ولري

$$x^n + a_{n-1}x^{n-1} = 0; x^{n-1}(x + a_{n-1}) = 0 \Rightarrow$$
$$x_1 - a_{n-1}, x_2 = x_3 = ... = x_n = 0; .....................(12,32)$$

يو بل ځانګړی حالت مخ ته لرو، که د برابرون ( ۱۲ ، ۳) درجه n جوړه ګڼ يا جفت - وي

$$n = 2k \qquad (12 . 33)$$

او فقط ( ټيك) ځله ووني يا كوايفيځينتونه a0 او ak له صفر سره برابر نه وي:

$$x^{2k} + a_k x^k + a_0 = 0; ....................(12,34)$$

دلته داسی ځاي په ځاي كوو

$$y = x^k; ............................................(12,35)$$

او له دې سره د y لپاره څلوری برابرون یا مربع مساوات لاس ته راځي:

$$y^2 + a_k y + a_0 = 0 \qquad (12, 36)$$

د لاندې ځوابونو سره ( پرتله : جمله ۱۲ ، ۱)

$$y_{1,2} = -(a_k / 2) \pm \sqrt{\frac{a_k^2}{4} - a_0}; ......................(12,37)$$

د( ۱۲ ، ۳۵ ) له امله دې د لاندې دوه برابرونونو

$$x^k = y_2 \wedge x^k = y_1; .........................(12,38)$$

ټولې اوبیونې وڅیرلی شي، چی د $k = 1$ لپاره ساده دی، د $k = 2$ لپاره( بیکوادرات برابرون) ( د څلوری څلوری یا د مربع مربع ) یا د رییلو $y1$ او $y2$ لپاره د تراوسه څرګندو میتودو سره تل کیدونکی دی . نور حالتونه ددې اوس وخت لپاره په ټولیزه توګه ستونځی لري.

بیلګه ۱۲ . ۷ :

لاندې بیکوادرات برابرون $x4 + 5x^2 - 6 = 0$ کیدی د سوبستیچیوشن یعني بدلون له لارې $y = x^2$ په څلوری برابرون $y^2+5y-36=0$ باندې بدل شي. د جملی ۱۲ . ۱ په بنسټ لرو

$$y_{,2} = -5/2 \pm \sqrt{25/4 + 36} = -5/2 \pm \sqrt{25/4 + 144/4}$$

$$= -5/2 \pm \sqrt{169/4} = -5/2 \pm 13/2$$

$$\Rightarrow y_1 = 4; y_2 = -9$$

دواړه برابرونونه ، چی د بیرته بدلون( -سوبستیچیوشن) له امله لاس ته راوړو

$$x^2 = 4 \,,\; x^2 = -9$$

لاندې اوبی یا حل لري

$$x1 = 2 \,,\; x2 = -2 \,,\; x3 = 3i \,,\; x4 = -3i$$

## ۱۲ . ۲ . ۴ د برابرونسیستمونه چی بیرته په ځلوری برابرونونو بد لید لی شي

یوه د نالاینیزو مساواتسیستمونو لړۍ کیدی شي چی په ځلوری برابرون یا مربع مساواتو بیرته واړول شي. ددې لپاره دوه ساده بیلګي راوړو.

بیلګه ۱۲ . ۸:

$$x + y = 1 \qquad (12, 39)$$

$$x^2 + y^2 = 13 \qquad (12, 40)$$

لومړی برابرون د y په لور حل کیږي، $y = 1-x$، او دا حل په دوم برابرون کی اینسوول کیږي:

$$x^2 + (1-x)^2 = 13$$

$$x^2 + 1 - 2x + x^2 = 13$$

$$2x^2 - 2x - 12 = 0$$

$$x^2 - x - 6 = 0$$

$$x_{1,2} = 1/2 \pm \sqrt{1/4 + 6} = 1/2 \pm \sqrt{25/4} = 1/2 \pm 5/2 \Leftrightarrow$$

$$x = 3, x_2 = -2$$

د ( ۱۲ ، ۴۰ ) له مخی په دې لاندې د y - ارزښتونه اړه لري

$$y1 = -2 , y2 = 3$$

نو دا نه لاینیز برابرون لاندي اوبیونې لري

$x1 = 3 , y1 = -2$ او $x2 = -2 , y2 = 3$

بیلګه ۱۲ . ۹ :

د لاندې مساواتو سیستم کی

$$ax + y = 1; \frac{1}{x} + \frac{1}{y} = 1$$

---

چی یوائحي د $x \neq 0, y \neq 0$ لپاره موخه وریا هدفمند دی، دوم برابرون په xy ځلولو( ضربولو)سره په لاندې بڼه اړول کیږي:

$$y + x = xy \qquad (12,42)$$

لومړی برابرون د y په لور ځواب کیږي

$$y = 1 - ax \qquad (12, 43)$$

او په ( ۱۲ . ۴۲ ) کی ایښول کیږی یا ځای په ځای کیږي

$$1 - ax + x = x(1 - ax) = x - ax^2$$

$$, ax^2 - ax + 1 = 0 \qquad (12,44)$$

د a = 0 په حالت کی ( ۱۲ . ۴۴ ) برابرون مخامخوالی لري یا په ښتوالی لري یا تضاد لاس ته راکوي » 1 = 0 « نو ځواب نه شته

د $a \neq 0$ لپاره د(۱۲ . ۴۴ ) ښخه لاس ته راځی $x^2 - x + 1/a = 0$

او د جملی ۱۲. ۱ له امله لرو $x_{1,2} = \frac{1}{2} \pm \frac{1}{4} - \frac{1}{a}$

د

$$\frac{1}{4} - \frac{1}{a} > 0 \Leftrightarrow \frac{1}{a} < \frac{1}{4} \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(12.45)$$

لپاره مو ( ۱۲ . ۱۲ ) حالت مخ ته پروت دی . دوه برخی حالتونه باید په پام کی ونیول شي:

د a > 0 لپاره له ( ۱۲ ، ۴۵ ) ښخه لرو , a > 4 او د a < 0 لپاره له ( ۱۲ ، ۴۵ ) ښخه لرو . a < 4 له دې امله د

$$a < 0 \text{ او } a > 4 \quad (12, 46)$$

لپاره د ( ۱۲ ، ۴۴ ) دوه مختلف ریل ځوابونه موجود دي:

$$x_1 = 1/2 + \sqrt{1/4 - 1/a}, x_2 = 1/2 - \sqrt{1/4 - 1/a}; \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(12.47)$$

په دې پوروې د ( ۱۲ ، ۴۶ ) له مخی دواړه دy - ارزښتونه هم اړه لري

$$y_1 = 1 - a/2 - a.\sqrt{1/4 - 1/a}; y_2 = 1 - a/2 + \sqrt{1/4 - 1/a}; \ldots\ldots\ldots(12.48)$$

---

باید وازمایيل شي چی د ( ۱۲ ، ۴۶ ) په حالت کی x1 , x2 , y1 ,y2 (ټول ) نابرابر په صفر دي . ټل 1 /2 < x1 دی. که 0 = x2 وی، نو باوري به وی

$$1/2 = \sqrt{1/4 - 1/a}; 1/4 = 1/4 - 1/a$$

دا د هیڅ a لپاره ممکن نه دی. له دې امله $x_2 \neq 0$ دی
که 0 =y1 یا 0 = y2 وی، نو لاندې به باور لرودی:

$$1 - a + a^2/4 = a^2/4 - 1 \Leftrightarrow 1 = 0$$

دا هم ناشونی یا ناممکن دی، نو دلته هم لرو $y_1 \neq 0;\ y_2 \neq 0.$
په ( ۱۲ ، ۴۶ ) حالت کی د ( ۱۲ ، ۴۱ ) د ( ۱۲ ، ۴۷ ) ، ( ۱۲ ، ۴۸ ) سر ه سم، دوه

مختلف ریيل ځوابونه شته دی - غواړی- موجود دي
x2, y2 . او x1 , y1
د

1/4-1/a=0 <=> a=4 ( 12 , 49 )

لپاره( ۱۲ ، ۱۷ ) حالت مخ ته پروت دی، او برابرون ( ۱۲، ۴۴ ) ډبل ریيل حل لري

x1 = x2 = 1 /2 (12,50)

په دې پورې د (۱۲ ، ۴۳ ) له مخې هغه y - ارزښت ډبل ګڼ اوبی پورې هم اړه لري.

y 1 = y2 = 1 - 4. (1 /2) = -1

د ( ۱۲ ، ۴۹ ) په حالت کی پس د ( ۱۲ . ۱۹ ) یو ریل، ډبل ګڼلی حل موجود دی

x1=x2=1/2 , y1=y2= -1 ( 12 , 51 )

د

1/4-1/a < 0 <=> 1/a > 1/4 ( 12 , 52 )

لپاره ( ۱۲ ، ۱۹ ) حالت مخ ته پروت دی. د 0 < a لپاره ( ۱۲ ، ۵۲ ) د a<4 کټمټ (ورته) دی، او د a< 0 لپاره د4<a سره کټمټ دی ( له دې امله په ښتوالی یا تضاد ) .
نو د( ۱۲ ،۵۲ ) باور لري، د

0 < a < 4 ( 12 , 53 )

لپاره . په دې حالت کی ( ۱۲ ، ۴۴ ) کونجوګيري کمپلکس اوبيونې لري:

$$x_1 = 1/2 + \sqrt{\frac{1}{a} - \frac{1}{4}}\, i;\ x_2 = 1/2 - \sqrt{\frac{1}{a} - \frac{1}{4}}\, i; ............... (12.54$$

د ( ۱۲ ، ۴۳ ) له مخی په دې پورې د y - ارزښتونه اړه لري:

$$y_1 = 1 - a/2 - a\sqrt{\frac{1}{a} - \frac{1}{4}}\, i;\ y_2 = 1 - a/2 + a\sqrt{\frac{1}{a} - \frac{1}{4}}\, i; ............. (12,55)$$

له دې ارزښتونو هيڅ هم صفر کيدی نه شي .پس په يوځاي شوي يا راټوله توګه لرو:
برابرونسيستم ( ۱۲ ، ۴۱ ) د $a = 0$ لپاره اوبی نه لري، د $0 > a$ په همدې ډول $a > 4$ لپاره دواړه ريل اوبي ( ۱۲ ، ۴۷ ) ، ( ۱۲ ، ۴۸ ) ، د $a = 4$ لپاره رييل ډبل ګنلي اوبۍ ( ۱۲ ، ۵۱ ) او د $0 < a < 4$ لپاره دوه کونجوګيري کمپلکس اوبي ( ۱۲ ، ۵۴ ) ، ( ۱۲ ، ۵۵ ) لري.

۱۲ . ۳ دريمه درجه مساوات يا - برابرونونه

ددې لپاره چی په زړه پورې n- ( ام ( درجي مساواتو حلول ساده کړای شو نو لکه د مساواتو مربع سيستم جملو ته ورته جملی د دريمی درجی مساوات لپاره ځيړو.
د دريمی درجی مساواتو نورمال فورم په د ( ۱۲ . ۳ ) سره سم په لاندې ډول دی.

$$x^3 + a2x^2 + a1x + a0 = 0 \qquad (12,56)$$

دا پولينوم

$$y = P3(x) = x^3 + a2x^2 + a1x + a0 \qquad (12, 57)$$

لاندې بنستيز خويونه لري: که x ډير لوي شي يعني ناپای په لور لاړشي $x \to \infty$ نو y هم د ناپای په لور ځي، ځکه چی د$x^3$ ارزښت نسبت د $x^2$ ارزښت ته په بيړه جګيږي او بيا همداسې و x ته هم . که a1 او a2 کميز يا منفي هم وي نو y به د لويو x- ارزښتونو لپاره زياتيز يا مثبت وي. داچي $x^3$ د کميز x - ارزښت لپاره له صفر کوچنی دی، نو په همدې ډول
$x \to -o$ د $y \to -o$
لپاره .د دې ډول »پولوارزښت يا ليمس« لپاره کره تعريفونه بيا په ۱۹ برخه کی په پراخه توګه څيړل کيږي .د يو-x ارزښت ) خورا کوچنی هم کيدی شي ( شته چی د هغه

---

لپاره $y < 0$ وي اود یو x - ازښت ) چی خورا لوي هم کیدی شي ) ، د کوم لپاره چی $y>0$ دی. ددې دواړو ارزښتونو تر منځ باید د مساوات ( ۱۲ . ۵۶ ) یو رییل اوبی پروت وي.

په ډیرو لاندې بیلګو کی سړی کړی شي چی په ساده ډول د جدول په مرسته ازمائیلي حلونه پیدا کړي، په عمومي توګه بیا هم باید وشمیرل شي.

ددې لپاره یو څو بیلګی:

بیلګه ۱۲ ، ۱۰ الف:

د پولینوم

$$y = x^3 - 3x^2 -4x + 12 \qquad (12, 58)$$

لپاره لاندې د ارزښت جدول لاس ته راځي

$X = 0 , 1 , -1 , 2$

$Y = 12 , 6 , 12 , 0$

په دې توګه یو رییل صفرځاي پیدا شو

$$x_1 = 2 \qquad (12, 59)$$

په ۱۵-مه برخه کی به د هورنر شیما په بنسټ یو متود ورکړ شي ، دکومی له لار ې چی بیا د مټ( توان= لوړولو ته اړتیا نه پیدا کیږي او پولینومونو د فنکشن ارزښت ساده پیدا کیدی شي یا شمیرل کیدی شي

بیلګه ۱۲ . ۱۱ الف:

دا برابرون

$$2x^3 + 11x^2 + 12x - 9 = 0 \qquad (12,60)$$

لاندې نورمال فورم یا -بڼه لري

$$x^3 +(11 / 2) x^2 + 6x - 9/2 = 0 \qquad (12 . 61)$$

د صفرځاي پیداکولو لپاره دې د ( ۱۲ . ۶۰ )مساوات لپاره د ارزښت جدول جوړ شي )ترتیب شي وشمیرل شي (، ځکه چی هلته ماتونه منځ ته نه راځي:

$X = 0 , 1 ,1 / 2$

$Y = -9 , 16 , \quad 0$

نو

$$x_1=1/2 \qquad (12, 62)$$

د مساوات ( ۱۲ . ۶۰ ) په همدې ډول ( ۱۲ . ۶۱ ) یو رییل صفرځای دئ

بیلګه ۱۲ . ۱۲ الف:

د لاندې برابرون لپاره

$$x^3-9x^2+27x-27=0 \qquad (12, 63)$$

د ارزښت جدول

X = 0 , 1 , -1 ; 2 , -2, 3
Y = -27 , -8 , -64 , -1 , -25, 0

له لارې لاندې رییل صفرځاي لاس ته راځي

$$x = 3 \qquad (12, 64)$$

بیلګه ۱۲ . ۱۳ الف :

د برابرون

$$x^3 -9x^2 +27x -27 =0 \qquad (12, 65)$$

لپاره د جدول

X = 0 , 1
Y = -3 ; 0

سره لاندې صفرځاي لاس ته راځي

$$x = 1 \qquad (12, 66)$$

په ټولیزه توګه کیدی شي په کلکه څرګند شي ، چی د دریم درجی برابرونسیستم ( ۱۲ . ۵۶ ) لپاره تل یو رییل اوبی یاحل $x1$ شته دی. دا یو واقعیت دی چی بي له ښوونی یی لیکو، چی دا پولینوم ( ۱۲، ۵۷ ) بي له پاتي په لاینیز فاکتور ( $x - x1$ ) ویشل کیدی شي او یو دومه درج پولینوم ترې لاس ته راځي:

$$(x^3+a2x^2+a1x+a0):(x-x1)=x^2+b1x+b0$$

له دې امله داسی دئ

---

جمله ۱۲ . ۴ :

هر دریمه درجه برابرون ( ۱۲ . ۵۶ ) کم له کمه یو رییل اوبی x1لري او دا لاندې باوري دي

$$P_3(x) = x^3 + a_2x^2 + a_1x + a_0 = (x - x_1)(x^2 + b_1x + b_0);.............(12,67)$$

دلته نو بیا نور د دریمي درجي مساواتو ( ۱۲ . ۵۶ ) دوه حلونه x2 او x3لاس ته راځي که څلورئ برابرون یا مربع مساوات $x^2 + b1x + b0 = 0$ اوبی شي، او د جملو ۱۲ . ۱او ۱۲ . ۳ سره کیدی شي چی لاندې جمله فرمولبندې کړی شو

جمله ۱۲ . ۵ :

هر دریمه درجه برابرون درې اوبیوني یا اوبي x1 , x2,x3 لري او دا باور لري

$$x^3+a2x^2+a1x+a0=(x-x1)(x-x2)(x-x3) \quad (12, 68)$$

دلته دا لاندني حالتونه ممکن دي

۱ - درې رییل مختلف حلونه x1 , x2 او x3 شته دئ ( موجود دي)

۲ - یو رییل حل x1 او ددې سره مختلف یو ډبل رییل حل x2=x3شته دئ .

۳ - یو رییل درېګونی حل شته دئ

$$x1 = x2 = x3$$

۴ - یو رییل حل x1 او یوه جوړه کونجوګیرت کملکس اوبیوني یا اوبي $x_2 = \overline{x_3}$ شته دئ

دا لاندې څیره د ټولو راشنل فنکشنونو( ۱۲ . ۵۷ ) تیپیکي تلنه د جملی ۱۲ . ۵ څلورو حالتونو کی ښایي



---
د ( ١٢ . ٦٨ ) فرمول په مرسته د بنې اړخ په ځلولواو فاکتورونو(ځله وونو) پرتلی یا انډول له لارې کیدی شي د دریمی درجي پولینومو لپاره د وییتا جمله تصدیق کړي چې د جملی ١٢ . ٢ سره سر خوري

جمله ١٢ . ٦ :

که $x1$ , $x2$ او $x3$ د دریمي درجي برابرون ( ١٢ . ٥٦ ) اوبیونې وي ، نو لاندې باوري دي

$$a0=-x1.x2.x3 \qquad (12,69)$$
$$a1=x1x2+x1x3+x2x3 \qquad (12,70)$$
$$a2=-(x1+x2+x3) \qquad (12,71)$$

جملی ١٢ . ٤ په مرسته دې اوس د بیلګو ١٢ . ١٠ الف، تر ١٢ . ١٣ الف پورې د نورو دواړو$x2$ او $x3$ اوبیونې ولټول شي.

بیلګه ١٢ . ١٠ ب :
( ١٢ . ٥٨ ) برابرون د ( ١٢ . ٥٩ ) برابرون له مخی $x1 = 2$ حل لري. سړی دا ځواب د ١ . . ٢ ٤ . برخي له مخي د پارشل Partial- (ټوټه-( ویش په بنسټ لاس ته راوړي.

$$(x^3-3x^2-4x+12):(x-2)=x^2-x-6$$
$$..\underline{x^3+2x^2}$$
$$........-x^2-4x+12$$
$$.........\underline{-x^2+2x.........}$$
$$..............-6x+12$$
$$..............-6x+12$$

له $x^2 - x - 6 = 0$ څخه لاس ته راځي

$$x_{2,3}=1/2\pm\sqrt{1/4+6}=1/2\pm\sqrt{1/4+24/4}=1/2\pm5/2,$$
$$x2=3, x_3=-2$$

---
دلته د جملی ۱۲ . ۵ لومړی حالت لرو، د لاندې مختلفو ریښو ځوابونو سره

، $x1 = 2 , x2 = 3 , x3 = -2$

او داسی دئ:

$$x^3-3x^2-4x+12 = (x-2)(x-3)(x+2)$$

بیلګه ۱۲ . ۱۱ ب :

(۱۲ . ۶۰ ) برابرون د ( ۱۲ . ۶۲ ) برابرونونو له مخی اوبی

$x1 = 1/2$

لري او داسی دئ:

$$(2x^3+11x^2+12x-9):(x-1/2)=2x^2+12x+18$$

او له $2x^2 + 12x + 18 = 0$

په همدې ډول یا ( □ ) له $x^2 +6+9=0$ څخه لاس ته راځي

$$x_{2,3} = -3 \pm \sqrt{9-9} = -3 \Leftrightarrow x_2 = x_3 = -3$$

دلته د جملي ۱۲. ۵ دوم حالت مخ ته پروت دی د یوه ریښ حل او یو بل له دې حل مختلف ډبل ریښ حل سره، یعنی لرو $x1=1/2 , x2=x3=-3$ او داسی دئ

$$x^3+(1/2)x^2+6x-9/2)=(x-1/2)(x+3)^2$$

بیلګه ۱۲ . ۱۲ب :

( ۱۲ . ۶۳ ) برابرون د( ۱۲ . ۶۴ ) له مخی $x1 = 3$ ځواب لري. دلته باور لري

$$(x^3-9x^2+27x-27):(x-3)=x^2-6x+9$$

له $x^2-6x+9=0$ څخه لاس ته راځي

$$x_{2,3} = 3 \pm \sqrt{9-9} = 3$$

نو دلته مو د جملی ۱۲ . ۵ د دریم حالت درې برابره ځواب مخ ته پروت دی یعنی

$$x_1 = x_2 = x_3 = 3$$

او داسی دئ

$$x^3+-9x^2+27x-27=(x-3)^3$$

بیلګه ۱۲ . ۱۳ ب : (۱۲ . ۶۵ ) برابرون د ( ۱۲ . ۶۶ ) برابرونونو له مخی ځواب
$x1 = 1$ لري، او داسی دی

$$( x^3 -5x^2 +17x-13):(x-1) = x^2-4x+13$$

له $x^2-4x+13 = 0$ څخه لاندې لاس ته راځي

$$x_{2,3} = 2 \pm \sqrt{4-13} = 2 \pm 3i$$

دلته د جملی ۱۲ . ۵ څلورم حالت د یوه ریيل حل او یوه جوړه کونیوګیرت کملکس ځوابونوسره مخ ته پروت دي.

$$x1 = 1 , x2 = 2+3i , x3 = 2 - 3i,$$

او دا باوري دي

$$x^3-5x^2+17x-13=(x-1)(x-2-3i)(x-2+3i) \qquad =(x-1)(x^2-4x+13)$$

۱۲ . ۴ د ریښی (جذر) برابرون

په ۱۲ . ۱ برخه کی د ریښی رابرون وڅیړل شو. او دا هم څرګند شو چی ځنګه د ریښی برابرون په ریشنل برابرونو اوله دې سره n- می درجي برابرونو بدلیدلي شي۰ دا دې دلته د بیلګو په څیر پاتي وي. یواځي ریيل اوبیونې به و څیړل یا و پلټل شي.

جمله ۱۲ . ۱۴ :
د ریښي برابرون

$$7+3\sqrt{2x+4} =16;...........................(12,72)$$

ډیر ساده کیدی شي چی په لاینیزو برابرونونو واړول شي

$$3\sqrt{2x+4} =9; \sqrt{2x+4} = 3; 2x+4 = 9; 2x = 5; x = 5/2;........(12,73)$$

د ازمایلو لپاره که ( ۱۲ . ۷۳ ) برابرون په ( ۱۲ . ۷۲ ) برابرونونو کی خوندي شي، نو څرګندیږي چی دا د x-ارزښتونه په ریښتیا د مخه ورکړ شوي ارزښتونه پوره کوي

$$7+3\sqrt{5+4} = 7+3.3=16$$

---

بیلګه ۱۲ . ۱۵:

د ريښی برابرون یا مساوات

$$\sqrt{2x+19}+5=0;..........(12,74)$$

کیدی شي په ساده بڼه واړول شي

$$\sqrt{2x+19}=-5; 2x+19=5; x=3;..........................(12,75)$$

د ازمايني لپاره، که ( ۱۲ . ۷۵ ) د پيل په برابرون ( ۱۲ . ۷۴ ) کی خوندي شي، نو دا برابرون ورکوي

$$\sqrt{2x+19}=10\neq 0$$

له دې امله ارزښت $x = 3$ د برابرون ( ۱۲ . ۷۴ ) ځواب نه دی . په دې لاس ته راوړنو سره يا په دې تعقيب د پيل برابرون ځواب نه لري.) داسي کيدی هم نه شي، ځکه چي تل $2x + 19 > 0$ دی)۰

دا ساده بيلګی موږ ته را ښايي چی بايد د ريښی مساواتو حل تل وازمايل شي چی ايا په ريښتوني دا ځواب دی او که نه، او دا په داسی ډول چی شميرل شوي ارزښتونه په پيل مساوات کی کيږدي چی ايا مساوات پوره کوي که نه . دا عمل يواځي د ازمايلو لپاره نه دی چي ګونديې تيك يا صحيح شميرنه شوې او که نه، بلکه دا ځواب يو اړيين سما نديز پل يا ضروری منطقي پل دی .

په ټوليزه توګه باور لري: که برابرون:

$$f(x) = g(x) \qquad (12,76)$$

په يو ې نوي بڼه واړول شي

$$F(x) = G(x) \qquad (12,77)$$

چی د برابرون دواړو لورو ته يا يو څه ور زيات شي ، يا تری کم شي، ياداوړه خواوې په يوه ګڼ ځل ( ضرب ) شي او يا وويشل شي ( په دې حال کی بايد پرويشونی صفر نه وي، ځکه چی په صفر ويشل اجازه نه لرو) که دواړه خواوی د ريښی لاندې راشي او ياپه توان پورته شي نود پيل برابرون ( ۱۲ ، ۷۶ ) هر ابی بدل شوي برابرون (۱۲ . ۷۷) ځواب هم دی ، مګر نه په ځټ ( برعکس، مخامخ). کيدی شي چی اړول شوی برابرون ( ۱۲ . ۷۷ ) زيات ځوابونه ولري نسبت و پيل برابرون ( ۱۲ ، ۷۶ ) ته . دا به په لاندې بيلګه کي روښانه شي.

---

بیلګه ۱۲ . ۱۶:

د ریښې یا جذر برابرون یا مساوات

$$\sqrt{x}-\sqrt{x-1}=\sqrt{2x-1} \qquad (12.78)$$

څلوری یا مربع ته د جګولو له لارې دا بڼه غوره ګوي

$$x+(x-1)-2\sqrt{x(x-1)}=2x-1$$

x+(x-1)-2x(x-1)=2x-1 ,

نو $\sqrt{x(x-1)}=0$

په بیا څلوری یا مربع کولو سره سړی یو مربعمسوات لاس ته راوړي

$$x(x-1) = 0 \quad (12, 79)$$

چې لاندې اوبی یا ځواب لري :

$$x_1 = 0, x_2 = 1 \qquad (12.80)$$

دا د ( ۱۲ . ۷۹ ) اوبیونې دي، مګر باید و ازمایل شي چې ایا دا د ( ۱۲ . ۷۸ ) اوبیونې هم دي که نه.

د $x = 0$ لپاره په ( ۱۲ . ۷۸ ) کی دوه ریښی نه دې تعریف یا ددوه ریښو پیژند نه شته، نو $x = 0$ د (۱۲ . ۷۸ ) اوبیونه نه ده .

د $x = 1$ لپاره لاس ته راځي $1 - 0 = 1$

له دې امله $x = 1$ د پیل بیلګی ( ۱۲ . ۷۸ ) یوګونی ځواب یا اوبی دی .

بیلګه ۱۲ . ۱۷:

د ریښی برابرون

$$\sqrt{x}.\sqrt{x-3}-\sqrt{x^2-4x+3}-\sqrt{2x^2-7x+3}=0,............(12,81)$$

کیدی شي چې په ورته ډول لکه ( ۱۲ . ۷۸ ) بڼه واړول شي:

$$\sqrt{x}.\sqrt{x-3}=\sqrt{x^2-4x+3}+\sqrt{2x^2-7x+3} =>$$

$$x(x-3)=(x^2-4x+3)+(2x^2-7x+3)+2\sqrt{(x^2-4x+3)(2x^2-7x+3)} =>$$

$$-2\sqrt{(x^2-4x+3)(2x^2-7x+3)}=2x^2-8x+6$$

$$(x^2-4x+3)(2x^2-7x+3)=(x^2-4x+3)^2;.........(12.82)$$

-----------------------------------------------------------------------------

دا برابرون یا مساوات پوره دی، که $x^2$-4x+3=0 باور ولري، نو د لاندې لپاره

$$x_{1,2} = 2 \pm \sqrt{4-3} = 2 \pm 1, x_1 = 3, x_2 = 1, ................(12,83)$$

د ټولونورو x لپاره 0 =|$x^2$-4x+3 دی ، او ( ۱۲ . ۸۲ ) کیدی شي چي په لاندې فاکتور وویشل شي:

$$2x^2 - 7x + 3 = x^2 - 4x + 3$$

$$x^2 - 3x = 0$$

$$x(x-3) = 0$$

$$x3 = 0, x4 = x1 = 3$$

او په ( ۱۲ . ۸۱ ) کی ځاي په ځاي کولو سره ازمايل کيږي، چی کوم له لاندې ارزښتونو

$$x_1 = 3, x_2 = 2, x_3 = 0$$

پيل برابرون ډکوي.( باوري کوي، پوره کوي )

د x = 3 لپاره باور لري:

$$\sqrt{3}.\sqrt{0} - \sqrt{9-12+3} - \sqrt{18-21+3} = 0$$

له دې امله x = 3 د پيل برابرون يا مساوات ( ۱۲ ۸۱ ) اوبی یا حل دی . د

x3 = 0 او x2 = 1,

لپاره ريښي پيژند نه لري يا تعريف نه دی، نو له دې امله د پيل برابرون ( ۱۲ . ۸۱ )

اوبی حل x = 3 ( 12 . 85 )

يواځني حل دی

۱۲ – تمرينونه

۱ – مربع مساوات

۱,۱- مربع مساواتدټاکلو ضريبونو سره

1.1.1. a) $x^2 - 4 = 0$ b) $3x^2 + 27 = 0$
c) $x^2 - 9x = 0$ d) $5x^2 = 125\ x$

1.1.2. a) $(x + \frac{1}{3})(x - \frac{1}{3}) = \frac{7}{12}$ b) $(x + \frac{1}{2})(x - \frac{1}{2}) = \frac{5}{16}$
c) $(x - 6)(x + 5) = 0$ d) $(x - \sqrt{7})(x - \sqrt{5}) = 0$

---

1.1.3. a) $x^2 - 6x + 8 = 0$ b) $x^2 + 4x + 2 = 0$

c) $x^2 + \frac{1}{2}x + \frac{3}{2} = 0$ d) $x^2 + 27\frac{1}{12} = 10\frac{7}{12}x$

1.1.4. a) $3x^2 - 20 = x$ b) $7x^2 + 23x = 84$

c) $(43 + 10x)^2 + (66 + 10x)^2 = (79 + 14x)^2$

d) $(3x - 5)^2 - (2x + 5)^2 = 0$

1.1.5. a) $\frac{8-x}{2} - \frac{2x-11}{x-3} = \frac{x-2}{6}$ b) $3x - \frac{3x-10}{9-2x} = 2 + \frac{6x^2-40}{2x-1}$

c) $\frac{5x-1}{6x-9} - \frac{9x-4}{8x+12} - \frac{3x+8}{4x^2-9} = \frac{1}{2}$ d) $\frac{3}{x-2} - \frac{8}{4-3x} = \frac{19}{2x+1}$

### ۱ . ۲ – مربع مساوات د ناټاکلو ضریبونو سره

1.2.1. a) $x^2 - a^2 = 0$ b) $x^2 - ax = 0$

c) $x^2 + \frac{4}{3}ax + \frac{1}{3}a^2 = 0$ d) $x^2 + \frac{1}{2}bx - \frac{1}{2}b^2 = 0$

1.2.2. a) $8x^2 - 10bx - 3b^2 = 0$ b) $12x^2 - 34ax + 10a^2 = 0$

c) $16x^2 - 8ax + a^2 - b^2 = 0$ d) $ax^2 + bx + c = 0$

1.2.3. a) $a^2 - x^2 = (a - x)(b + c - x)$

b) $(x - a + b)(x - a + c) = (a - b)^2 - x^2$

c) $(a + bx)^2 + (ax - b)^2 = 2(a^2x^2 + b^2)$

d) $(x + a + b)(x - a + b) + (x + a - b)(x - a - b) = 0$

1.2.4. a) $ax^2 - (a^2 + 1)x + a = 0$ b) $abx^2 - (a^2 + b^2)x + ab = 0$

c) $a^2(a - x)^2 = b^2(b - x)^2$

d) $(a - x)^2 - (a - x)(x - b) + (x - b)^2 = (a - b)^2$

1.2.5. a) $x + \frac{1}{x} = \frac{a-b}{a+b} + \frac{a+b}{a-b}$ b) $x - \frac{1}{x} = \frac{a}{b} - \frac{b}{a}$

c) $\frac{a+x}{b+x} + \frac{b+x}{a+x} = \frac{5}{2}$ d) $\left(\frac{a-x}{x-b}\right)^2 = 8\left(\frac{a-x}{x-b}\right) - 15$

### ۱ . ۳ – مساوات سیتم، کوم مو مربع مساوتو ته لارښنبودوي یا بیایي

1.3.1. a) $3x + 2y = 3$, $xy = 3$ b) $10x + y = 10$, $5x(15x + y) = 75$

c) $3x + 7y = 21$, $3x^2 - 7y = \frac{21}{2}$ d) $x^2 + xy + y^2 = 1372$, $2x - y = 2$

---

1.3.2. a) $x + y = a$, $xy = b$      b) $xy = a$, $\frac{x}{y} = b$

c) $x^2 + y^2 = c^2$, $\frac{x}{y} = \frac{a}{b}$      d) $ax^2 - \frac{b}{y^2} = 2(a^2 - b^2)$, $bx^2 - \frac{a}{y^2} = a^2 - b^2$

۱ . ۴ – د n-مي درجې ځانګړي مساوات، چې‌په مربع مساوات بیرته اړول کیدی شي

۱ . ۴ . ۱ – بې مربع مساوات د ټاکلو یا معلومو ضریبونو سره

a) $x^4 - 13x^2 + 36 = 0$      b) $(x^2 - 5)^2 + (x^2 - 1)^2 = 40$

c) $(x^2 - 10)(x^2 - 3) = 78$      d) $10x^4 - 21 = x^2$

۱ . ۴ . ۲ - بې مربع مساوات د ناټاکلو یا نامعلومو ضریبونو سره

a) $x^4 + a^4 + b^4 = 2a^2x^2 + 2b^2x^2 + 2a^2b^2$

b) $(a^2x^2 + b^4)(x^2 - a^2) = b^2(x^4 - a^4)$

c) $\frac{a^2b^2x^2}{a^3b + ab^3x^2} + \frac{ab - x^2}{x^2 - 1} = \frac{a^2b^2}{a^2 + b^2x^2}$

d) $\frac{(a-b)x^4}{a^2 - b^2} + \frac{4x^2}{a+b} = x^2 + 4$

۱ . ۴ . ۳ – د n-مي رجي مساوات د $a_0 = a_1 = \ldots = a_{n-3} = 0$ سره

a) $x^{10} + 6x^9 + 5x^8 = 0$      b) $\frac{5}{2}x^5 + 7x^4 = -20x^3$

c) $abx^8 - (a^2 + b^2)x^7 = -abx^6$      d) $ax^{22} - a^2x^{11} + a^2 - a = 0$

۱ . ۵ – لاندي مساوات هم د xاو هم د a پسې حل کړئ!

a) $x^2 + \sqrt{a}\,x - a = 0$      b) $x^2 - 2bx + 2(ab - \frac{1}{2}a^2) = 0$

c) $x^2 + 9ab = (a + b)(x + 2a + 2b)$      d) $(x + b)(x - b) = a(2x - a)$

۱ . ۶ . – شي شوالونه

۱ . ۶ شي سوالونه

۱ . ۶ . ۱ الف دوه ګنهونه ځان داسی نیسي لکه 1 : 3 . ددي ګنهونو د مربع زیاتون ۱۵۶۰ دی. دا ګنهونه څه نومیږي؟

ب ) د درې يو په بل پسې ګټونو د لوي ګڼ مربع دومره ده ، لکه د دوه کوچنيوګټونو د مربعو زياتونونه. دا ګټونه څه نوميږي يا کوم دي؟

پ ) د کوم مثبت ګڼ لسرځله د هغه د مربع څخه ۹۹۹ کوچنی دی؟

ت ) مات 1/4 1 په دوه فاکتورونو a او b داسې تجزيه کړی، چې لاندې زياتون $(a^2 + b^2)/(a^2 - b^2)$ يې لاس ته راشي.

. ۶ . ۲ . الف ) په يوه برابر برقجريان کی مقاومت په ديرش اوم $\Omega$ 30 لوييږي، په کوم کې چی د برققوه په همغه د 220 V ( وولټه ) شپانونګ په پنځه امپير ( 1,65A ) کوچنی شي . مقاومت او برققوه څومره دي؟

ب ) دوه سيخونه چی مقاومت يی $\Omega$ 60 يو له بل توپير لري؛ يوه د غبرګ چالانولوعمومي مقاومت $\Omega$ 22,5 کړي. دواړه برخه مقاومتونه څومره لوي دي؟

. ۶ . ۳ . الف ) يوه د بايسکلځغلونی لار چې ۲۲۵ کيلو متره اوږده ده، د يوه موادو موټر څخه په دريتيم ساعته لنډ وخت کې وهل کيږي،چې د موټر په منځني سرعت چی 26, 25 km/h نسبت و بايسکلځغلونکي ته د موادو موټر او بايسکل ځغلونکي سرعت او د وهلو وخت څومره دی؟

ب ) د سپورت جشن کې يو سپورتي چې له A و B ته په 5km/h سرعت ځغلي، له خپل منډپيل څخه يونيم ساعت وروسته له يوه بايسکلسپورتي څخه وروسته کيږي، کوم چې له مخامخ کيدو, نيم ساعت وروسته B ته رسيږي، او سملاسي بيرته ګرځي او په همغه وخت کې A ته رسيږي په کوم کې چې ځغاستی و B ته رسيږي، د $\overline{AB}$ کرښه څومره لرې ده؟

پ ) دوه ډبډبي ځغاستي يوبل باندې نيغ ولاړو سرکونو د څلورلاري په لور په ډبډبيو ځغلي. د لمړي سرعت ۵ متره په ثانيه کی، دوم څلور متره په ثانيه کی دی دوي له ۳ ثانيو وروسته يو ۳۵ متره لريوالی يو له بل لري، دوي يو

---

له بل په سرچینه کې د څلور لارې څومره لرېوالی لرووده، که لمړی له دوم ۴ متره ورته نږدې وو؟

ت ) د ګاډي یو لاین د موټرڅغاست سرك لمړی برخې سره غبرګ غزیدلی. د یوه موټر څغاستي پیل کې د یو مخته راتلونکي ګاډي واټن ۲۲۵ متره لرې دی. کله دوه ماشینونه په همغه چګوالي دي، که موټرڅغاستی منظم تعجیل او یو تعجیل د $10m/s^2$ کی لري، په داسی حال کی چی د ګاډی سرعت ثابت او $72\ km/h$ دی؟

ټ ) په منځنی سرعت $v_m = 18km/h$ په ۶ بجو له لایپښیږ څخه د دیساو په لور بایسکل څغلیدونکی په ۸ بجو ، په همغه وخت کی له دیساو څخه د لایپښیږ په لور راتلونکی بایسکل څغاستی سره مخامخ کیږي. ورستنی ۱۰۰ دقیق د مخه دیساو ته راځي لکه دوم ولایپښیږ ته. د دیساو او لایپښیږ ترمنځ لرېوالی یا واټن څومره دی؟

۱ . ۶ . ۴ . الف ) په ولاړنجیز دریګوډي کې ، کاتیتې څانونه داسې یوبل سره نیسي لکه 3:4 ، هیپوتینوزې ۵۰ سانتي متره ده ، کاتیتې څومره اوږدې دي؟

ب ) د یوه ولاړکونجیز دریګوډي اړخونه څومره لوي دي ، که د دواړو کاتیتو زیاتون یې۱۷ سانتیمتره اود یوې کاتیتې او هیپوتینوزې زیاتون ۱۸ سانتي متره وي ؟

پ ) د یوه سمکونجیز ( ولاړکونجیز ) دریګوډي کاتیتې څومره لویې دي، که د هغوي زیاتون ۴۲ سانتیمتره وي ، د دریګوډي هواردننه ۲۱۶ مربع سانتي متره وي ؟

ت ) د یوه ولاړګوډي نیمی ( قطر ) ۳۵ سانتي متره اوږد دی، که د ولاړ ګوډي اوږد اړخ ۸ سانتي متره وغزول شي او لنډ اړخ ۶ سانتي متره وغزول شي، د نیمي اوږدوالی ۱۰ سانتیمتره لویږي. د سمکونجیز اړخونه څومره لوي دي؟

---

ت ) که د مربع یوه خوا ۷ سانتي متره وغزوي او بل اړخ په همدې ارزښت لنډ کړي،نو مربع او سمکونجیز دواړه د هوارې دننه ۴۹۵۱ مربع سانتي متره لري.
د سم اړخیز اړخونه څومره لوي دي؟ (یا ولاړ اړخ)

ټ ) د یوې ګردۍ وړانګه ۱۶ سانتي متره اوږده ده. په ګردۍ کې دننځاي مربع اړخ څومره لوي دی؟ (یا څونډي مربع اړخ)

ج ) د یوې ګردۍ نیمی باید څومره لوي، که په دننه منخشوې مربع اړخ ۱ سانتي متره د هغه د وړانګې څخه لوي وي؟

ح ) که د یوې ګردۍ نیمی ( قطر ) ۳ سانتي متره لوي شي ،نو د ګردۍ هواره دوه برابره کیږي. د ګردۍ سرچیني نیمی څومره لویه ده؟

خ ) د یوه نیمغونډي نیمی څومره دی، که د هغه د دیوال لویوالی ۳ سانتیمتره او او تشډکی یې ۵۰۱۶ مکعبسانتي متره وي؟

۲ – د درېمې او څلورمې درجې مساوات

2.1 a) $x^3 + 2x^2 - x - 2 = 0$ b) $x^3 + x^2 - 5x - 84 = 0$

c) $3x^3 - x^2 - 9x + 3 = 0$ d) $x^3 + x - 2 = 0$

12.5 Übungsaufgaben 1

2.2. a) $4x^4 - 12x^3 + 7x^2 + 3x - 2 = 0$ b) $x^4 - 2x^3 - 5x^2 + 6x = 0$

c) $x^4 - 4x^3 + 4x^2 + 4x - 5 = 0$ d) $6x^4 + 5x^3 - 38x^2 + 5x + 6 = 0$

۳ . ریښه مساوات:

ټول ارزښتونه x وشمیرئ، چې د لاندې مساتو حلونه یا اوبیونې دي. د هرې پوښتنې د ټیکاوي لپاره ازماېښت وکړئ!

۳ . ۱ – ریښه مساوات د ټاکلو ضریبونو یا ځلوونو سره:

3.1.1. a) $\sqrt{x} = 3$ b) $\frac{3}{2}\sqrt{x} - \frac{2}{3}\sqrt{x} + 7 = 2\sqrt{x}$

c) $\frac{5}{3}\sqrt{15x} - \frac{3}{5}\sqrt{15x} - 11 = \frac{1}{3}\sqrt{15x}$

d) $\sqrt[3]{x} = 5$

3.1.2. a) $(3\sqrt{x} - 5)(5\sqrt{x} - 3) = 5(3x - 31)$

---

b) $(5\sqrt{x}-2)^2+(12\sqrt{x}-9)^2=(13\sqrt{x}-9)^2$

c) $\frac{5\sqrt{x}+12}{7\sqrt{x}+15}=\frac{4}{5}$ d) $\frac{2\sqrt{x}+3}{2\sqrt{x}-3}=7$

3.1.3. a) $\frac{\sqrt{x}-3}{7}-\frac{\sqrt{x}-25}{5}=7-\frac{2+\sqrt{x}}{4}$ b) $\frac{16-\sqrt{x}}{2}-\frac{10-\sqrt{x}}{3}=\sqrt{x}$

c) $\sqrt{x}+\sqrt{2x}=1$ d) $2\sqrt{x}-\sqrt{2x}=2+\sqrt{2}$

3.1.4. a) $10-\sqrt{x-2}=3$ b) $\sqrt{3x-5}+4=5$

c) $\sqrt[3]{7x-6}+6=10$ d) $4\sqrt[3]{5x-8}=3\sqrt[3]{9x+1}$

3.1.5. a) $9\sqrt{5x+1}=20+4\sqrt{5x+1}$ b) $\sqrt{7x+2}=\frac{5x+6}{\sqrt{7x+2}}$

c) $3\sqrt{4x-3}-\frac{10x}{\sqrt{4x-3}}=\frac{1}{\sqrt{4x-3}}$ d) $\frac{9x}{\sqrt{10x-9}}-\sqrt{10x-9}=\frac{2}{\sqrt{10x-9}}$

3.1.6. a) $\sqrt{9x^2-10x-55}=3x-5$ b) $x+1=\sqrt{2x^2+\frac{1}{2}x+\frac{3}{2}}$

c) $17-4\sqrt{\frac{3x+5}{x-7}}=1$ d) $24-7\cdot\sqrt[3]{\frac{4x-1}{x-6}}=3$

3.1.7. a) $\sqrt{52-3\sqrt{5x+6}}=2\sqrt{10}$ b) $\sqrt{x+1-\sqrt{2x+3}}=1$

c) $\sqrt{37-7\sqrt{5x+4}}=4$ d) $\sqrt[4]{19-3\sqrt[3]{5x-9}}=2$

3.1.8. a) $\sqrt{9x-17}-3\sqrt{x-4}=1$ b) $2\sqrt{9x+4}-3\sqrt{4x-11}=1$

c) $\sqrt{x+9}-\sqrt{x+2}=\sqrt{4x-27}$ d) $\sqrt{9x+10}-\sqrt{x-1}=\sqrt{4x+9}$

3.1.9. a) $\sqrt{x+4}-\sqrt{x-8}+\sqrt{x-3}-\sqrt{x+13}=0$

b) $\sqrt{x+9}+\sqrt{x-12}=\sqrt{x}+\sqrt{x-7}$

c) $\sqrt[3]{9x+10}-\sqrt{3x+4}=0$ d) $|\sqrt{3x+7}|+|\sqrt{4-x}|=3$

3.1.10. a) $\frac{1}{1+\sqrt{1-x}}+\frac{1}{1-\sqrt{1-x}}=\frac{2x}{9}$ b) $\sqrt[3]{76+x}+\sqrt[3]{76-x}=8$

c) $(\sqrt[3]{x}-1)^2+\sqrt[3]{x^2}=\sqrt[3]{x}$ d) $\sqrt[4]{x^3}-2\sqrt{x}+x=0$

---

### ۳ . ۲ – رينه مساوات د نامعلومو ضريبونو سره

3.2.1. a) $\sqrt{x} = a$ b) $\sqrt[3]{x} = b$

c) $a - \sqrt[3]{x} = b$ d) $a\sqrt{x} - b = c\sqrt{x} - d$

3.2.2. a) $\sqrt{x-a} = b$ b) $\sqrt[3]{a-x} = b$

c) $\sqrt[4]{a^4 + x} = a$ d) $\sqrt[6]{a^6 - x} = b$

3.2.3. a) $(\sqrt{ax} + \sqrt{b})(\sqrt{ax} - \sqrt{b}) = (a+1)(a-1)b$

b) $(a - \sqrt{x})(b - \sqrt{x}) = (c + \sqrt{x})(d + \sqrt{x})$

c) $\dfrac{\sqrt{ax} - b}{\sqrt{ax} + b} = \dfrac{3\sqrt{ax} - 2b}{3\sqrt{ax} + 5b}$ d) $\dfrac{2a + 3\sqrt{bx}}{3a + 2\sqrt{bx}} = \dfrac{3b + 2\sqrt{ax}}{2b + 3\sqrt{ax}}$

3.2.4. a) $\sqrt{x} + \dfrac{\sqrt{b} - \sqrt{a}}{\sqrt{b}} = \dfrac{1}{\sqrt{x}} + \dfrac{\sqrt{a} - \sqrt{b}}{\sqrt{a}}$ b) $\dfrac{\sqrt{a} + \sqrt{x}}{\sqrt{a} - \sqrt{x}} = \dfrac{2\sqrt{x}}{\sqrt{a} + \sqrt{x}} - \left|\dfrac{(x+a)^2}{a(x-a)}\right|$

c) $\dfrac{a + b\sqrt{x}}{a + b} = \dfrac{c + d\sqrt{x}}{c + d}$ d) $\dfrac{a + b\sqrt{x}}{a\sqrt{x} + b} = \dfrac{c + d\sqrt{x}}{c\sqrt{x} + d}$

3.2.5. a) $x + \sqrt{x^2 - a^2} = a$ b) $x - \sqrt{ax(1+x) + 1 - x} = 1$

c) $\sqrt{x+a} = a - \sqrt{x}$ d) $\sqrt{x + a^2} - \sqrt{x} = b$

3.2.6. a) $\sqrt{a-x} + \sqrt{b-x} = \dfrac{b}{\sqrt{b-x}}$ b) $\sqrt{x+a} - \sqrt{5x - 3a - 4b} = \dfrac{2b}{\sqrt{x+a}}$

c) $\sqrt{x+a} - \sqrt{x-a} = \dfrac{x + a - b}{\sqrt{x+a}}$

d) $\sqrt{3a - 2b + 2x} - 2\sqrt{3a - 2b - 2x} = \dfrac{a + 2b + 2x}{\sqrt{3a - 2b + 2x}}$

3.2.7. a) $\dfrac{\sqrt{1+x^2} + \sqrt{1-x^2}}{\sqrt{1+x^2} - \sqrt{1-x^2}} = \dfrac{a}{b}$ b) $\dfrac{\sqrt{3x^2 - 1} + \sqrt{3 - x^2}}{\sqrt{3x^2 - 1} - \sqrt{3 - x^2}} = \dfrac{a}{b}$

c) $\sqrt[3]{a+x} + \sqrt[3]{a-x} = \sqrt[3]{2a}$ d) $\sqrt[3]{a+x} + \sqrt[3]{a-x} = \sqrt[3]{c}$

۳ ، ۳ – مساوات سیستمونه، چې ریښه مساوات خوندي لري

3.3.1 a) $\sqrt{x}+\sqrt{y}=8$, $\sqrt{xy}=15$

b) $x+y=58$, $\sqrt{x}+\sqrt{y}=10$

c) $\sqrt{x-5}+\sqrt{y+2}=5$, $x+y=16$

d) $\sqrt{5-3x+x^2}+\sqrt{5-3y+y^2}=6$, $x+y=3$

3.3.2 a) $\dfrac{\sqrt{x}+\sqrt{y}}{\sqrt{x}-\sqrt{y}}=\dfrac{a}{b}$, $xy=(a^2-b^2)^2$

b) $\dfrac{x\sqrt{x}+y\sqrt{y}}{x\sqrt{x}-y\sqrt{y}}=\dfrac{a}{b}$, $x^3-c^3=c^3-y^3$

c) $x\sqrt{x+y}=a$, $y\sqrt{x+y}=b$

d) $x\sqrt[3]{x^2+y^2}=a$, $y\sqrt[3]{x^2+y^2}=b$

# ۱۳ ترانسځندنت برابرونونه یا - مساوات

لکه څنګه چی په ۱۲ . برخه کی دې ته ګوته نیول شوې وه، چی دلته یواځې هغه ترانسځندنت مساوات څېړل کیږي، کوم چی بیرته په الجبري مساواتو اړول کیدی شي.
دا بیرته په الجبري مساواتو اړول، لکه څنګه په ریښه مساواتوکی، په خوښه په بل شکل اړول کیږي او په داسي ډول دي لکه هملته:

د فرمول په اړولو( فورم بدلون یا بڼه بدلون) سره کوم ځواب له منځه نه ځي، خو کیدی شي چی اړولی فرمول زیاتې اوبیونې یا حلونه نسبت د پیل برابرون ته ولري. له دې امله باید د اړول شوي برابرون ټولې اوبیونې په پیل برابرون کی ځاي په ځاي یا کیښوول شي او وکتل شي چی کوم له دې د پیل مساوات حلونه هم دي

لکه څنګه په ریښه یي برابرونونو یا مساواتو کی ، دلته هم یواځی رییل اوبیونې پلټل کیږي.

۱۳ . ۱ لوګاریتمي مساوات
د لوګاریتمي مساواتو او اکسپوننشل یا په جګ سماواتو د حل (اوبي) پیدا کولو لپاره اړیین یا ضرور(ضروري یا اړیین شرایط) دی، چی د یو عدد(ګڼ) aلوګاریتم، د b په بنسټ، معلوم کړو یا وڅیړو.

$$x = \log_b a; a > 0, b >, b \neq 1 \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(13{,}1)$$

د بنسټ b = 10 لپاره(lga) او د بنسټ b=e لپاره ( ln a) کیدی شي ( ۱۳ . ۱ )

---

سیده د جبشمیري له لارې پیداشي. په څټ یا برعکس د 10 =| e|= b لپاره برابرونونه په دې ډول اړول کیږي

$$x = \log_b a = \lg a / \lg b = \ln a / \ln b ....................(13.2)$$

د لوګاریتمي مساواتو یو ساده ډول یا شکل ( تیپ ) دا دئ

$$l\,og_b\, x = c ..................................(13.3)$$

دا برابرون د (7. ۱ ) ، (7. ۲ ) له مخی لاندې ته ورته دئ:

$$x = b^c ..........................................(13,4)$$

دا سی افاده هم د جبشمیري سره شمیرل کیدی شي.

بیلګه ۱۳ . ۱ $: \log_2 x = 1,5; x = 2^{1,5} = 2.8284$

په همدې ډول د ( ۱۳ . ۳ ) بڼې اوبیونه په لاندې ټولیز شوي شکل هم ساده دی

$$\log_b\, f(x) = c .........................................(13,5)$$

دلته ( f(x یوه الجبري وینه یا افاده ده، د ( ۱۳ . ۵ ) سره الجبري برابرون کټمټ ( ورته) دئ

$$f(x) = b^c ..........................................(13,6)$$

ټولې د ( ۱۳ . ۶ ) اوبیونې د ( ۱۳ . ۵ ) اوبیونې هم دي

بیلګه ۱۳ . ۲ : لوګاریتمیز برابرون

$$\log_2(x^2 + x + 6) = 3$$

دلاندې مساواتوسره کټمټ دي

$x^2+x+6=2^3= 8$ (همداسی) ⇔ $x^2+x-2=0$

او لاندې اوبیونې لري

---

$$x_{1,2} = -\frac{1}{2} \pm \sqrt{\frac{1}{4} + \frac{8}{4}} = \frac{1}{2} \pm \frac{3}{2}; x_1 = -2; x_2 = 1$$

یو د ( ۱۳ . ۵ ) ډول ( تیپ) برابرون هم مخ ته لرو، که د هغه کيڼې لور ( ارخ) ته یود لوګاریتم ریشنل لاینیز کمبینشن الجبري وییته یا افاده موجوده وي

$$r_1.\log_b g_1(x) + r_2.\log_2(x) + r_3.\log_b g_3(x) + ... = c.........(13,7)$$

دلته ځلوني ri راشنل ګڼونه دي. د لوګاریتم قوانینو (۷. ۷ ) ، (۷. ۹ ) کاروني یا استعمال څخه، ۷ برخه وګورئ، ( ۱۳ ، ۵ ) لاس ته راځي او دا د لاندې برابرونونو سره

$$f(x) = \{g_1(x)\}^{r_1}.\{g_2(x)\}^{r_2}..................................(13,8)$$

بیلګه ۱۳ . ۳:

لومړی له $\log_3(x-1) + \frac{1}{2}\log_3 x - \frac{1}{2}\log_3(x-1) = 2$ څخه لاندې لاس ته راځي

$$\log[(x-1)(\frac{x}{x-1})^{\frac{1}{2}}]$$

اوله دې څخه ریښه برابرون $\sqrt{x}.\sqrt{x-1} = 9$ ،

د کوم له څلورئ یا مربع کولو څخه $x(x-1)=81$ یعني $x^2-x-81=0$

د لاندې ځواب سره

$$x_{1,2} = \frac{1}{2} \pm \sqrt{\frac{1}{4} + \frac{324}{4}} = \frac{1}{2} \pm \sqrt{\frac{325}{4}} = \frac{1}{2} \pm (\frac{1}{2}).18.03;$$

$$x_1 = 9,515; x_2 = -8,515$$

ټیک دا $x1 = 9,515$ پیل برابرون پوره کوي

. د $x=x2<0$ لپاره $\log x$ او په همدې ډول $\log(x-1)$ پیژند نه لري یا تعریف نه دي.

بیلګه ۱۳ . ۴:

له $\log_b(2x+3)=\log_b(x-1)-1$ څخه لاس ته راځي

$$\log_b[(2x+3)/(x-1)] = 1$$

---------------------------------------------------------------------------------

او نور پسی $\frac{2x+3}{x-1} = b^1 = b$ پس

$2x+3=bx-b$
$b+3=x(b-2)$
$x=(b+3)/b-1)$

پیل وبینه یا افاده د $x>1$ لپاره موخه وره یا هدفمنده ده، یعني
که $(b+3)/(b-2)>1$ ) وي.
د $b>2$یعنی $b-2>0$ څخه لاس ته راځ $b+3 > b-2$
له دې لرو $3>-2$دا د ټولو b لپاره پوره دی
.د $2 \leq b$ لپاره د $b+3 \leq b-2$ $b+3 < b-2$ څخه $2 \leq 3$ لاس ته راځي اودا د هیڅ b لپاره باور نه لري .
له دې امله کره د $b > 2$ لپاره اوبی شته دی. د $b \leq 2$ لپاره اوبیونه نه شته دی.

د لاندې لوګاریتمي تیپ برابرون هم کیدی شي په الجبري مساواتو بیرته واړول شي
$$F(\log_b f(x)) = 0 \qquad (13.9)$$
چیرته چی F او هم f الجبریزې وېینې یا افادې دي. د بدلون کاروایي یا عملیه اجرا کوو
$$y=\log_b f(x) \qquad (13,10)$$
او په لمړي پل کی الجبري برابرون اوبی کوو
$$F(y)=0 \qquad (13.11)$$
ددې اوبیونه $y1,y2,..$ په ( ۱۳،۱۰ ) کی ږدو، نو د هر yi لپاره د تیپ ( ۱۳،۵ ) لوګاریتمي مساوات لاس ته راځي:
$$\log_b f(x) = y_i; \quad i = 1,2,3,\ldots \qquad (13.12)$$

له دې څخه لاندې الجبري مساوات لاس ته راځي
$$f(x)=b^{y_i} \qquad (13.13)$$
ددې لپاره چی و ازمائیلی شو چی ایادا هم برابرون پوره کوي، نو ټول ددې برابرونونو اوبیونې یا ځوابونه باید په پیل برابرون ( ۱۳،۹ ) کی کینوول شي یا ځاي په ځای شي،

---

بیلګه ۱۳ . ۵ : برابرون $\log^2 x-\lg x-2=0$ د سبستیځیوشن(بدلون) $y=\lg x$ سره په
ځلورئ برابرون $y^2-y-2=0$ بدلیږي .
د $y_1 = 2$ او $y_2 = -1$ ځوابونو سره
له $\lg x=2$ او $\lg x=-1$ لاس ته راځي.

$x_1 = 10^2=100$ او $x_2 =10^{-1}= \frac{1}{10}$

دواړه ځوابونه د پیل برابرون ځوابونه دي.

بیلګه ۱۳ . ۶ :

له برابرون $(6 /(\lg x +1)) + (8 / (\lg x -1)) = 3$
د $x>0$, مګر $(x \neq 1/10, x \neq 10)$ چې د اصلي ماتلاندې $(\lg x+1)(\lg x-1)$ سره
ځل شی، لاس ته ترې راځي

$$6(\lg x-1)+8(\lg x+1)=3(\lg^2 -1)$$
$$,\ 6\lg x-6+8\lg x+8=3\lg^2 x-3$$
$$0=3\lg^2 x-14\lg x-5$$

او د بدلون $y = \lg x$ سره مو لاندې ځلورئ بڼې یا مربعفورم ته بیایي:

$$3y^2-14y-5=0\ ,\ y^2-(14/3)y-5/3=0$$

د لاندې ځوابونو سره

$$y_{1,2}=\frac{7}{3}\pm\sqrt{\frac{49}{9}+\frac{15}{9}}=\frac{7}{3}\pm\frac{8}{3}; y_1=lox_1=5; y_2=\lg x_2=-\frac{1}{3}$$

$$x_1=10^5; x_2=x^{-\frac{1}{3}}=\frac{1}{\sqrt[3]{10}}$$

دواړه ارزښتونه پیل مساوات پوره کوي.

---

که په یوه برابرون کې لوګاریتمونه د مختلفو بنسټونو bسره رامنځ ته شي، نو کیدی شي د ( ۱۳ . ۲ ) په مرسته په همغه برابر بنسټ واړول شي

بیلګه ۱۳ . ۷ :

له $\log_2(x-1) + \log_4(x-1) - 1 = 0$

څخه دلاندې برابرون په مرسته لاس ته راځي:

$$\log_4(x-1) = \frac{\log_2(x-1)}{\log_2 4} = \frac{1}{2}\log_2(x-1),$$

$$\log_2(x-1) + \frac{1}{2}\log_2(x-1) - 1 = 0,\ \log_2(x-1) = \frac{2}{3},\ x-1 = 2^{\frac{2}{3}} = \sqrt[3]{2^2} = \sqrt[3]{4},$$

$$x = 1 + \sqrt[3]{4}.$$

دا ارزښت د پیل برابرون اوبی یا ځواب هم دی:

$$\log_2\sqrt[3]{4} + \log_4\sqrt[3]{4} - 1 = \frac{1}{3}\log_2 4 + \frac{1}{3}\log_4 4 - 1 = \frac{1}{3}\cdot 2 + \frac{1}{3} - 1 = 0.$$

## ۱۳ . ۲ اکسپوننشل – یا په جګ برابرونونه

ساده اکسپوننشل برابرون( مساوات)

$$a^x = b; a > 0, a \neq 1, b > 0 \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots(13,14)$$

کیدی شي چې د لوګاریتم نیولو سره سملاسي حل شي( ځواب شي)

$$x = \log_a b = \lg_b / \lg_a = \ln b / \ln a \qquad (13, 15)$$

لاندني برابرونونه په ساده ډول په ( ۱۳ ، ۱۴ ) ډول (رقم ( تیوپ ) برابرونونو باندې اړول کیدی شي.

بیلګه ۱۳ . ۸:

$$2^x + 3^{x+2} - 2^{x+2} - 3^{x+1} = 0.$$

$$2^x(1-2^2) + 3^x(3^2-3) = 0,\ \text{bzw.}\ 6\cdot 3^x = 3\cdot 2^x,\ \text{bzw.}\ \left(\frac{2}{3}\right)^x = 2,$$

$$x = \frac{\lg 2}{\lg\frac{2}{3}} = \frac{\lg 2}{\lg 2 - \lg 3} = -1{,}7095.$$

که په ( ۱۳ . ۱۴ ) د الجبري ویيني یا افادي( f (x اکسپوننتونه یاجګګڼونه وي، نو:

$$a^{f(x)}=b, a>0, a\neq 1, b>0 \qquad (13.16)$$

په دې ډول د لوګاریتمولو له لارې یو الجبري برابرون لاس ته راځي

$$f(x)=\log_a b \ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots\ldots (13,17)$$

د کومو ځوابونه چی د ) ۱۳ . ۱۶ ( ځوابونه هم دی.

بیلګه ۱۳ . ۹ : مساوات $2^{x^2+x-4} = 4$

مو لاندې څلوری برابرون یا مربع مساوات ته بیایي ( لاربنودوي)

$$(x^2+x-4)=\log_2 4 = 2 \quad \Leftrightarrow \quad x^2 + x - 6 = 0$$

د $x_1 = 2 , x_2 = -3$ ځوابونوسره ، کوم چی د پیل برابرون اوبیونې یا ځوابونه هم دي٠

بیلګه ۱۳ . ۱۰ :

په برابرون $\left(\frac{2}{3}\right)^3 = \left(\frac{3}{2}\right)^{x+1}$ کی د یوه پوتنځ بنسټ د بل پوتنځ د بنسټ په څټ ارزښت دی. له دې امله باور لري

$$\left(\frac{3}{2}\right)^{x+1} = \left(\frac{3}{2}\right)^{-3}$$

له دې څخه لاس ته راځي

$$x_1 + 1 = -3 , x_2 = -4$$

**بیلګه ۱۳ . ۱۱ : په مساوات** $16^{(3^x)} = 4^{(6^x)}$

کې کیدی شي چي ناپیژندونکی د اکسپونټ یا په جګ څخه د دوه واره لوګاریتمولو له لارې لاس ته راشي (راحل شي ):

$$3^x \cdot \lg 16 = 6^x \cdot \lg 4 \Leftrightarrow \left(\frac{3}{6}\right)^x = \frac{\lg 4}{\lg 16} \Leftrightarrow x \cdot \lg 0{,}5 = \lg \frac{\lg 4}{\lg 16} = \lg \frac{2\lg 2}{4\lg 2},$$

$$x \cdot \lg 0{,}5 = \lg 0{,}5 \qquad \text{يا} \quad \text{oder} \quad \left(\frac{1}{2}\right)^x = \frac{1}{2},$$

$$x = 1 \qquad\qquad x = 1.$$

بیلګه ۱۳ . ۱۲ : $7\sqrt[x]{22} - 15\sqrt[x]{25} = 0$

یو د تیپ یا ډوی مساوات دي، ځکه چې باور لري

$$\frac{\sqrt[x]{22}}{\sqrt[x]{25}} = \frac{15}{7} \Leftrightarrow \sqrt[x]{\frac{22}{25}} = \frac{15}{7} \Leftrightarrow \left(\frac{22}{25}\right)^{\frac{1}{x}} = \frac{15}{7}$$

او له دې امله

$$\frac{1}{x} = \frac{\lg\frac{15}{7}}{\lg\frac{22}{25}} \Leftrightarrow x = \frac{\lg 22 - \lg 25}{\lg 15 - \lg 7} = 0{,}1677.$$

که د مساوات په کیڼ اړخ د اکسپوننشل افادو ځلونه او یا ویشونه هم وي، د مختلفو بنسټونو او مختلفو الجبري اکسپوننتونو سره، کیدی شي چې د لوګاریتمولو له لارې الجبري مساوات لاس ته راشی.

له

$$\frac{a_1^{f_1(x)}.a_2^{f_2(x)}........}{b_1^{g_1(x)}.b_2^{g_2(x)}........} = c;..................................(13{,}18)$$

څخه لاس ته راځي:

$$f_1(x)\lg a_1 + f_2(x)\lg a_2 + ... - g_1(x)\lg b_1 - g_2(x)\lg b_2 - ....... = \lg c \qquad (13 . 19)$$

که یو مساوات مو مخ ته پروت وي، په کوم کی چی د یوه اکسپوننشل افادې یوه الجبري وېینه یا افاده F د الجبري اکسپوننت( f(x سره رامنځ ته شي

$$F(a^{f(x)})=0 ;..................................(13{,}20)$$

نو دا بدلونه کوو

$$y = a^{f(x)} \qquad (13 . 21)$$

د برابرون

$$F(y) \qquad (13.22)$$

د ټولواوبيونو $y_1, y_2, y_3;$............... لپاره بايد

$$a^{f(x)} = y_i; i=1,2,3....... \qquad (13.23)$$

په همدې ډول

$$f(x) = \log_a y_i \quad ; i = 1, 2, 3 ....... \qquad (13.24)$$

اوبى شي

بيلګه ۱۳ . ۱۳:

برابرون $3^{2x} + 3^x = 2$ کيدى شي چى د بدلون $y = 3^x (y^2 = 3^{2x})$ سره په څلورى

برابرون يا مربع مساوات $y^2+y-2=0$ بيرته واړول شي. لاس ته راځي

$$y_{1.2} = -\frac{1}{2} \pm \sqrt{\frac{1}{4} + \frac{8}{4}} = -\frac{1}{2} \pm \frac{3}{2}; y_1 = 3^x = 1; y_2 = 3^x = -2$$

له دې څخه لاس ته راځي

$$x_1 . \lg 3 = \lg 1 = 0, \; x_1 = 0$$

دا برابرون $x_2 . \lg 3 = \lg(-2)$ اوبيونه نه لري

بيلګه ۱۳ . ۱۴ :

په برابرون

$$\sqrt{e^{x^2-1}} - \sqrt{e^{x^2-1} - 1} = \sqrt{2e^{x^2-1} - 1} .......................... (13,25)$$

کې داسې بدلوو:

$$y = e^{x^2-1} ....................................... (13,26)$$

او لاس ته راوړو

$$\sqrt{y}-\sqrt{y-1}=\sqrt{2y-1};..............................(13,27)$$

له دې څخه د مربع کوولو له لارې لاس ته راځي:

$$y+y-1-2\sqrt{y(y-1)}=2y-1\Rightarrow -2\sqrt{y(y-1)}=0 => y(y-1)=0$$
$$y_1=0; y_2=1$$

$y_2=1$ ټيك (۱۳ ، ۲۷) پوره کوي. له دې امله

$$e^{x^2-1}=1 \qquad ..........(13,28)$$

حل اوبی . د لوګاريتمولو څخه تعقيبيږي:

x²-1=ln1=0,

x1 = 1 , x2 =-1

دواړه ارزښتونه پيلبراورن پوره کوي٠
برسيره پر دې بايد وښوول شي، چې په برخی ۱۳ . ۱ او ۱۳ ۲ کی انځور شوي متودونو سره يوه د مساواتو ټوله لړی حل کيدی شي، په کوم کی اکسپوننشل افادې او لوګاريتم يوځاي رامنځ ته کيږي.

بيلګه ۱۳ . ۱۵ :

له $2^{(\ln^2 x-\ln x+1)}=8$ څخه د بيلګي په توګه د بنسټ 2 لوګاريتموولو له لارې لاس ته راځي

$$\ln^2x-\ln x+1=\log_2 8 = 3$$

که کيږدو y = lnx ، نو دا څلوری برابرون يا مربع مساوات $y^2-y-2=0$ لاس ته راځي،د ځوابونو

y1 = -1 , y2 = 2

سره او له دې بيا لاس ته راځي:

lnx=-1 , lnx=2, x1=e-1=1/e , x2=e²

## ۱۳ . ۳ ګونومتريکي- يا کونجکچ برابرون

---

د ګونومتري ساده برابرون لاندې ډیره لري

$$sinx=a , cosx=a \quad ( 13 . 29 )$$

$$tanx=a , cotx=a, \quad ( 13 . 30)$$

دلته فقط دواړه لومړي برابرونونه ( ۱۳ . ۲۹ ) ځوابونه لري ، که $-1 \le a \le 1$ باور ولري، نور ارزښتونه sin x او cos x نه شي غوره کولی( پرتله برخه ۶ . ۳) د جبشمیرني سره د تکمو یا ګوټکونو په پرلپسی د ( ۱۳ . ۲۹ ) همداسی ( ۱۳ . ۳۰) یو ځواب لاس ته راځي

د(۱۳، ۲۹ ) لپاره

a F sin a F cos

د (۱۳،۳۰ ) لپاره

a F tan a 1/x tan

دا چي tan x او cotx پریودې همداسی 180°لري او په یوه اینتروال کی چي اوږدوالی همداسی 180°لري د( ۳۰ ۱۳ ) ټیك یو ځواب پروت دی، لاندې جمله صدق کوي

جمله ۱۳ . ۱ :که x0 د( ۱۳ . ۳۰ ) یو ځواب وي) چی د بیلګي په توګه د جبشمیرنی په مرسته لاس ته راځي)، نو د ( ۱۳ . ۳۰ ) د لاندې بڼی ټول ځوابونه تر لاسه کوو

$$x_k = x_0 + k\pi = x_0 + k.180°; k = ... -3, -2, -1, 0 1, 2, 3, ...; .......... (13,31)$$

په همدې ډول دې دلته هم د هندسی برخه په پام کی وي. چی د هغو له مخې په ( ۱۳ ، ۳۱ ) کی د بیلګي په توګه باور لري

$$x_k = \frac{\pi}{6} + k\pi = 30° + k.180°$$

د کونجونو فنکشنونه sin x او cos x پریودې( تل بېرته راګځېدنه یا دوران)

$$2\pi = 380°$$

---

لري. مساوات (۲۹.۱۳) ددې اوږدوالی اینتروال کی دوه حلونه لري. که چیرته د جبشمیرني سره یوه اوبیونه $x_0$ پیداشي، نو د sin x = a په حالت کی $x = -x_0$ هم یو حل دی، او $x = -x_0$ د cos x = a په حالت کی یو بل اوبی

یا حل دی. پس لرو:

جمله ۱۳ . ۲ : که x0 د ( ۱۳ ، ۲۹ ) یو هغه اربیونه یا حل وي، چی د بیلګي په توګه په جبشمیروني لاس ته راځي، نو د sin x = a ټول حلونه په لاندې ډول لاس ته راځي

$$x_k = x_0 + 2k\pi = x_0 + k.360°; k = .... -3, -2, -1, 0, 1, 2, 3, ....; ..................(13,32)$$

$$\bar{x} = \pi - x_0 + 2k\pi = 180° - x_0 + k.360°; ..................................................(13,33)$$

او د cos x = a ټول حلونه په لاندې ډول لاس ته راځی

$$x_k = x_0 + 2k\pi = x_0 + k.360°; k = .... -3, -2, -1, 0, 1, 2, 3, ....; ..................(13,34)$$

$$\bar{x} = -x_0 + 2k\pi = -x_0 + k.360°; ..........................................................(13,35)$$

بیلګه ۱۳ . ۱۶: د مساوات sin x = 0,23910 لپاره د جبشمیرني سره لاندې حلونه لاس ته راځي: ( په درجه کچ یا ګراد اندازه) x0 =13,833427º

(په لینده کچ)0,24143 = 0,017453. 3,833427

د ) ۱۳ . ۳۲ ( ، ) ۱۳ ، ۳۳ ( له امله په لاندې سره ټولې اوبیونې راکړ شوي دي

$x_k$ = 13, 833427 + k.360º = 0,24143 + k.6,28318,

$\bar{x}_k$ = 166,16657º + k.360 = 2,9001 + k .6,28318.

بیلګه ۱۳ . ۱۷ : د برابرون cos x = -0,682000 اوبیونه د جبشمیروني سره مومو

x0 = 133,00013º = 133º = 2,32125.

د ( ۱۳ ، ۳۴ ) او ( ۱۳ . ۳۵ ) له مخی ټول حلونه په لاندې ډول لاس ته راځي

$x_k$ = 133° + k .360° = 2,32125 + k.6,28318,

$\bar{x}_k$ = -133° + k.360° = -2,34125 + k.6,28318

---

بیلګه ۱۳ . ۱۸:

د برابرون $\tan x = -\sqrt{3} = 4{,}843000$ حل په جبشمیرني پیداکوو

$x_0 = -59{,}999988° = -60° = -1{,}04718$

له دې امله د ) ۱۳ . ۳۱ ( له مخې ټول حلونه په لاندې ډول لاس ته راځي

$x_k = -60° + k.180° = -1{,}04718° + k.3{,}14159$

بیلګه۱۳ . ۱۹:

د برابرون $\cot x = 4{,}843000$ ټولې اوبیونې یا حلونه د جبشمیرني سره داسی

$x_0 = 11{,}666677^o = 11{,}67^o = 0{,}203675$

لاس ته راځي. په دې توګه د ( ۱۳ . ۳ ) له مخې ټول حلونه په لاندې ډول لرو:

$x_k = 11{,}67^o + k.180^o = 0{,}203675 + k.3{,}14159$

بیلګه ۱۳ . ۲۰ : مساوات $\sin x = \sqrt{2}$ د $1 < 2$ له امله اوبیونه ل نه لري .

د ګونومتري مساواتو نور تیپونه یا ډولونه، کوم چې تراوسه په څرګندومتودو یا لارو ځوابوړ دي، لاندې بڼه لري

$$\sin f(x) = a\ ,\quad \cos f(x) = a \qquad (13.36)$$

$$\tan f(x) = a\ ,\quad \cot f(x) = a \qquad (13.37)$$

دلته کیدی شي چې $f(x)$ الجبري او یا ترانسڅیندنته افاده وېکه بدل (سوبستیتوتي) شي

$$y = f(x) \qquad (13.38)$$

نو لاندې مساواتونه لاس ته راځي

$$\sin y = a\ ,\ \cos y = a \qquad (13.39)$$

$$\tan y = a\ ,\ \cot y = a \qquad (13.40)$$

دا کیدی شي د جملی ۱۳ . ۱ سره سم اوبی کړای شي. ددې اوبیونې یا حلونه دې $y_1, y_2, y_3, \ldots$ وي .

د ( ۱۳ ، ۳۷ ) سره سم د $f(x) = y_i\ ,\ i = 1,2,3,\ldots$ ټولې اوبیونې یا حلونه لاس ته راځي ددې لپاره دې بیلګه ورکړ شي.

---

بیلګه ۱۳ . ۲۱: $\sin(x-120°)/3=1/2$

د سبستیچیوشن یا بدلون $y=(x-120°)/3$ سره لاس ته راځي $\sin y=1/2$ د لاندې اوبیونې (حل) سره

$$y_k = 30° + k.360° , k = ...,-3,-2,-1, 0,1,2,3...$$

$$\overline{y}_k = 150° + k.360°$$

ټول د $(x - 120°)3 = y_k$ , $(x - 120°)/3 = y_k$ اوبدونې (حلونهو په توګه لاس ته راځي:

$$x_k = 3y_k + 120 = 90°+3k.360°+120° = 210° + 3k.360°$$

$$\overline{x_k} = 3y_k + 120° = 450° + 3k . 360° + 120° = 570°+3k.360°$$

د ګونومتري فنکشنونو یو بل تیپ یا ډول ، له لاندې څخه لاس ته راځي

$$f(\sin x,\cos x,\tan x,\cot x,\sin 2x,\cos 2x,\tan 2x,\cot 2x,\ \sin 3x,\cos 3x,\tan 3x,\cot 3x, ....) \qquad (13 . 42)$$

دلته که د بیلګې په توګه بدل شي

$$y = \sin x \qquad (13 . 43)$$

د ۴ . ۵ برخی تریګونومتري فرمولونو په مرسته ټول په (۴۲ ، ۱۳ ) رامنځ ته شوي کونجفنکشنونه په $y$ سره افاده کولی شو:

$$\cos x = \pm\sqrt{1-\sin^2 x} = \pm\sqrt{1-y^2},$$

$$\tan x = \frac{\sin x}{\cos x} = \frac{y}{\pm\sqrt{1-y^2}}, \qquad \cot x = \frac{1}{\tan x} = \frac{\pm\sqrt{1-y^2}}{y}, \qquad (13.44)$$

$$\sin 2x = 2\sin x\cos x = \pm 2y\sqrt{1-y^2}, \quad \cos 2x = \cos^2 x - \sin^2 x = 1-2y^2 \quad (\text{usw.})$$

لهاى نور

له دې سره برابرون ( ۴۲ . ۱۳ )، په $y$ ، یو برابرون بدلیږي:

$$F(y) = 0 \qquad (13 , 45)$$

دا دې په همغه ډول حلیدونکي وي او حلونه دې $y1$ , $y2$ .$y3$.... وي. نو بیاد(۱۳.۴۳ )سره مناسب لرو

$$\sin x = y_i, i=1,2,3... \quad (13.46)$$

اوبی کړي او د ټولو اوبیونو سره، کوم چی په ( ۱۳ . ۴۲ ) کي ښول شي ، وازمایل شي، چی ایا دا هم پوره کوي، که نه په ( ۱۳ . ۴۲ ) کیدی د x په ځاي یوه افاده g(x) هم ولیکلی شي.

$$f(\sin g(x), \cos g(x), ....) = 0 \quad (13.47)$$

نو بیا سړی بدلوي

$$y = \sin g(x) \quad (13.48)$$

د پورته متود تشریح لپاره په لاندې ډول دوه ساده بیلګي ورکول کیږي

بیلګه ۱۳ . ۲۲:

برابرون

$$\sin x + \cos x = 1 \quad (13.49)$$

د ( ۱۳ . ۴۲ ) ، (۱۳ . ۴۴ ) سره ځان په رېښه ببرابرون بدلوي

$$y \pm \sqrt{1-y^2} = 1 \Leftrightarrow \pm \sqrt{1-y^2} = 1-y \Leftrightarrow 1-y^2 = 1 + y^2 - 2y \quad (13.50)$$

$$\Leftrightarrow 0 = 2y^2 - 2y = 2y(y-1)$$

$$y_1 = 0 , y_2 = 1 \quad (13.51)$$

اوس دې په یاد شي ، چی د y2=1 لپاره برابرون ( ۱۳ . ۵۰ ) او له دې سره سم برابرون ( ۱۳ . ۴۹ ) تل پوره دي. د دې په څنډ یا خلاف y1 فقط د ( ۱۳ .۵۰ ) حل دئ ، که د
رېښی له مخه زیاتیز یا مثبت نخښه وي. دا حالت یوائې هلته مخ ته پروت دئ، چی $\cos x>0$وي.

دا هلته هم پام ته راځي، که د برابرون ( ۱۳ . ۵۱ ) سره برابرون ( ۱۳ . ۴۶ )حل یا اوبی شي او
حل یا اوبونه یی په ( ۱۳ . ۴۹ ) کی کیښول شي:

$$\sin x = y_1 = 0 , x_k = k\pi ; k=...-3,-2,-1,0,1,2,3... \quad (13.52)$$

$$\sin x = y_2 = 1 , x_k = \pi/2 + 2k ; k = ..,-3,-2,-1,0,1,2,3,... \quad (13.53)$$

## ۱۵ فنکشنونه( بلواك يا تابع)

### ۱۵ . ۱ د فنکشن کلیمه او د فنکشن انځورونه:

غواړم چی ددې برخی په پیل کی دی کلیمي ته د لوستونکو پام راوګرځوم: د فنکشن کلیمه کله د یواځنی څیرونی، چی په هندسه کی خورا ډیره کارول کیږي یا استعمالیږي ، کله د تابع(بلواك) او بیا زیاته د فنکشن په نامه ځموږ په دې کار کی بلل شوې چی موږ ورسره تراوسه د تابع تر نامه لاندې هم بلد یو، ځما په اند یا فکر که دا موږ بلواك وبولو، نو هدفمند به مو نومولی وي. په لاندې کي به وګور چی خپلواکی او بلواکی ناپیوندونکی ځموږ د څیړلو متن جوړوی

پیژند ۱۵ . ۱:

د یوې ریېلی واریابلی رییل ارزښته فنکشن( لنډ: فنکشن ) د ریېلو ګنونو ډیری باندې ، د یوې ډیری $D \subseteq R$ یوه یواځنی څیرونه ده. D دپیژند ډیری نومیږي .
د ټولو ارزښتونو ډیرۍ چي y یی د ځان لپاره غوره کولی شي، که x د پیژنددیرۍ یا تعریف ډیري په دننه کی وځغلي، د ارزښت ډیری W بلل کیږي .
د ي وې قانونمندۍ f له مخی هرM $\in$ x یواځني یوه y $\in$ W باندې تنظیمیږي:

$$y = f(x)$$

اوس نو x خپلواك واریابل یا اووښتونی یا مجهوله بلل کیږي یا نومیږي او y بلواك واریابل یا اووښتونی بلل کیږي

د فنکشن مختلف انځورډولونو ترمنځ سړی توپیروي. د فنکشن »کلیمه انځورونه« یوه په خوله ویونکی یا یو اعلانونکی ، له ماتماتیکي یا شمیریز سومبولیك څخه تیریدونکی یا په شمیریز سومبولیك صرف نظر کوونکی، مګر ددې لپاره یو پیچلی، د تشریح شکل دی، چی په لاندې کي به ورسره بلد شو.

بیلګه ۱۵ . ۱ : هر رییل ګڼ د همغه رییلګڼ په نیم ور زیات ۱ باندې تنظیمیدل.

بیلګه ۱۵ . ۲ : هر یو منفي ګڼ به د هغه په مطلقه ارزښت او هر یو مثبت ګن او صفر به د هغه په مربع تنظیم شي.

د شمیرپو هی سومبولونو تر استعمال لاندې، تحلیلي ( شننیزه) انځورونه د بلواک یا فنکشن تشریح ده. دلته x اوy د نورو رییلو ګڼونو سره د بنسټیزو کارونو یا عملیو ، زیاتون، کمون ، ځل ، ویش ، او د بنسټیزو فنکشنونو له لارې تړل دي ( پرتله برخه ۱۵ . ۴)

بیلګی ۱۵ . ۱ ته: y=(x/2)+1, D=R , W=R

بیلګی ۱۵ . ۲ ته : د x<0 لپاره|y=|x
دلته D=R,W = [0,∞) د x>0 لپاره y=x²
پام دې وي چی په داسی حالت کي له کيڼ و ښي لور ته یا ګډوډلوستل کیږی یعنی داسی لولو: y د x مطلقه ارزښت سره مساوي دئ ، که چیرې x له 0 کوچنی وي. داسی لیکنو ته دې ګران لوستونکی پوره پام ولري او فکر کوم چی له اشتباه سره به نه مخامخ کیږو) . تحلیلي( شننیزه) انځورونه اکسپلیڅیت( واضح)روښانه و څرګند) explizitنومیږي، که د فنکشن برابرون ، لکه په بیلګو ۱۵ ، ۱ ۱و ۱۵ . ۲ چی په یوه د yپه لور حلکیدونکي فورم مخ ته پروت وي: y =f(x) که چیرې داسي نه وي نو د تحلیلي - یا شننیزې انځوروني شکل F(x,y)=0 دی او فنکشن ایمپلیڅیت ( ورسره ځای شوي یا وراسره تړلی implizit ) بلل کیږي یا نومیږي . د بیلګی په توګه به 2y-x-1=0 D=R,W=R,فنکشن د بیلګي ۱۵ . ۱ یو ایمپیلیڅیت انځورونه وی. دیوه فنکشن نه هره ایمپلیڅیت شننیزه بڼه ( ایمپلیڅیت تحلیلي فورم) کیدی شي په

اکسپلیڅیت شننیزه یا سپړنیزه بڼه (تحلیلي فورم) واړول شي. د بیلګی په توګه :
که $x+y+y^5-1=0$ وي، نو دا د y په لور اکسپلیڅیت حل کیدونکی نه دئ.

---

د یو فنکشن تحلیلي یا شننیزې انځورونی ځانګړې بڼه پارامتری څرګندونه ده. دلته تنظیم د یوه مرستندوي اووښتوني یا واریابلی t ، دا په نامه پارامتر، له لاري لارښودیږي. هر پارامتر ( له یوه پارامتر ساحی څخه)

$x = \varphi (t) \ , y = \Psi (t)$

په یو ارزښتجوړې x,y تنظیمیږي.

بیلګه ۱۵ . ۱ ته: x=2t ,y=t+1; -oe< t <oeبه یوه پارامتري انځورونه وی او x = t , y = t/2 + 1 به یوه بله پارامتري انځورونه وي.

زیات وخت فنکشنونه د جدول په څیر ورکول کیږي

بیلګي ۱۵ . ۱ته:

| X ....... | -2 | -1 | 0 | 1 | 2 .... |
|---|---|---|---|---|---|
| Y . ..... | 2 | 0,5 | 1 | 1,5 | 2 ..... |

بیلګي ۱۵ ، ۲ ته:

| X.... | -3 | 2 | -1 | 0 | 1 | 2 | 3 ... |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Y.... | 3 | 2 | 1 | 0 | 1 | 4 | 9 ... |

د فنکشن ګرافیکی انځورونه (د یوې ټوټې) په x,y- کواوردینات سیستم کی د یوې کرښې له لارې، د هغه فنکشن انځوروني څخه عبارت ده ، چی د واریابلو




Bild 15.1 ځاره
Bild 15.2 ځاره

یا اووښتونوجوړې د x,y - هواره یا سطحه کی یواځني او بواځني ټکي باندې تنظیمیږي . څیره ۱۵ . ۱ . او ۱۵ . ۲ ) بیلګي ۱۵ . ۲ته بیلګي ۱۵ . ۱ته

---

## ۱۵ . ۲ د فنکشنونو- یا بلواکو خویونه

پیژند ۱۵ . ۲: $y = f(x)$
په ایترووال ]a,b[ کی هلته او هلته یا تیك هلته مونوتون جګیدونکی
( مونوتون لویدونکی ) دی، چیرته چی ددوه په زړه پورې ارزښتونو
$x \in [a,b] \wedge y \in [a,b]$ لپاره د$x1<x2$ سره باور ولري:
$f(x1) \leq f(x2) \quad (f(x1)>f(x2))$
که د برابروننخښه باور ونه لري نو له کره یا کلکی مونوتوني غږیږو.

وبیلګي ۱۵ . ۱ ته: $y=(1/2)x+1$ په $D = R$ کی کلك مونوتون دئ

و بیلګي ۱۵ . ۲ ته: $y=|x|$ د $x<0$ لپاره
او $y= x^2$ د $x>0$ لپاره
په اینتروال ) [oe,0] کي مونوتون تیټېدونکی یا -لویدونکی
او په اینتروال [oe,0) کی مونوتون جګیدونکی دی

پیژند یا تعریف ۱۵ . ۳ :

په یوه اینتروال ] a,a-[ کی یو تعریف شوی فنکشن ( $y = f(x$ هلته او هلته جوړه (جفت ) یا سیومتریك symetrisch,( ناجوړه (طاق) یا نا- یا انتیسیومتریكantisymetrisch بلل کیږي چی باوري وي
$f(-x) = f(x) \quad (f(-x) = -f(x))$
د جوړه فنکشنونو ځیرې اکسیال یا محوري سیومتریك و y - محور ته ځغلي ) دلته هم ځیره شته ، نو تل به همغه څه لیکم؟ ۱۵ . ۳ ( ، طاق فنکشنونه و سرچینی ته منځني یا مرکزي سیومتریك ځغلي ) بیا هم ځیره او ۰۰۰۰ش ۱۵ . ۴ )

بیلګه ۱۵ . ۴
فنکشن $y= x^3 ,D= R$
یو ناجوړه یا طاق فنکشن دی :

$(-x^3) = -x^3$

بیلګه ۱۵ . ۳ :
فنکشن $y=x^2,D=R$
یو جوړه یا جفت فنکشن دئ:

$(-x)^2 = x^2$




د بیلګي ۱۵ . ۱ او ، ۱۵ . ۲ فنکشنونه نه جوړه یا جفت او نه ناجوړه یا طاق دي

پیژند ۱۵ . ۴:

$y = f(x)$ تیك هلته په D ( پیژندډیرۍ ده) بند یا رابند( محدود)بلل کیږي که
یو $k > 0$ داسی شته وي چي دا باور ولري :
$|f(x)| < k \quad \forall x \in D$

بیلګه ۱۵ . ۵:

| | |
|---|---|
|  | فنکشن $y = \sqrt{r^2 - x^2}$ , $D = [-r, r]$ بند یا راګیر( محدود)( زه به دا له دې وروسته بند وبولم) دی، ځکه چی لرو:نیم یوونګردی ځیره ده ش . ۱۵ . ۵ $f(x) = \sqrt{r^2 - x^2} \le r$ |

پیژند ۱۵ . ۵:
$y = f(x)$ پریودیکي( دوراني یا بیرته- یا تل بیرته راګرځیدونکی periodical بلل
کیږي د دوران یا راګرځیدونی p سره ، که باور ولري:
$f(x + p)= f(x)$
د دورانی یا تل راکځیدونکو (پریودیکي) فنکشنونو تیوپیکي بیلګي تریګونومتریکي
فنکشنونه دي ( پرتله برخه ۱۵ . ۳)

---

پیژند ۱۵ . ۶ :

ټول $x \in D$ د $f(x)=0$ سره، د فنکشن $f(x)$ صفر ځایونه بلل کیږي.

د فنکشن صفرځایونه د مساوات $f(x) = 0$ د حل له لارې پیدا کیږي. داحلونه د $x$- محور سره د فنکشن کرږ د غوڅټکو $x$ - ارزښتونه دي.

بیلګی ۱۵ . ۱ته:

د فنکشن $y = 1/2\ x + 1$ صفرځایونه د مساوات $x/2 + 1 = 0$ اوبی $x = -2$ دی
(ځیره ۱۵ . ۱ )

بیلګه. ۱۵ . ۶:

فنکشن $y = x^2 - 4$ دوه صفرځایونه لري:

$$x^2 - 4 = 0 \iff x1 = 2 ,\quad x2 = -2$$

فنکشن $y = x^2 + 4$ صفرځایونه نه لري. ) بیا هم ځیر ۱۵ . ۶ )




Bild 15.6 ځیره

---

پیژند ۱۵ . ۷:

$x \in D \quad , \quad y \in W \quad y = f(x),$

یویواځنی« یا یواځنی او یواځنی بلل کیږي، که هریو $y \in W$ د یوه $x \in D$ په واك کی وي یا هر یو $y \in W$ ته یوه $x \in D$ ځیره شوی وي، د کوم لپاره چی باور ولري: ( = y f(x)یو یویواځنی یایواځنی او یواځنی فنکشن په ځټکیدونکی دی ، دا په دې مانا چي دا یو فنکشن ( x = g(y تعریفوي، یعني په ځټ یا چپه فنکشن. که دلته د اووښتونو یا واریابلو د نخښی( نخونی) سره بدلی شي، نو د په ځټ فنکشن په توګه لرو $y=g(x)$ دا د فنکشن روځنی یا وسره بده یا که غواړی مروجه ځیره ده، چی x خپلواك اوyبلواك ، دلته د x په واك کی واریابل یامجهولی یا ناپیزندونکی دي د $y=f(x)$ په ځټ یا برعکس فنکشن لپاره داسی هم لیکلی شو: $y = f^{-1}(x)$

فنکشن $y = x$ د خپل په ځټ فنکشن سره کټمټ(- ورته ) identic دی۰ د په ځټ یا برعکس فنکشن $y = f^{-1}(x)$
کرافیکی ځیره $y = x$ په کرښه د $y = f(x)$( هندارونه) یعنی په هنداره کی ځیرونه او لنډ یی: هندارونه) ده۰

بیلګي ۱۵ ، ۱ ته :



Bild 15.7a ځایره



Bild 15.7b ځایره

د فنکشن $y = f(x) = x/2 + 1$ چپه یا په ځټ فنکشن داسی دی

---

$y = f^{-1}(x) = 2x - 2$

سړی $y = x/2 + 1$ د x په لور اوبی کوي: $x=2y-2$ او بالاخره x او y سره بدلوي .
(ځیره. ۱۵ ۷ الف)

بیلګي ۱۵ . ۳ ته : فنکشن
$x \in D$ $y = x^2$ ,
ځیرره ش ۱۵ . ۳ ) په ځتکیدونکی دي یا په ځتکیدونکی نه دی.
هر $y \in W$ =[0,oe] پورې دوه[-oe,oe] = $x \in D$ اړه لري، یعنی x=+yاو x=-y
مګر $y= x^2$کللك مونوتون جګیدونګی دی ( او په دې ډول یواځنی او یوائنی ).

د $x \geq 0$ لپاره او کلك مونوتون لویدونکی د $x < 0$ لپاره. $y=x^2,x\geq0$
ته چپه- یا په ځتې فنکشن $y=+ x$ دی، او $y = x^2 , x < 0$ ته چپه- یا په ځتې فنکشن $y = x$ -دی. ( ځیره ۱۵ . ۷ ب) .
په ټولیزه (عمومي) توګه لاندې جمله باور لري

جمله ۱۵ . ۱ :

که $y = f( x )$کللك مونوتون جګیدونکی ) لویدونکی ( وي ،نو په ځتې فنکشن
$y = f^{-1}( x)$ موجود دی او دا هم کلك مونوتون جګیدونکی (لویدونکی ) دی.

۱۵ . ۳ . بنسټیز فنکشنونه

په دې برخه کي بنسټیز فنکشنونه تعریفیږي. دا ټول راشنل فنکشنونه، مات راشنل فنکشنونه، پوتنځ یا په توان فنکشنونه، ایکسپوننشل فنکشنونه او لوګاریتم فنکشنونه، تریګونومتري فنکشنونه او ځیکلومتري فنکشنونه دي. دا بنسټیز فنکشنونه به د خپلوځانګړدوله خویونو له مخی وځیرل شي. په برخه ۱۵ . ۴ که به دفنکشن فنکشنونه (ځنځیری - یا تړلي فنکشنونه) وځیرل شي. د فنکشنونو ځیرل به د هغو ځانګړدوله یا کرکتریستیکي خویونو له مخی هلته هم دوام وومومي، که د دیفرنشل شمیرنی کومکي مواد مو مخ ته پراته وي ( برخه ۲۰ . ۴ )

پیژند ۱۵ . ۸ :

---

فنکشن

$$y=a_nx^n+a_{n-1}x^{n-1}+...+a^2x^2+a_1x+a_0, n\in N; a_i\in R, a_n\neq 0 \quad (15.1)$$

د ټولو $x \in R$ لپاره تعریف دی او n - مه درجه ټولریشنلفنکشن نومیږي.دې ډول فنکشنونو ته پولینوم فنکشنونه( یا لنډ : پولینوم) هم ویل کیږي

یو ساده ټول ریشنل - ۱ - امه درجه ( n = 1 ) یالاینی فنکشن په لاندې ډول دی:

$$y = mx + n \qquad (15.2)$$

دلته m او n په ( ۱۵ . ۱ ) کی پارامترونو a1 او a0 په مانا دي. د لاینی فنکشنونو ځیره(ګراف ) یوه کرښه ده چي په $y = n$ کی دy - محور غوځوي ( $x = 0$ ) او جګوالی $m = \tan\alpha$




Bild 15.8 ځیره

لري (ځیره پورته . ۱۵ . ۸ ) جګوالی د y - ارزښت د تغیر د x - ارزښت تغیر سره متناسب دی: $m = \Delta y / \Delta x = \frac{\Delta y}{\Delta x}$

کرښه جګیږي که $m > 0$ او لویږي یا ټیټیږي که $m < 0$ وي اوکه $m = 0$ وي، دx - محور سره غبرګه ځغلي . کرښه ،که $|m| = 0$ نیول شوی وي، ټیك یو صفرځاي ( y = 0 ) لري: $x_N = - n/m$

که را په غاړه شي چی د یوې کرښی برابرون، چی له دوه ټکو (x1,y1) او (x2,y2) تیریږي، پیدا کړو چي یو په بل نیغي نه وي ولاړې ، نو د هغو جګوالی m او د هغو پرنټکی

---

یا نوره ښه غږځتکی n په y - محور د برابرونسیستم

$$y1 = x1m + n , y2 = x2m + n$$

له مخی پیدا کوو او په دې توګه لاس ته راوړو

$$(y-y1)/(x-x1)=(y2-y1)/(x2-x1)$$

په بل پل)قدم( کی مونږ ۲ -امه درجه ټولریشنل فنکشنونه یا مربع فنکشنونه رامنځ ته کوو لکه په ( ۱۵ . ۱ ) کې $a_2 = a, a_1 = b, a_0 = c$

$$y=ax^2+bx+c , a \ |= 0 \qquad (15 .3)$$

د مربع فنکشنونو ځیره ) ګراف ( پارابول دی چی د هغي سیومتري محور و y - محور ته غبرګ ځغلي. کوایفیځینت) ځله وونی یا ځلیدونکی (a,b,c) د پارابول د ککرې ځاي او بڼه)فورم( ټاکی.

مونږ د مربع فنکشن یو څو ځانګړي حالتونه تر ځیړنې لاندې نیسو.

$$1. \quad y=x^2(a=1 ,b=0,c=0 ) \qquad ( 15 . 4 )$$

نورمال پارابول، د ککرې کواوردینات: $x_s = 0 , y_s = 0$

(خ . ۱۵ . ۹)

$$2. \ y=x^2+px+q \ (a=1 , b=p , c=q ) \qquad ( 15 . 5 )$$

او $x^2 + px$ ته د څلورئ - یا مربع تکمیلولو ورزیاتونی څخه لاس ته راځي:

$$y=x^2+px \ (p/2)^2+q-(p/2)^2=(x+p/2)^2+q-p^2/2 \quad (15,5)$$

یو و (نسبت) ( ۱۵ . ۴ ) ته (مخامخ) د x - لور په p/2 - اودy - لور په $q - p^2 /4$ راکښل ( راښکل-یا راکش -) شوی نورمال پارابول د ی ، دا په دې مانا چی په ( ۱۵ . ۵ ) راکښل شوی پارابول دا ککره لري:

$$x_s = -p/2 , y_s =q - p^2/4$$

بیلګه ۱۵ . ۷:

$$y=x^2+6x+10, xs=-6/2=-3,ys=10-6^2/2=1$$

(خ،۱۵ . ۹ )

---

3. $y = ax^2$ ( $a|=0, b=0, c = 0$ )

د ککرۍ ( سر یا رآس) کواوردینات . $x_s = 0$ , $y_s = 0$

پارابول د $1 > |a|$لپاره خور، د $|a|<1$ لپاره پرسیدلی،د $a > 0$ لپاره پورته لور ته او د $a < 0$لپاره کښته لورته واز دی ( خلاص دی)

بیلګه ۱۵ . ۸:

$y = 2x^2$ , $y = (1/2)x^2$, $y = -2x^2$

(خ . ۱۵ . ۱۰)

4. $y=ax^2+bx+c=a[x^2+(b/a)x+c/a]$

د ککرۍ (رأس) کواوردینات داسی دی ( لکه په ۱۵ . ۵ کی یی چی مخ ته تللي يو)

$$x_s = -b/2a; y_s = a[(c/a)-(b^2/4a^2)] = c - b^2/4a^2$$




بیلګه ۱۵ . ۹:

$y=-(1/2)x^2+x+4$ ,($a=-1/2$, $b=1$, $c=4$)

دککرۍ کواوردینات:

$$x_s = -1/(2.(1/2)) = 1, y_s = 4 - 12/(4.(-1/2)) = 9/2$$

دا چي $a = -1/2$ دی، نو پارابول پرسیدلی او لاندې لور ته واز دی ( ش ۱۵ . ۱۱ )

---




Bild 15.10 شکل




Bild 15.11 شکل

د فنکشن y=ax²+bx+c د صفرځایونه د برابرون ax²+bx+c=0 اوبیونې دي.
وبیلګي ۱۵ . ۹ ته (خ. ۱۵ . ۱) :
صفر ځایونه له دې لاس ته راځي : –(1/2)x²+x+4=0 ، چې دلته $x_1 = 4, x_2 = -2$ دي.

و بیلګي ۱۵ . ۷ (څیره ۱۵ . ۹ ) ته :
د x²+6x+10=0 یاني $x_{1,2} = -3 \pm \sqrt{9-10} = -3 \pm \sqrt{-1} = -3 \pm i$ څخه لاس ته
راځي چې برابرون رییل صفرځایونه نه لري .

فنکشن y = x² غبرګ یا جوړه( ډبل) صفرځایونه لري یاني $x_{1,2} = 0$ دي
د ټولریشنل فنکشن دریمو او لوړو درجو لپاره به د بیلګي په توګه دټولریشنلفنکشنونو
بیلګي له مخې، دریمه درجه ټولریشنل فنکشن راوړو
چې د فنکشن ارزښت شمیرلو یو ځانګړی لیدوړ فورم دی، د هورنرشیما(بنه) Horne
rschema، معرفي شي. ددې لپاره به د( ۱۵ . ۶ ) فورم بدل شي.

$$x_{4,5} = -1 \pm \sqrt{1-5} = -1 \pm 2i$$

$$y = [a_3x^2 + a_2x + a_1]x + a_0 = [(a_3x + a_2)x + a_1)x + a_0$$

---

هغه ورکړ شوي خپلواك $x_1$ پورې اړوند فنکشن ارزښت $y_1 = f(x_1)$ کيدی شي له دې بڼې سره په لاندې ډول وشميرل شي:
a3 له x1 سره ځل کيږي، دې سره a2 زياتيږي، زياتون يې له x1 سره ځل، او a1 ور زياتوو، زياتون د x1 سره ځل او a0 ور زياتوو. دا د عمليوپرلپسی په لاندې ډول د لاندې شيما (د هورنرشيما) له لارې په ليدوړ ډول مخ ته بيايو (ځرکندوو)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ځلونه يا ضريبونه | $a_0$ | $a_1$ | $a_2$ | |
| منځنی ځلونه | $[(a_3x_1+a_2)x_1+a_1]x_1$ | $(a_3x_1+a_2)x_1$ | $a_3x_1$ | |
| منځنی زياتون | $[(a_3x_1+a_2)x_1+a_1]x_1+a_0 = f(x_1)$ | $(a_3x_1+a_2)x_1+a_1$ | $a_3x_1+a_2$ | $a_3$ |

ددې شيما پوهيدل لږ نابلد دی او څه فکر غواړي، خو پرې پوهيدل له نورو مساواتو څخه روښان دی.

بيلګه ۱۵ . ۱۰ : د فنکشن $y=x^3-3x^2-14x-5$ لپاره دفنکشن ارزښتونه له لاندې خپلواکو $x1 = -2$ او $x2 = 5$ څخه شميرل کيږي.
يادونه: دا د هورنر شيمت زما په دې اوسنی د برينکمن ژباړه کې مفصل شته(ژباړی). اوبيونه ) :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | 1 | -2 | -14 | - 5 |
| $x_1 = -2$ | | -2 | 8 | 12 |
| | 1 | -4 | -6 | 7 = f(-2) |
| $x_2 = 5$ | | 5 | 15 | 5 |
| | 1 | 3 | 1 | 0=f(5) |

لرو $f(-2) = 7$ او $f(5) = 0$ (صفرځايونه)

---
که چرې ددریمی درجی ریشنلفنکشن یو صفرځاي ولري، نو کړی شو چی د پولینوم ویش له لارې دا لاینې فاکتور بیل کړو( پرتله ۱۲ - امه برخه، جمله ۱۲ . ۴ )

بیلګي ۱۵ . ۱۰ ته: $(x^3-2x-14x-5):(x-5)=x^2+3x+1$ له دې امله لرو:

$$y = x^3-2x^2-5 = (x^2+3x+1)(x-5)$$

د ویش پولینومونو ځلووني ، یعنی 1 د($x^2$) سره ، 3 د ( x ) سره او 1 د هورنرشیما په اخره لیکه کی ولاړ دی. د هورنرشیما له لاری د صفرځاي شمیرلو سره په همغه وخت یا دمګړۍ کی د پولینوم ویش صورت نیسي. لرو:

$$[a_3x^3+a_2x^2+a_1x+a_0):(x-x_1)=a_3x^2+(a_3x_1+a_2)x+[(a_2x_1+a_1)x_1+a_1]$$

او0 = ( x1 ) f چی د $(x-x_1)$ سره د ځلونې له لارې دا تصدیقیدلی شي. پاتی صفر ځایونه د څلورۍ – یا مربع برابرنی د اوبیونې له لارې لاس ته راځي

$$x^2+3x+1=0; x_{2,3}=-\frac{3}{2}\pm\sqrt{\frac{9}{4}-1}=-(3\pm\sqrt{5})/2$$

په دې ډول د دریمی درجي فنکشن د درې لاینې فنکشنونو د ځلونې په څیر لیکل کیدی شي ( پرتله: برخه ۱۲ جمله ۱۲ . ۵)

$$y=x^3-2x^2-14x-5=(x-5)[x-\frac{-3+\sqrt{5}}{2}][x-\frac{-3-\sqrt{5}}{2}]$$

د جملی۱۲ . ۵ وینا په عمومي توګه د ټولوn- م درجو ریشنل فنکشنونولپاره لاندېجمله باور ي کوي

جمله ۱۵ . ۲ :

هر n - م درجه ټول ریشنلفنکشن n صفرځایونه لري . کیدي شي دا ټول یو له بل توپیر ولري او یادا صفرځایونه څوځله هم رامنځ ته شي، رییل او یا جوړه کونجوګیري کملکس کیدی شي.

که $x_1, x_2, ,..., x_n$ دلاندې فنکشن n صفر ځایونه وي

$$a_nx^n+a_{n-1}x^{n-1}+...+a_1x+a_0$$

---

نو دا د لاینیز فاکتورونو د ځلونې په څیر په لاندې ډول لیکل کیدی شي:

$$y=(x-x_1)(x-x_2)...(x-x_n)a_n$$

د هورنرشیما په استعمال کی دې لاندې په پام کی ونیول شي:
که په یوه n - م درجه پولینوم کی یو x - پوتنځ نه وي ، نو د هغه د کوایفیڅینت یا ځله وونې لپاره دې صفر ولیکل شي .

بیلګه ۱۵ . ۱۱ :
5 - مه درجه ټول ریشنلفنکشن $y=2x^5-6x^3-20x^2-8x+80$ درې صفرځایونه
$x_1=x_2=2, x_3=-2$
لري. نور صفرځایونه دې پیداکړی شي او فنکشن دې د لاینیزو فاکتورونو د ځلونې په څیر ولیکل شي.

ځواب : د هورن جملی له لارې یو په بل پسی د پولینوم ویش یو پاتی 2 - مه درجه پولینوم لاس ته راکوي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | 2 | 0 | -6 | -20 | -8 | 80 |
| $x_1$ = 2 | | 4 | 8 | 4 | -32 | -80 |
| | 2 | 4 | 5 | -1 | -40 | 0 = f(0 |
| $x_2$ = 2 | | 4 | 16 | 36 | 40 | .... |
| | 2 | 8 | 18 | 20 | 0=f(2) | |
| $x_3$ = -2 | | -4 | -8 | -20 | | |
| | 2 | 4 | 10 | 0=f(-2) | | |

دا پاتی پولینوم $(2\ x^2+4x+10 = 2(x^2+2x+5$ د $x^2+2x+5 = 0$ له امله
د $x_{4,5} = -1\pm\sqrt{1-5} = -1\pm 2i$

لپاره لاندې د ځل فورم لري- $2x^2+4x+10 = 2(x+1-2i)(x+1+2i)$

په دې ډول ورکړشوی پولینوم په لاندې ډول لیکل کیږي

$$y=2(x-2)^2(x+2)(x+1-2i)(x+1+2i)$$

-----------------------------------------------------------------------------

ددې لپاره چی د دریمي او جګو درجو د ټول ریشنلفنکشنونو یوه څیره یا تصویر ولرودی شو، نور کرکتریستیکی یا د خویونو ټکی یی د دیفرنځیالشمیرنې له لارې لاسته راوستی شو( برخه ۲۰ . ۴)

بې له دې چی د دفیرنځیالشمیر له مرستي کار واخلو ، کیدی شي چی د هغه د ناپای په هکله وینا وي وکړی شو. موږ په لیدیدونکی ډول د فنکشن د پولی کلیمه په کار اچوو، کومه به چی په برخه ۱۹ کی ټیك تعریف شي. دا د بیلګي په توګه دا مانا لري چی f(x) = g $\lim_{x\to\infty}$ سره ( f(x) تل ارزښت g ته نزدې کیږي، که x د oe یانې ناپای په لور لاړشي. د

( ۱۵ . ۱ ) لپاره باورلري:

$$\lim_{x\to\pm\infty} y = \lim_{x\to\pm\infty} x^n . \lim_{x\to\pm\infty}[a_n + \frac{a_{n-1}}{x} + ... + \frac{a_1}{x^{n-1}} + \frac{a_0}{x^n}] = a_n \lim_{x\to\pm\infty} x^n$$

دا چی

xn -> oe

د x -> ± oe لپاره که n جوړه (جفت) وي

او xn ->±oe د x ->±oe لپاره که n ناجوړه (طاق) وي، او له دې لاس ته راځي

که n جوړه او $a_n$ زیاتیز یا مثبت وي، نو لرو $\lim_{x\to\infty} y = \infty; \lim_{x\to-\infty} y = \infty$

(کږه له oe - څخه دoe په لور ځي) .

که n جوړه او $a_n$ کمیز یا منفي وي، نو لرو: $\lim_{x\to\infty} y = -\infty; \lim_{x\to-\infty} y = -\infty$

کږه د oe - څخه د oe - په لور ځي) .

که n ناجوړه او $a_n$ کمیز یا مثبت وي ، نو لرو: $\lim_{x\to\infty} y = \infty; \lim_{x\to-\infty} y = -\infty$

کږه له oe - څخه د oe په لور ځي)

کهن n ناجوړه او $a_n$ کمیز وي ، نو لرو: $\lim_{x\to\infty} y = -\infty; \lim_{x\to-\infty} y = \infty$

کږه لهoe څخه د oe - په لور ځي)

---

پيژند ۱۵ . ۹ :
فنکشن

$$y=\frac{P_n(x)}{Q_m(x)}=\frac{a_nx^n+a_{n-1}x^{n-1}+...+a_1x+a_0}{b_mx^m+b_{m-1}x^{m-1}+...+b_1x+b_0};..........(15,7)$$
$$n,m\in N_0;a_k,b_i\in R;Q_m\neq 0$$

مات ريشنلفنکشن بلل کيږي او د ټولو x د $Q_m(x)\neq 0$ لپاره تعريف دی.

فنکشن ( ۱۵ . ۷ ) اصلي مات نوميږي، که n<m وي او نااصلي مات دی
که n ≥ m ۰ نااصل مات فنکشن کيدی شي چي د پولينوم ويش له لارې تجزيه
( ټوټه ) شي او د يوه ټول ريشنلفنکشن او يوه ريښتونی ماتی برخی د زياتون په څير
وليکل شي.

بيلګه ۱۵ . ۱۲:

فنکشن $y=\frac{2x^4-3x^3-6x^2+13x-6}{x^3-4x}$ اصل مات نه دی(n =4,m=3) په ماتلاندې
فنکشن باندې دماتباندې فنکشن ويش څخه لاس ته راځي:
$(2x^4-3x^3-6x^2+13x-6):(x^3-4x)=2x-3$

د $2x^2+x-6$پاتی ( باقي) سره. پس لرو:
$y=2x-3+(2x^2+x-6)/(x^3-4x).$

فنکشن ( ۱۵ . ۷ ) د $x = x0$ لپاره يو صفرځاي لري، که $x = x0$وي نو باور لري:
$P_n(x_0)=0$ مګر $Q_m(x)\neq 0$

دا د $x = x_L$لپاره تشځاي (Lücke) لري،که وي: $P_n(x_0)=0$ او $Q_m(x)=0$
د $x = x_P$لپاره يو قطب pol لري که وي: $P_n(x_P)\neq 0$ مګر $Q_m(x_P)=0$

بيلګه ۱۵ . ۱۳ :

---

فنکشن ( $y=(2x^2+x-6)/(x^3-4x$ د ماتباندي- او ماتلاندي فکشنونو ټوټي کولو وروسته په لاندې فورم د لايني فاکتورونوپه توګه ليکل کيږي.

$$y = \frac{2(x-\frac{3}{2})(x+2)}{x(x+2)(x-2)}$$

د $x = x_0 = 3/2$ لپاره ماتباندې صفر دی، مګر مات لاندې صفر نه دی ( صفرځای)مات لاندي- او مات باندې فنکشنونه د $x = xL = -2$ لپاره صفر دې ( تشځای )
د $x = x_{P1} = 0$ او $x = x_{P2} = 0$ لپاره ماتلاندې صفر او مات باندې صفر نه دی ( قطب)
که x سره د قطب ځاي ته نزدې شي، نو y د ناپای په لور ځي چی د قطبځای ( ټيك ناپای ځای بللکيږي) xpکی کړه داسيمپتوتي کرښي $x = xP$ ته نزدې کيږي .د يوه تشځای xL په حالت کی ماتفنکشن د نامعلومی افادې 0 / 0 شکل غوره کوي، له دې
امله د $x = xL$ لپاره تعريف نه دی.

په ناپای کی د فنکشن ځان نيونی ته:

د اصل ماتفنکشن ( $n<m$ ) د x په جګ پوتنځ يعنی $x^m$ د ماتباندې او ماتلاندې د ويش څخه لاس ته راځی:

$$y = \frac{\frac{a_n}{x^{-n+m}} + \frac{a_{n-1}}{x^{-n+1+m}} + \ldots + \frac{a_1}{x^{-1+m}} + \frac{a_0}{x^m}}{b_m + \frac{b_{m-1}}{x} + \ldots + \frac{b_1}{x^{m-1}} + \frac{b_0}{x^m}} = \lim_{x\to\pm\infty} \frac{0}{b_m} = 0$$

داچی د x ټول اکسپوننتونه مثبت دي، او د x ټول پوتنځونه د ناپای په لور ځي ، نو د آصل مات فنکشن څيره د x->±oe لپاره د x - محور ته نزدې کيږي. فنکشنونه

چی آصل مات نه وي نو د x->±oe لپاره داسی ځانونه نيسي، چی اصل د ماتفنکشن برخه يی د صفر په لور ځي، لکه ټولريشنل برخه .
د نااصل مات فنکشن څيره د x -> ±oe سره ، ځان خپل ټولريشنلبرخی ته نزدې کوي.

بيلګه ۱۵ . ۱۴:

---

الف: $y = x/(x^2+1)$ د $x0 = 0$ په ځاي کی صفرځای لري. تشځاي او پول یا قطب نه لري ربیل اوبیونه نه لري) او د $x \to \pm oe$ لپاره د x- محور ( $y = 0$ ) د اسیمپتوتی په څیر لري ( څیره. ۱۵ . ۱۲ )

ب: $y=(x^2+2x-3)/(x+2)=x-3/(x+2)$ صفرځایونه( $x^2+2x-3=0$ ) په $x1=-3$ او $x1=1$ کی لري . تشځای نه لري او په $x3=-2$ کی قطب لري دا په دې مانا چی $x=-2$ اسیمپتوتی دی، او د $x \to \pm oe$ لپاره فنکشن $y = x$ اسیمپتوتي کیږي)دا سیمپتوتی کلیمه دې په برخه ۱۶ . ۴ کی هم وکتل شي )

موږ په دې پسی ځانله شوي ځانګړي ټول - یا مات ریشنلفنکشنونه راوړو:
فنکشن

$$y = x^n; n \in Z \setminus \{0,1\} \quad (15,8_a)$$

یو ځانګړی پوتنځفنکشن دی( د پوتنځ پیژند 6 ۰ ۱ )

( 15.8)د زیاتیززیاتیز یا مثبت تولګې n لپاره یو تولرشنل فنکشن دی. د جوړه تولګې nلپاره تولریشنل فنکشن دی. د تولګې n لپاره تولی کرې د تعریف دیری( - ) = D oe,oe، د ارزښت دیری( W=(0,oe او ګډ ټکی (1,1 )، ( 0,0 ),(1,1 ) لري. (څیره ۱٤ الف ۱۵ ) د ناجوړه ګې د n لپاره( D = (-oe,oe
او( W = ( -oe,oe دي او ( 1-,1-) , (0,0 ). ( 1,1) ګډ ټکي دي ( څیره ۱۵ . ۱۴ ب)۰




Bild 15.12






Bild 15.13




Bild 15.14a






Bild 15.14b



(۱۵ ، ۸ الف) د ټول کمیز یا منفي ګڼ nلپاره یو مات ریشنل فنکشن دئ په x = 0 کی د یوه قطب او y = 0 کی یوې اسیمپټوتی په څیر. د جوړه ګڼون یا تعداد ( کمیز n لپاره ټولی کرې د پیژند ډیري

D = ( -oe,oe)\{0} د ارزښت ډیري( W = (0,oe لري اوګډټکي (1,1), (-1,1)

؟؟؟ څیره ش. ۱۵,۱۵الف) .

د ناجوړه ګڼون ( کمیز n)لپاره{ D = (-oe,oe)\{0 او( W=(-oe,oe او(1-،1-) ( 1,1 ) ګډ ټکی دی ( څیره »۱۵ . ۱۵ ب) .

دوه څیرې دي



Bild 15.15a



Bild 15.15b

د پوتنځ فنکشن پر ښت بلواک لپاره دې د مونوتوني اینتروال په پام کی ونیول شي.( پرتله بیلګه( بیلګه ۱۵ .۳)
د فنکشن) لوستل له کېڼ وښي لور ته

$$y = x^n; n \in N^*\{1\}, D = [0,\infty), W = [0,\infty)$$

چپه- یا پر ښت فنکشن په لاندې ډول دی.

$$y = \sqrt[n]{x}\ , n \in N \setminus \{1\}\ , D = [0,\infty), W = [0,\infty) ............... (15,8_b)$$

او رینه فنکشن نومیږي (پیژند ۶ . ۲ دې وکتل شي) پوتنځ فنکشن کیدی شي و ریشنل ایکسپوننت ته پراخه شي ) دلته لرو $\sqrt[n]{x} = x^{\frac{1}{n}} (\sqrt[n]{x})^m = x^{\frac{n}{m}}$ (پرتله برخه ۴)

که پوتنځ فنکشنونه د ریشنل فنکشنونو لپاره راوړل شي:

$$y = x^n\ , a \in Q\ , x > 0 \qquad (15.8c)$$

نو د ریښي فنکشن ( ۱۵ . ۸ ب ) دې د پوتنځ فنکشن په څیر وپوهیدی شي.

د پوتنځ فنکشن ( ۱۵ . ۸ ث) پرښت بیرته پوتنځ فنکشن دی.
ټولیز پوتنځ فنکشن پیژند د ریيل ایکسپوننت لپاره ورکړ شوی( د ریيلګڼونو کلیمه دې وکتل شي برخه ۳ ۰ ۱ . ۴ کی)

پیژند ۱۵ . ۱۰ : فنکشن

$$y = x^\alpha \quad , \quad \alpha \in R\ , x > 0 \qquad (15.8d)$$

پوتنځ فنکشن نومیږي

بیلګه ۱۵ . ۱۵ : فنکشن

$y = x^{\frac{3}{2}} = \sqrt{x^3}, x \geq 0$

$y = x^{\frac{2}{3}} = \sqrt[3]{x^2}, x \geq 0$ لاندې چپه - یا پر ښت فنکشن لرو




ب)

(څیره ۱۵ . ۱۶ الف )

فنکشن لاندې چپه فنکشن لري: $y = x^{-1/2} = 1/\sqrt{x}, x > 0$
څیره ۱۵ . ۱۶ ب)
$y = x^{-2} = 1/x^2, x > 0$

یادونه : په پیژند ٤ . ۲ کی مو وویل چی یوائی د ناکمیز رادیکاندو ریښه ویستل کیدو اجازه لرو. دا کړنلار دې د پرښت فنکشن جوړولو برسیره د مونوتوني غوښتلو لپاره هم په
پام کی وي. د بیلګي په توګه فنکشن
$y=x^3$ په ټول تعریفدیري کي مونوتون پورته کیدونکی وی او له دې امله ټول په ښت کیدونکی وی، $y = \sqrt[3]{x}$ د فنکشن $y = x^3$ په پیژنددیری( $D = [0,oe$ کی پر ښت فنکشن دی، په داسی حال کی، چی د$y= x^3$ پرښت فنکشن د[ $D= (-oe,0$
سره په $y = -\sqrt[3]{-x} = -\sqrt[3]{|x|}$ فنکشن کی ورکړ شوی دی( ش. ۱۵ . ۱۷) ۰

پیژند ۱۵ . ۱۱: فنکشن
$y=a^x, a > 0, a \neq 1$..................................(15,9)

---

ایکسپوننشلفنکشن یا په جګ( لنډ »جګ«) بلواك بلل کیږي۰
( د ایکسپوننت یا »جګ« کلیمی لپاره دی پېژند ۴ . ۱ وکتل شي)




Bild 15.16b




Bild 15.17

پورته دوه څیرې دې پام کې ونیول شي

فنکشن ( ۱۵ . ۹ ) لاندې پېژنددیری( D=(-oe,oe او ارزښتدیری( W=(o,oe لري. د $a^0 = 1$ له امله ټکی( 0,1 () د ټولو کږو ګډ ټکی دی

<table>
<tr>
<td>




Bild 15.18

</td>
<td>

د a>0 لپاره ( ۱۵ . ۹ )
په کلکه یو غږیز- یا مونوتونجګیدونګی دئ اود x->oe سره د x - محور ته اسیمپوتیك ورنزدې کیږي .د 0<a<1 لپاره ) ۱۵ . ۹ ( په کلکه مونوتون لویږي او ځان د oe -> x سره د x -محور ته اسیمپتوتیك نزدې کوي .

د اکسپوننشل فنکشنونو یو څو بیلګې (a=2; e ; 10 ; 1 /2 ; 1/e ; 1/10 ) په څیره ۱۵ . ۱۸ کی انځور شوي

</td>
</tr>
</table>

پیژند ۱۵ . ۱۲ :

---

لاندې فنکشن د ایکسپوننشل فنکشن په څېر فنکشن دی

$$y = \log_a x \, , \, a > 0 \, , \, a \mid= 1 \qquad (15.10)$$

او لوګاریتم فنکشن بلل کیږي

د لوګاریتم کلیمي لپاره پیژند ۵ . ۱ وګورئ) فنکشن ( ۱۵ . ۱۰ ) پیژنددیرئ $D = (0.oe\ \ )$ او د ارزښتدیرئ( $W=(-oe,oe\ \ )$ لري.

د $y = \log_a x$ کږې د ګرو $y=a^x$ هندارونه ده، په کرښه $y=x$ ۰ ټکی$(1,0)$ د ټولوکږو ګډ ټکی دی ( څیره شته دی)




Bild 15.19 څېره

د $a>1$لپاره( ۱۵ . ۱۰ ) کلك مونوتونجګیدونکی اود $x->0$لپاره اسیومپتوتیك د کمیز y - محور ته نزدې کیږي. د $0< a<1$لپاره ( ۱۵ . ۱۰ ) کلك مونوتون لویدونکی دی او د $x> 0$لپاره اسیمپتوتیك د زیاتیز y - محور ته نږې کیږي. په شکل ۱۵ . ۱۹ کی $y=a^x$ او په څېر یی یعني $y = \log_a x$

د $a= 2$ او $a=1/2$ لپاره انځوریږي .

په ځانګړې توګه لیکل کیږي $y = \log_{10} x = \lg x \, , \, y = \log_e x = \ln x$ ۰

پیژند ۱۵ . ۱۳:

د تریګونومتري فنکشنونو یا د کونجفنکشنونو لاندې( پرتله برخه ۶ . ۳ ) دا
لاندني فنکشنونه په نخښه کیږي یا راوړل کیږي.

$$y=\sin x\ ;D=R,W=[1,1]\ldots\ldots(15,11_a)$$

$$y=\cos x; D=R, W=[-1,1]\ldots\ldots(15,11_b)$$

$$y=\tan x=\sin x/\cos x; D=R\setminus\{\frac{\pi}{2}+k\pi\}, W=R, k\in Z\ldots(15,11_c)$$

$$y=\cot x=\cos x/\sin x; D=R\setminus\{k\pi\}, W=R, k\in Z\ldots\ldots(15,11_d)$$

د دې کرۍوتګلار په ش. ۱۵ .۲۰الف او ۱۵ . ۲۰ ب کی انځور شوی.




تریګونومتریکی فنکشنونه $y = \sin x, y = \tan x , y = \cot x$ ناجوړه فنکشنونه،
او $y = \cos x$ یو جوړه فنکشن یا – بلواک دی.

تریګونومتریکي فنکشنونه پریودیکي فنکشنونه دي( مقایسه ۱۵ . ۵)
فنکشنونه $y=\sin x , y= \cos x$ پریودې $2\pi$ لري، دا په دې مانا چی لرو:

$$\sin (x+2k\pi) = \sin x ; \cos(x+2k\pi)= \cos x , k\in Z$$

لاندې فنکشنونه پریود $\pi$ لري
$y=\tan x , y=\cot x$ .دا په دې مانا چي

$$\tan ( x + k\pi) = \tan x,\ \cot ( x + k\pi) = \cot x , k\in Z$$

د تریګونومتریکي فنکشنونو صفرځایونه دي $x_k= k\pi, k\in Z$

د $y=\sin x$ ,$y=\tan x$ $x_k=\frac{\pi}{2}+k\pi$ , $k\in Z$ لپاره او د $y = \cos x$ , $y = \cot x$
لپاره تانجنت ـ او کوتنجنت فنکشنونه قطب ځایونه(ناپاځایونه ) لري یعني $y = \tan x$
په $x_k=\frac{\pi}{2}+k\pi$ , $k \in Z$ او $y = \cot x$ په $x_k= k\pi$ , $k \in Z$ کی.

د تریګونومتریکی فنکشنونو لپاره دې د هغو مونوتوني خویونه په پام کی ونیول شي. د
بیلګي په توګه




Bild 15.20b

فنکشن y = sin x په ایتروال $[-\frac{\pi}{2},\frac{\pi}{2}]$ کي مونوتون جګیدونکی دئ او په انتروال $[\frac{\pi}{2},\frac{3\pi}{2}]$ کی مونوتون لویدونکی، او دا مونوتوني خویونه په یوه پوره پریودې کی تکراریږي. پس ویلی شو:

د $[-\frac{\pi}{2},\frac{\pi}{2}]$ لپاره y = sin x جګیدونکی یا پورته کیدونکی دئ

د $\frac{\pi}{2}+2k\pi \le x \le \frac{3\pi}{2}+2k\pi$ لپاره لویدونکی دئ، او په ورته توګه

د $-\pi+2k\pi \le x \le 0+2k\pi$ لپاره y = cos x پورته کیدونکی دی٠

د $0+2k\pi \le x \le \pi+2k\pi$ لپاره لویدونکی دئ

د $-\frac{\pi}{2}+2k\pi \le x \le \frac{\pi}{2}+2k\pi$ لپاره y = tan x جګیدونګی دئ

د $0+k\pi < x < \pi+k\pi; k \in Z$ لپاره y =cot x جګیدونکی دی ،

په تنجنت - او کوتنجنت فنکشنونو کی د قطب ځایونه د مونوتوني اینتروالونو ترمنځ پراته دي، له دې امله دا مونوتوني ایتروالونه واز اینتروالونه دي.د ساین فنکشنونه د بیلګي په توګه د وخت په پریودیکي انځور کی خپل استعمال مومي Schwingung (شوینګونګ: رپیدنه=. په عمومي ډول دلته خپلواك واریابل په t نخښه کیږي .فنکشن

-------------------------------------------------------------------------------

$$y = a \sin(\omega t + \varphi) \qquad (15 . 11e)$$

هارموني فنکشن بلل کيږي.

يادونه: فنکشن ( ۱۵ . ۱۱ت) د پيژند ( ۱۵ . ۱۵ ) له مخی تړلی یا ځنځيري فنکشن دی.
موږ ترڅيرني لاندې نيسو چې د سا ين فنکشن د مخه فاکتور a فاکتور د خپلواك واريابل
t او زياتوونکی د ساين فنکشن په خپلواك )Argoment( د کږېڅيره باندې څه تاسير
اچوي.

۱ - د فاکتور a تاثير په فنکشن $y = a . \sin t$ د $y = \sin t$ فنکشن ارزښت باندې غزول
يا راکشول دی که ( $|a| > 1$ )او يا پړسول دي که
$|a| < 1$)وي $y= a.\sin x$ فنکشن ارزښت a - ځله د فنکشن ارزښت
$y = \sin t$ دی، چيرته چی برسيره پردې د $0 > a$ لپاره په t - محور يوه
اينه څيرونه هم منځ ته راولي ( څره ش. ۱۵ ۲۱ الف .) $(a = 2 , a = 1 / 2)$
په فنکشن کی a امپليتودې Amplitude(جګوالی( نوميږي او د
شوينګنګ Schwingungرپيدنی پراخوالی يا ښه : سور باندې تاثير اچوي.
څيره شته



Bild 15.21

۲ - په فنکشن $y = \sin\omega t$ کی فاکتور $\omega$ په فنکشن $y = \sin t$ باندې يو وختني غزول که
$|\omega|<1$ يا پړسول که$|\omega|>1$ وي تاثير اچوي.چيرته چی د $\omega < 0$ لپاره برسيره پردې يو
په y- محور اينونه هم ده.
د يوه ټاکلي خپلواك $t = t_0$ لپاره په فنکشن $y = \sin\omega t$ يوه فنکشن ارزښت، $y = \sin t$ د
خپلواك $\omega$ -ځله ، يعني $t = \omega t_0$ لپاره غوره کوي ( څيره ؟؟ ش . ۱۵ . ۲۱ ب ).
ګردی فرکونځ ( Kreisfrequenz) بلل کيږي، دا په پريودې تاثير اچوي او $y = \omega t$
پريودې $P = \dfrac{2\pi}{\omega}$ لري.




۳ – زیاتیدونکی $\varphi$ په فنکشن $y = \sin(t+\varphi)$ کی د $y = \sin t$ باندې دیوې راکښنی تاثیر په $|\varphi|$ له کینی لور $\varphi$>0او یا له ښي لور $\varphi$<0اچوي .
د یوه ټاکلي خپلواك $t = t0$ لپاره د فنکشن $y = \sin(t+\varphi)$ سره یو فنکشن ارزښت، چی د $y=\sin t$لپاره۰
د $\varphi$ په کچه راکښل شوی ( یعنی د یوه ځاي څخه بل ځای ته وړل شوی ) وي،
یعني د$t = t_0+\varphi$ لپاره، غوره کوي.(څېره ، ۱۵ . ۲۱ پ)

$$(\varphi = \frac{\pi}{2}, \varphi=-\frac{\pi}{2})$$

په فنکشن

$$y = a.\sin(\omega t +\varphi)= a . \sin\omega ( t+\frac{\varphi}{\omega})$$

کی $\varphi$ چی فازې نومیږي یو د راکښلو تاثیر په کږه $y = a.\sin\omega t$

د $\frac{\varphi}{\omega}$ په اندازه اچوي.



---

په پورته شکل ۱۵ .۲۱ ت کی هارموني فنکشن $y = 2 . \sin ( 3t+\frac{\pi}{2})$ انځوردی. هغه

امپليتود a = 2 لري، پريوډې يی $P=\frac{2\pi}{\omega}=\frac{2}{3}\pi$ او په $\frac{\varphi}{\omega}=\frac{\pi}{6}$ کې

د sint و کيڼ لورته راکښل شوی دی.

ځېره ۱۵ . ۲ پ $\varphi=\frac{\pi}{2}, \varphi=-\frac{\pi}{2}$

د تريګونومتري فنکشنونو( يواځني) په معکوسوالي يا په ځتوالي کی مور په ځانګړو يوغږيزو يا مونوتوني اينتروالونو تکيه کوو، د لاندې تعريف سره مناسب

پيژند .۱۵ ۰ ۱۴ :

( پام: ځيرې له تشريح د مخه راغلې، بله لار نه وه)







Bild 15.22 Bild 15.23







Bild 15.24 Bild 15.25

د لاندې فنکشنونو

---

1. $y = \sin x$, $D = \left[-\frac{\pi}{2}, \frac{\pi}{2}\right]$, $W = [-1, 1]$ (15.12a)
2. $y = \cos x$, $D = [0, \pi]$, $W = [-1, 1]$ (15.12b)
3. $y = \tan x$, $D = \left(-\frac{\pi}{2}, \frac{\pi}{2}\right)$, $W = \mathbf{R}$ (15.12c)
4. $y = \cot x$, $D = (0, \pi)$, $W = \mathbf{R}$ (15.12d)

پرخښ یا چپه فنکشنونه لاندې څیکلومتریکي فنکشنونه ( ارکوس فنکشنونه ) دي:

1. $y = \mathrm{Arc}\sin x$, $D = [-1, 1]$, $W = \left[-\frac{\pi}{2}, \frac{\pi}{2}\right]$ (15.13a)
2. $y = \mathrm{Arc}\cos x$, $D = [-1, 1]$, $W = [0, \pi]$ (15.13b)
3. $y = \mathrm{Arc}\tan x$, $D = \mathbf{R}$, $W = \left(-\frac{\pi}{2}, \frac{\pi}{2}\right)$ (15.13c)
4. $y = \mathrm{Arc}\cot x$, $D = \mathbf{R}$, $W = (0, \pi)$ (15.13d)

د تریګونومتري فنکشنونو برخې په مونوتوني ایترووالونو ) ۱۵ .۱۲ الف( تر) ۱۵ . ۱۲ ت ( او د هغوي چپه ) ۱۵ . ۱۳ الف ( تر ) ۱۵ . ۱۳ ت ( په څیرو ۱۵ . ۲۲ تر ۱۵ ۲۵ پورې انځور دي.

۱۵ . ۴ ځنځیري ( تړلي ) فنکشنونه

پیژند ۱۵ . ۱۵ :

د x ∈ Dلپاره یو فنکشن $z = g(x)$ د ارزښتدیري W سره ورکړ شوی او برسیره پر دې د z ∈ Wلپاره یو فنکشن $y= f(z)$ورکړشوی، نو

$$y = f(g(x)) \qquad (15.14)$$

د x تړلی ( ځنځیري) فنکشن بلل کیږي٠

یادونه : یو تړلی فنکشن کیدی شي چی زیاتو ځنځیرونو سره هم رامنځ ته شي: د بیلګي په توګه $z = f(x)$

دx ∈D, z∈ Wلپاره او $w=h(z)$ دz ∈W,w∈ W*لپاره

او$y=f(w)$ د W∈*W لپاره لرو،

نو $y=f[h(g(x))]$ هم د x یو تړلی فنکشن دئ

بیلګه ۱۵ . ۱۶ :

الف : د $z = 2x + 4$ او $y = e^z$ سره تړلی فنکشن $y = e^{2x+4}$ لاس ته راځي .

---

ب : په ترلي فنکشن $y = \sin x^2$ کی $z = x^2$ دننني - او $y = \sin z$ د باندنی فنکشن دی.
په ترلي فنکشن $y = \sin^2 x= (\sin x)^2$ کي $z = \sin x$ د ننني - او $y=z^2$ دباندنی فنکشن دی

پ : د
$, y = \cos w \;\; w = \sqrt{z} \;\; , \;\; z = 2x + 4,$
سره ترلي فنکشن $y = \cos \sqrt{2x + 4}$ لاس ته راځي

ت : په ترلي فنکشن $y=\text{Arctan}1/(x-1)$ کی $z=x-1$ دننني، $w=1/z$ منځنی او $y=\text{Arctan } w$ دباندنی فنکشن دی .

یادونه : د یوه ورکړشوي x - ارزښت لپاره د ځنځیري فنکشنونو د فنکشن ارزښت شمیرنی

له » دننه « پیل کیږي .

بیلګي ۱۵ . ۱۶ ته :
ب) د $x = 0.5$ لپاره دی
$z=x^2=0,5^2=0,25;y=\sin x^2=\sin z=\sin 0,25=0,24740$
او
$z=\sin x=\sin 0,5=0,47942;y=\sin^2 x=z^2=0,47942^2=0,22984$

پ) د $x = 2$ لپاره دی $z=x-1=2-1=1 \; ; \; w=1/z=1/1=1$
$y=\text{Arctan}w=\text{Arctan}1=\frac{\pi}{4}$

روښانونه، تشریح:

$y=f(x)$ تحلیلي( شننیزه) وینا بلل کیږي، که $f(x)$ له رییل ګڼونواو بسټیزو فنکشنونوڅخه د زیاتون، کمون،ځل، ویش، له لارو ترلی یا ناترلي( ځنځیري یا نا ځنځیري) جوړیږي

د بیلګي په توګه دې په پام کی وي، چي ماتلاندې فنکشن دې صفر نه وي د پوتنځ بنسټ او همداډول رادیکاند منفی نه شي کیدلی، او یا باید مثبت وي، چی د لوګاریتم نومروس باید

---

مثبت وي او( Arc sin f(x همداډول( Arc cosf(x تيك د $x \in [-1,1]$ لپاره پېژند لري يا تعريف دي

بيلګه ۱۵ . ۱۷ :

د لاندې تحليلي ويناو لپاره دې تعريفډيري پيداکړی شي.

الف $y = \sqrt{x^2 - 3}$

راديکاند بايد کميز يا منفي نه وي، چی دا مان لري:

$x^2-3 \geq 0 \iff x^2 \geq 3 \iff |x| \geq 3 \ ( x \geq \sqrt{3} \ \vee \ x \leq -\sqrt{3})$

نو لرو $D = (-oe , - 3] \cup [3 ,oe]$

ب )( $y=lg(x+2)+1/(3+2x-x^2$ له لمړي زياتونی کی بايد Numerus > 0 نومروس وي دا په دې مانا چی : $x +2 >0 \iff x >-2$ ،

پس( $D1=(-2,oe$

په دوم زياتوني کی بايد مات لاندې په صفر برابر نه وي ( =| 0 ) وي . د مات لاندې صفرځايونه

له $3-2 \ x-x^2 = 0$ څخه لاس ته راځي او دي .$x1=2,x2=-1$

نو $D2=R\backslash(2;-1)$ دی

د فنکشن تعريفډيری بايد دا اول زياتونی او همداسی د دوم زياتونی تعريفډيري وي يعنی د D1 او D2

غوڅډيری: $D=D_1 \cap D_2 = (2 ,oe) \backslash \{2; -1\}$

پ) $y = Arc \sin (x-1)/5$ د ارکوس ساين-فنکشن د تعريفډيري په پام کی نيولو سره بايد باور ولري-

$-1 \leq (x-1)/5 \leq 1 \iff -5 \leq x-1 \leq 5 \iff -4 \leq x \leq 6 \Rightarrow D=[-4,6]$

ت $( y = 1 / \sqrt{( x^2 - 4)}$

راديکاند بايد له صفر لوي وي او مات لاندې دصفرسره نامساوي، دا په دې مانا چی

$x^2-4>0 \iff x^2<4 \iff x>2$ يا $x<-2$

نو دی $D=(-\infty,-2) \cup (2,\infty)$

---

## ۱۵ . ۵ تمرینونه

۱ – د ایمپلیڅیت توابعو ایکسپلیڅیت انځورونه ورکړئ

الف - $6x-10y=15$ ب - $x+y/3 = 5$

پ - $2x^2 -3y +3 = 0$ ت – $x^2 -4x + 2y – 8 = 0$

۲ - لاندې فنکشنونه په پارامترانځورونی ورکړ شوي

a) $x=2t \quad y=-t^2+3t$ b) $x=\sqrt{t} \quad y= 2t+1$

c) $x=1/t \quad y=2(t-3)$ d) $x(/2)t-1 \quad y=t^2$

پارامتر له منځه یوسی او په دې سره ورکړی $y = f(x)$

۳ - لاندې فنکشنونه په مونوتوني وڅیړی، او که ممکن وي نو مونوتونی اینتروالونه په تعریفیدیریو بیل (تجزیه ) کړی، یا لږ تر لږه کړی.

a) $y = 2x -3$ b) $y = -2x +3$ c) $y = x^2$

d) $y = -2x^2$ c) $y = 2x^2 + 1$ f) $y = |x|$

۴ – پریکړه وکړی چې لاندې فنکشنونه جفت، ناجفت او یا له دې دووکوم نه دي:

a) $y = x$ b) $y = x + 1$ c) $y = x - 1$

d) $y = 2x^2$ e) $y = 2x^2 + 1$ f) $y = (x-1)^2$

g) $y = x^2 /2$ h) $y = x^5$ i) $y = |x|$

۵ – د لاندې فنکشنونو د صفر ځایونه پیدا کړی

---

a ) $y = -2x + 3$ b ) $y = (x-1)(x+2)$ c ) $y = x^2-x-2$

d) $y = 2x^2 -12x +18$ e ) $y = x^2 + 1$ f ) $y = x^3$

۶ – لاندېفنکشنونو ته په ځت فنکشونونه پیدا کړی

a ) $y = -2x + 3$ b ) $y = x^2 + 1$, $D = [0, \infty)$, $W = [0,\infty)$

c ) $y = (x+1)^2$, $D = [-1,\infty)$, $W=[0,\infty)$, d) $y=x^3/2$, $D =[0,\infty)$, $W=[0,\infty)$

۷ – لاندې لاينې فنکشنونه ورکړ شوي دي

a ) $y = 0,4x -1,6$ b) $y = -x + 1$ c) $y =(1/5)(3x +1,5)$

d ) $y = 2$ e ) $3x -3y -7 = 0$ f ) $4y + x = -1$

کرښې دې وکښل شي، جګوالي کونج $\propto$ دې پیدا شي، او صفرخایونه $x_N$ و ګنۍ!

۸ – کومه کرښه له لاندې ټکو تیریږي

a ) (2,3) (5,5) b ) (1 ,1 ) او (3,7) c) (-1,0) او ( -2,-3) ?

۹ – لاندې مربع بلواك يا فنکشنونه ورکړ شوي

a) $y = x^2 -4x +3$ b) $y = x^2-8x+16$ c ) $y = x^2 -6x +10$

d ) $y = (x-5x)(x-1)$ e ) $2x^2 -10x+12$ f ) $y = 3x^2 +6x$

g) $y = -\frac{x^2}{2}+x +4$ h) $y = x^2/4 + x +2$ i ) $y = 5x^2 +45$

د ککرې کواوردینات دې پیداشي، صفرخایونه دې وګنل شي او پارابول دې انځور شي

۱۰ – د لاندې ټولریشنل فنکشنونه دې دورکړشوو x ارزښتونو سره د هورنرشیما د استعمال له لارې وګنل شي. فنکشنونه دګا د خلفورم باندګی انخور شي

a ) $y = f(x) = x^3 -6x +5$; $x_1 = 1$ , $x_2 = -1$

b ) $y = f(x) = (1/2)x^3 -x^2 -(13/2)x -5$; $x_1 = 1/5$ $x_2 = 5$

c ) $y = f(x) = x^3 +2x + 2x$ ; $x_1 = -2$ $x_2= 0,2$

d ) $y = f(x) = x^4 -x^3 -28x^2 32x +40$ ; $x_1 = 2$ $x_2 = 5$

e ) $y = f(x) = 2x^4 - 3x^2 -6x^2 +5x +6$ ; $x_1 = 1,5$ $x_2 = 2$

---

۱۱ – مات ریشنل فنکشنونه ورکړ شي :

a) $y = \frac{x^2 + x - 2}{x^2 + 2x - 3}$ b) $y = \frac{x^4 - 3x^3 - 4x^2}{x^2 + 5x + 6}$

c) $y = \frac{x^3 + 2x^2 + x}{x^4 - 13x^2 + 36}$ d) $y = \frac{x}{(x^3 + 6x^2 + 9x)(x^2 - 4x + 4)}$

e) $y = \frac{2x^3 - x^2 + 6x - 3}{x^2 + 3}$.

صفرځایونه دې وګټل شي، پول. تشخایونه او د $x \to \pm 8$ لپاره ځان نیونه!

۱۲ – لاندېفنکشنونو ته په څپ فنکشنونه جوړ کړی

a ) $y = 2^{x-1}$ , D = R , W=(0,œ) b ) $y = 2^x - 1$, D = R , W =(-1,œ)

c ) $y = \log_3 x$, D = (0,œ), W = R d) $y = \ln(x-1)$ , D =(1,œ), W = R

۱۳ – لاندې فنکشنونو ته مونوتوني اینتروالونه ورکړی او برخه په څپ فنکشنونه:

a ) $y =(x-1)^2$ b ) $y = x^2 - 1$ c) $y=(x+1)^2 + 1$

d) $y= x^2 - 4x + 5$ e) $y = 4x^2$ f ) $y = (1/4)x^2 + x/2 + 1$

۱۴ – ترلي فنکشنونه $y = f[h(g(x))]$ په دننه او دباندې فنکشنونو

$y = f(w)$ , $w = h(z)$ , $z = g(x)$

بیل ( تجزیه ) کړی( د تعریف–او ارزښتدیریوورکولو څخه کیدی شي تیرشو )

a) $y = e^{(x+1)^2}$ b) $y = (e^{x+1})^2$ c) $y = \lg \sqrt{2x-3}$

d) $y = \sqrt{\lg(2x-3)}$ e) $y = \tan \sqrt{x-3}$ f) $y = \sqrt{\tan(x-3)}$

g) $y = \sqrt{\tan x - 3}$ h) $y = \tan \sqrt{x} - 3$ i) $y = \text{Arc}\sin x^2 +$

j) $y = [\text{Arc}\cos(3x-2)]^{\frac{1}{2}}$ k) $y = \ln \sin \frac{x}{3}$ l) $y = \sin \ln (x + \frac{1}{3}$

m) $y = \sqrt{\frac{1}{\sin x}}$ n) $y = \frac{1}{\sqrt{\sin x}}$ o) $y = \frac{1}{\sin \sqrt{x}}$

p) $y = \text{Arc}\cot e^{2x+1}$.

---

۱۵ - ترلي فنکشنونه $y = f[h\{g(k(x))\}]$ په دباندې او دننه فنکشنونو

$$y = f(v),\ v = h(w), w = (g(z)),\ z = k(x)$$

بیل کړی(د تعریف- او ارزښتدیري باندې تیرونه کیدی شي )

a) $y = \left[\text{Arc}\cot\left(e^x + 1\right)\right]^{\frac{1}{2}}$ b) $y = e^{\text{Arccot}(2x+1)^{\frac{1}{2}}}$ c) $y = \sin\left[\cos\frac{x-4}{3}\right]^2$

d) $y = \sqrt{5 - \tan\sqrt{x}}$ e) $y = \cos\left[\ln\left(x^2 - 1\right) + 1\right]$ f) $y = \log_3\left[\sqrt{2^x + 1}\right]$

g) $y = e^{\tan\sqrt{7x-1}}$ h) $y = \tan e^{\sqrt{7x-1}}$.

۱۶ - د لاندې شننیزویا سیرنیز (تحلیلي ) افادو لپاره تعریفدیري پیدا کړی.

a) $y = \sqrt{x-3}$ b) $y = \sqrt{3 - x^2}$ c) $y = \sqrt{x^2 - 9}$

d) $y = \dfrac{1}{\sqrt{x^2 - 9}}$ e) $y = \dfrac{1}{x^2 + x - 6}$ f) $y = \ln(2x + 5)$

g) $y = \text{Arc}\cos(2x - 4)$ h) $y = \sqrt{x} + \dfrac{1}{x}$ i) $y = \ln x + \dfrac{1}{x-1}$.

## د ډاکتر ماخان شينواري چاپ شوې ليکنې:

1988 Vienna (Austria):

لومړى:

H.K. Kaiser , M. Shinwari : Aproximation compact pological algebra : general algebra 6 ; Page 117 – 122 contributions to

1987 Vienna (Austria):

دويم:

Diss . Interpolation und Aproximation durch Polynime in Universalen Algebren . Uni. Wien

*Dissertation Interpolation and Aproximation by Polynome in universal Algebras, at the University of Vienna/Austria*

لاندې د شميرپوهنې پښتوټول کتابونه په المان کې د ،، افغانستان کلتوري ودې ټولنه،،له خوا چاپ شوي دي

2000 Bonn (Germany):

دريم: د شميرپوهنې ستر کتاب : د شميرپوهنې برسيره د انجنري، فزيک او اقتصاد لپاره ، همداسې د ښوونکو او زده کوونکو لپاره ( دا کتاب په ۹۰۰ مخونو کې چاپ او دا نوې ليکنه به يې ځنو ځايونو غزېدلې او ځنې ځايونه ترې لرې شوي دي)

2003 Bonn (Germany):

څلورم: ځمککچپوهنه( هندسه) ، په سلو زرو کې شميرنه، د ګټې – او کټې د کټې شميرنه ، د اختمالوالي شمېرنه کتاب د ښوونځي ټولې اړتياوې پوره کوي

2003 Bonn (Germany):

پنځم: الجبرونه ( د الجبر بنسټونه دي)

2003 Bonn (Germany):

شپږم:  د شمیرپوهنې    انګرېزي – پښتو ډکشنري.

2003 Bonn (Germany):

اووم: د شمیرپوهنې الماني ـ پښتوـ او پښتو الماني ډکشنري

*Mathematical dictionary German/ Pashto and Pashto/German*

2003 Bonn (Germany):

اتم:  دفرنڅیال برابرون  ( دا کتاب په دې ځانګه کې یو پیل    دی، ساده لیکل شوی)

*Differential equation Translation; An Introduction*

Bonn (Germany): 2003

نهم: د شمیر پوهنې فرمولونو ټولګه

*Mathematical  Formulas*

2003 Bonn (Germany):

لسم:   شمیرپوهنه له عربي په پښتو

1997 Bonn (Germany):

یوولسم: د افغانستان په هکله سپینې خبرې:  په     المان  کې

،،د افغانستان روغې او بیا ابادولو ټولنه،، له خوا

.یادونه:     له ۲۰۰۰ کال دمخه ډاکتر ماخان شینواري د ،،د افغانستان روغې او بیا ابادولو ټولنه،، له خوا درې ساسي مجلې هم را وستلي.

د ډاکتر ماخان ،،میرې،، شینواري لیکنې او ژباړې چې په چاپېدو یې پیل کیږي

2012 Bonn; Germany; Kabul Afghanistan

ژباړې چې همدا اوس چاپ شوې دي:

: *Prof. Brinkmann. (From Brinkmann.du.de)*

لاندې د برينککن ليکنې چې له پرينمن ن ج څخه ژباړل شوي دي.

١ - شميرپوهنه د ښوونځي لپاره لومړی ټوک

٢ – شميرپو هنه د ښوونځي لپاره دويم ټوک

٣ – شميرپو هنه د ښوونځي لپاره دريم ټوک

۴ - د احتمالوالي شميرنه د ښوونځي لپاره

۵ – احصايه يا ستاتيستيک دښوونځي لپاره

لاندې کتابونه د شتوتګارت د پوهنتون د استادانو د لکچرونو څخه چې د شتوتګارت پوهنتون ن ج څخه خپاره شوي، را ژباړل شوي دي.

۶ – اناليزی ١

٧ – اناليزې ٢

٨ – کربنيز الجبر

٩ - د شميرپو هنې بنسټونه

١٠ - د فرمولونو ټولګه

١١ – فنکشنل اناليز

١٢ – وکتور شميرنه

نوري ژباړې

۱۳ – له www./grundstudium.info/linearealgebra څخه:کرښیز الجبر

۱۴ – Georg Gutenbrunner  ګڼونپوهنه یا د اعدادو تیوري

زما لیکنې : همدا اوس  ځنې چاپ شوي او ځنې چاپ ته چمتو دي.

<u>Bonn (Germany):</u>

۱۵ - د شمیرپوهنې ستر کتاب دویم چاپ  د پوره تغیراتو سره :

دا کتاب د شمیرپوهنې برخې برسیره د   انجنري، فزیک  او  اقتصاد لپاره ، همداسې  د ښوونکو او زدهکوونکو لپاره پوره ګټور دی. په   کتاب کې د اړتیا سره زیاتونه او کونه راغلي

کتب په دوه برخو کې چاپ شوی دی

الف . لومړۍ برخه

ب . دویمه برخه

۱۶ - ځمککچپوهنه  ( هندسه)  دویم چاپ د پوره تغیراتو سره

۱۷ – الجبر بنسټونه دویم چاپ له تغیراتو سره

۱۸ -  ډېرۍ پوهنه یا سټ تیوري

۱۹ – د شمیرپوهنې سم اند ( منطق ریاضي)

۲۰ -  د یو څو شمیرپوهانو ژوندلیک

۲۱ – د شمیر پوهنې ګډې وډې لیکنې

-۲۲   داهم ژباړه ده، خو لیکونکی یې متآسفانه راڅخه نابلد شوی: د مشتق او انتیګرال شمیرنو ته  تمرینونه او اوبیونې یا حلونه یې

۲۳ – د شمیرپوهنې انګریزي پښتو او عربي + دري ډکشنري

۲۴ – د شمیرپوهنې پښتو انګرېزي ډکشنري

۲۵ – د شمیرپوهنې پښتو ډکشنري د شمیرپوهنیزو وییونو په پښتو روښانه ونه

۲۶ - د زړه له کومې( دا هغه لیکنې دي، چې ځنې یې په نړیول جالونو کې خپرې شوي دي.)

۲۷ – د افغانستان په هکله سپینې خبرې، چې وبه غزیږي.

نوري لیکنې، چې په ژباړه یې پیل شوی، خو لا پوره نه دي

– د شتوتکارت پوهنتون لکچرنوټونو څخه ، چې د شتوتګارت پوهنتون ن ج څخه خپریږي:

د ګروپونو تیوري

- د ښوونځي لپاره فزیک د برینکمن لیکنه

له پنځم ټولګي څخه تر اومم ټولګې پورې ژباړل شوی ( دا چې زما دویم مسلک فزیک دی، دا لیکنې ژباړم. دا هم د دې لیکوال یوه ډېره ښه لیکنه ده، چې -د شمیرپوهنې په څیر- دلته هم زیات تمرینونه د حل یا اوبیونې سره په کې راغلي او ماته زیات ګټور برېښي)

## د ليکوال ژوند ته لنډه کتنه

ماخان په اولني نوم ميړي شينواری د ارواښادې پستو او ارواښاد نوررحمان زوي په ۱۳۲۰ ؟ ه لمريز کې د شينوارو هسکه مينه کې دې نړۍ ته سترګې راغړولي.

د هسکې مينې د لومړنۍ ښوونځي (د لومړنيو زده کوونکو څخه ) څخه وروسته د رحمان بابا ليسه له ۱۹۵۴ تر ۱۹۶۵ پورې( ښوونځي له لومړي ټولګې پيل او د دويم ټولګې څخه ګام او پای).

د ۱۹۶۶ تر سپټبر د کابل طب پوهنځی. له ۱۹۶۶ سپټمبر څخه د اتريش برس، چې هلته يې د شميرپوهنې ډاکتري په پوره ستونځو تر لاسه کړه.

د۱۹۹۸۷ ش ک تر ۱۹۸۸ د فبروري تر پای د دباندنيو چارو وزارت کې مامور. د ۱۹۸۸ مارچ څخه تر ۱۹۹۲ جون پورې په بن کې د افغانستان جمهوريت سفارت شارژد افير( صفر نه وو). له هغې وروسته په جرمنې کې سياسي پناه. له ۲۰۰۸ مارچ څخه د ۲۰۰۹ دسمبر پورې د د رياضي څانګه کې د پوهنې وزارت درسي نساب کې دنده.

ماخان ميړي په ۱۹۷۲ کې له لرې د ميرمن ښاپيرۍ سره واده شوی، چې د واده خبر ورته اتريش ته راغی. ده له ميرمن ښاپيری سره په ۱۹۶۳ ز ک کې کوزده کړې وه.

دوي ته لوي څښتن په اتريش ويانا کې د مای په شلم ۱۹۷۹ ز ک دوه بچيان وبخښل، چې څانګه او اباسين نوميږي. څانګه په المان کې د پوهنتون علمې همکاره وه او د حقوقو ډاکتره ده او اباسين ملي اقتصاد او ټولنيزه سايکولوژي لوستلې.

ماخان شينواري بې کاره نه دی او لږ تر لږه له ۹۷ ۱۹ څخه همدا د کتابونو ليکلو اوو د ژباړې دنده يې په غاړه اخستې، چې خپل فکر د شونې پولې تازه وساتي.

